

# مزلونه
# او
# تیندکونه

محمد ارشد خان

CamScanner

## د دې کتاب حقونه د هر پښتون دي

د کتاب نوم: مزلونه او تیند کونه
لیکونکے: ارشدخان
د چاپ کال: مارچ 2019ء
کمپوزنګ: سلیم ناشاد: 0346-9327068
اهتمام: طیب الله خان، اقبال حسین افکار
تعداد: **1000**
بیعه: 500 روپۍ
چاپ ځاے: سنګرپبلي کېشنز نوې اډه مردان

د ترلاسه کېدو درکونه:
ستاربک سنټر پي ار سي مردان
فرېنډز بک سنټر پي ار سي مردان
یونیورسټي بک اېجنسي خیبربازار پېښور
انورخان لالا، پښتو اکېډمي، پېښور پوهنتون

## خوروونکي
## مزدور ادبي سنګر پښتونخوا

# ټړون

د خپلې مور بي بي په نوم د چا د دعاګانو برکت چې په لوړو ژورو راتېر تر دې ځایه را رسولې یم، جنتونه ئې په برخه شه ـ

CamScanner

# لړلیک

## د دې کتاب په حقله:

دا مې د ډېر وخت نه خیال وۀ چې د خپل ژوند هغه مزلونه او تیند کونه تاسو سره شریک کړم کوم چې ما وخت په وخت په خپل ژوند کښې خوړلي دي زما دپښتو لیک به ډېر ښۀ نۀ وي خو زړۀ مې غوښتل چې د خپل ژوند داحالات پښتوکښې ولیکم. په دې خاطرد ۲۰۰۶ءد جنورۍ په میاشت کښې پېښور کښې په ایم پي اے هاسټل کښې د میاشت نه هم په کم وخت کښې د اتمانزو د یو شاعر چې زمونږ دوست او ملګرے دے، دلخرم خرم په مرسته داسې مکمل شۀ چې ما به ورته په یادو وئیلو. ټوله ورځ به مېلمنو او نورو کارونو کښې بوخت وم او د شپې به مو دا کتاب لیکلو اکثر د سحر د بانګ پورې به لګیا وو. هغۀ په خپله خو ټول کتاب لیکلے او کتلے وۀ نو هغۀ راته وئیل چې په دې به ډېر اعتراضونه وشي او دا کتاب په اردو او انګرېزۍ کښې هم یو ځاے چاپ کړه د پښتو دا کتاب به ډېرو کمو خلقو ته ورسي ځکه د دې د کمپوزنګ نه پس مو دوه درې پرتېه واخستل یو مو اردو والاته حواله کړه چې افتخار نوم ئې ایم اے پښتو ئې کړې وه او د اردو ادب سره ئې ډېر شوق وۀ او انګرېزۍ کښې ترجمه مې حیات روغاني (چې نن سبا باچاخان یونیورسټي چارسده کښې هم دے او باچاخان مرکز کښې د پښتون رسالې ایډیټر دے) درې کاله پس راته دواړو د لږې ډېرې ترجمې نه پس واپس کړۀ. اردو والا وئیل چې دې کښې تاسو د اردو وئیلو واله خلقو یعني اردو سپیکنګ مخالفت کړے دے نو ځکه زۀ د دې ترجمې ته نۀ یم تیاراو روغاني ووې چې دې کښې تاسو د باچا خان مخالفت کړے دے ځکه نو زۀ د دې ترجمې ته نۀ یم تیار. دې خوا زۀ په نورو مسئلوکښې بوخت وم کتاب ته مې ډېره توجۀ نۀ وه او نۀ مې دا مطلب وۀ چې دا کتاب دې د باچاخان غوندې شخصیت د

لوړ قامت د راتيتولو کوشش وګڼلے شي، بلکې زما په نظر کښې چې د باچاخان کوم عزت وۀ هغه اوس هم شته او وي به خو عام خلق په دې نۀ پوهېږي چې د هغوي کومې خبرې خپلول پکاردي اوکومې نۀ دي پکار. تاريخ په چا پرده نۀ اچوي تاريخ کښې چې څوک لټون کوي نو صداقت ته به يوه ورځ خامخا رسي. حيات روغانړے په دې خفه وۀ چې تۀ وايې باچاخان دوي هډو پښتانۀ نۀ دي. يوه مې د غني خان د څلې حواله ورکړه کومه چې مادې کتاب کښې ليکلې ده او بله مې د کلي د يو انپړه سړي چې يو ډېرمشهور تاجر وۀ او د اتمانزو نه راغلے وۀ او زمونږ کلي کښې اباد شوے وۀ او عزيزالدين نوم ئې وۀ، د هغۀ خبره مې ورته وکړه چې زۀ څۀ وخت د چارسدې د اے اين پي صدر شوم نو هرچا به زما هرې خبرې ته ښه وې او زۀ په يونيورسټۍ کښې د بحثونو او ډې بېتونو عادت وم دغه يو د جوماتي اسلامي رکن عزيزالدين لالا واحد سړے وۀ چې زما د خبرومخالفت به ئې کولو. د دوي ټول خاندان په اتمانزوکښې وسېدو او په خپله د دۀ پېدائش هم د اتمانزو وۀ. زۀ يوه ورځ حجره کښې څانله ناست وم هغه مې ډوډۍ له راوغوښتو او د هغۀ نه مې د باچاخان او ولي خان د کورنۍ په باره کښې تپوس وکړۀ. مخکښې مې ورسره عام خبرې اترې وکړې چې کله داسې دې تجارت شورو کړے او کوم کوم ځاے کښې تجارت کوې. هغۀ وئيل چې مخکښې مې هرقسم تجارت کولو خو اوس صرف د ګوړې تجارت کوم او په دې کښې زۀ کراچۍ او دلي ته هم تلے يم او کوئټه او کابل خو زمونږ خپل ځايونه دي، پنډۍ کښې هم د چارسدې يو دوه کشميريانو دوکاندارانو سره شريک يم. داسې هغه ډېر تجربه کار او ګرځېدلے سړے وۀ او د مشرۍ او د ښۀ سړيتوب ئې هم خلقو ډېر خيال ساتلو او بل د جومات اسلامي په وجه خلقو پاک او ديندار سړے ګڼلو. د ډوډۍ

په دوران کښې مې ترې تپوس وکړۀ چې تۀ خو د اتمانزو يې تاته به ښه پته وي چې د باچاخان کورنۍ څنګه خلق دي نو هغه راته يکدم ووئيل چې دا خو د سره پښتانۀ نۀ دي نو حيات روغاني ته مې هم ووئيل چې نمرۍ مې ونښته او قهر هم ډېر راغلو چې زۀ د چارسدې د اے اين پي صدر يم او دې ماته هم مخامخ وائي چې باچاخان دوي د سره پښتانۀ نۀ دي، خو د هغۀ د مشرۍ او خپلې حجرې په وجه مې خپل قهر او غصه قابو کړل او د هغۀ نه مې تپوس وکړۀ چې تۀ د څۀ نه وايې، تاسره څۀ ثبوت دے دا په کوم کتاب کښې دي. هغۀ راته وئيل چې زۀ خو انپړه سړے يم خپل حساب کتاب هم په ابجدوکښې ليکم خوزۀ ستانه تپوس کوم چې تاته هم پته ولګي چې زۀ دا ولې وايم. ستا خو دلته هم ډېرو خلقو سره تعلق دے، سوات، بونېر، صوابۍ، کرک، بنو او کوهاټ کښې هم ډېر خلق پېژني، دوي له چې ځاے ته ورشې نو د چائې ډوډۍ ست درته کوي؟ ما ورته وئيل هو، هغۀ وئيل چې چائې درله راوباسي نو کوم ځاے دې کښېنوي؟ ما ورته وئيل حجره کښې مې کښېنوي هغۀ وئيل چې زماپه شان غريب سړے وي اوحجره ئې نۀ وي نو بيا؟ ما ورته وئيل بېټهک کښې مې کښېنوي. هغۀ وې چې بېټهک ئې هم نۀ وي؟ ما ورته وې بيا د کور نه کټ راوباسي او د کوڅې مخې ته کښېنو. هغۀ وئيل کور ته چا دننه بوتلے يې. ما ورته وئيل نا کور ته خو تراوسه چا نۀ يم بوتلے. وې ئې په سوات، بنو يا نورو ځايونو کښې چا کورته بوتلے يې ما وې نه هلته هم چا نۀ يم بوتلے. هغۀ وئيل دوي (باچاخان، ولي خان) له چې ورشې نو کوم ځاے کښېنې؟ ما ورته وئيل کور کښې ناست يُو. وئيل ئې کور کښې ئې ښځه وي؟ ما ورته وئيل ښځه خو ئې د پارټۍ ليډره ده هغه هم وي. هغۀ وئيل چې پښتنو کښې ستر پرده د نورو ټولو قومونو نه زياته ده اوس خو ورځ تر ورځه

کمېږي پښوا خو به چې ستاسو د کورنیو زنانه چرته تللې نو د ټانګو نه به هم پړدې تاؤ وې او دننه به هم هغه زنانو غټې غټې برقعې اچولې وې خو دې کورنۍ کښې د پښوا نه د ستر پړدې رواج نۀ وۀ او مونږ ټولو اتمانزوالو پورې به خلقو ټوقې کولې چې ستاسو مشران د چا نه ستر پړده نۀ کوي. د پاکستان جوړېدو نه مخکښې هندوان، سیکان، مسلمانان لیډران به دوي کره څوڅو ورځې پاتې وو نو مونږه اتمانزوالو به د دغې ملامتې وې چې دا پښتانۀ نۀ دي د بل ځائے نه راغلي او خاص کر د داسې ځائے نه راغلي دي چې هلته هغه وخت هم ستر پړده نۀ وو دا ټولې خبرې مې حیات روغاني ته وکړې او دا مې ورته هم ووئیل چې د هشتنغر په اخري جرګه کښې د دولسو کالو نه لوے هلک نۀ وۀ. دا د پښتنو واحد جرګه وه چې ۱۲۰ مشرانې ښځې په کښې ناستې وې ځکه چې نارینه ئې ټول د ۱۸۵۷ء په جنګ کښې شهیدان شوي وو.

د دې نه پس د حیات روغاني یو بل ملګري ووې چې تاسو د ۱۸۵۷ء د جنګ نه پس د هشتنغر جرګه راوغوښته نو ټولو فېصله وکړه چې انګرېزانو چاله زمکې ورکړې دي نو هغوي سره به غم ښادي نۀ کوو او نۀ به په کښې ورکړه راکړه کوو. او تا وئیلي دي چې باچاخان په خپله دا منلي دي چې انګرېزانو زما نیکۀ له په سونو جریبه زمکه ورکړې ده نو بیا د دغه کورنۍ یو سړي لکه باچاخان له تاسو ولې مشري ورکړه؟ ما ورته ووې چې د دې خبرې ما هم د مشرانو نه تپوس کړے وۀ نو هغوي راته ووې چې پښتانۀ مشران کۀ هغه وخت کښې کۀ په نور څۀ نۀ پوهېدل خو په پره جمبه ښۀ پوهېدل، باچاخان د خپل پلار نیکۀ پره پرېښوده د چا چې انګرېزانو سره پره وه او زمونږ په پره کښې د انګرېزانو خلاف ودرېدۀ نو مونږ ورته ځکه د مشرۍ پټکے په سر کړۀ.

CamScanner

او هغه تر اخره پورې د انګرېزانو خلاف وۀ او زمونږ د پرې خبرې ئې کولې.

ددې نه پس مې د کتاب د چاپ کولو هډو خیال نۀ وۀ او خپله په کښې هم راته ډېرې غلطۍ ښکارېدې ځکه زۀ ځان سره ډائرې نۀ ساتم چې دا پته راته وې چې دا خبره یا دا کار په دې وخت او دې کال کښې شوې ووکال راته هم اکثرنۀ وي یاد. خو طیب الله خان او اقبال حسېن افکارچې داکتاب ئې لږډېر لوستے وۀ هغوې وئیل چې خامخا ئې چاپ کړه ځکه چې دا خو ستاسو یاداشتونه دي چې د تاریخ برخه وګرځي ځکه چې تاخو د پښتنو د مسئلو د پاره دا ټولې هلې ځلې کړې دي او خپل نظر دې هم ښودلے دے نو چې کومې خبرې چا ته غلطې ښکاري نو هغوي به سره د تصدیقه هغه صحیح خبرې مېدان ته راوباسي.

د خپل کشر سلیم ناشاد مینه هم د هېرولو نۀ ده چې د دې کتاب د کمپوزنګ کار ئې ډېر په لږ وخت کښې ډېر په خوش اسلوبۍ ترسره کړۀ او دا کتاب ئې ستاسو لاسو ته راورسولو.

کۀ دا یوه خبره چې د هر چا په مازغو کښې کښېناسته چې مونږ اوس هم د انګرېزانو د وفادارو د غلامانو غلامان یُو، یواځې د پاکستان پښتانۀ نه بلکې د افغانستان پښتانۀ هم د ازبکو او تاجکو د کلچرونو او ژبو ذهني غلامان دي او کۀ ټول پښتانۀ په دې پوهه شو نو د غلامۍ نه د ازادۍ سوچ به ئې راپېدا شي.

زۀ هم په دې خیال او دې سوچ دا خپل مزلونه او تیندکونه تاسو سره شریکوم چې تاسو هم د هغه لوړو ژورو نه خبر شئ کومو کښې چې ما دا تیندکونه خوړلي دي.

## د سر خبرې

ماچې په 1967ء کښې لسم جماعت پاس کړو، نو د نور تعليم د پاره مې د پېښور په ايډورډز کالج کښې داخله واخسته. زما د ترۀ زوے جان محمد خان زما سره نزدې وسېدو، هغۀ په ګورنمنټ کالج کښې د چا سره جنګ وکړو، چې په هغه جنګ کښې څۀ کسان مړۀ او څۀ زخميان شو. د هغې نه پس زمونږ مشرانو فېصله وکړه چې تاسو دواړه په يو ښار کښې تعليم نۀ کوئ. هغوي بيا زما د پاره د پنډۍ په ګارډن کالج کښې داخله واخسته. څوک چې د خپل کلي نه بهر شي او په پردي وطن کښې دېره شي، نو د خپل کلي وطن د خوشحالۍ او سوکالۍ سوچونه ډېر په شدت محسوسوي. دغلته زما سره يو څو ملګري پښتانۀ نور هم وو. هغوي به هم زما په شان د کلي وطن د خوشحالۍ او سوکالۍ خبرې هر وخت کولې. د دې سره سره زمونږ په شريکه دا سوچ پېداشوچې د قوم دوه کم سل فيصده خلق غريبانان دي، تر څو پورې چې دا غريبانان ښۀ شوے نۀ وي، نو د پښتنو دا وطن او دا قوم د نورو وطنونو او قومونو سره برابرېدے نۀ شي.

مونږ چې به د نورو ملګرو سره دا خبرې شورو کړې، هغوي به وئيل تاسو خو د کميونسټانو خبرې کوئ. د دې خبرو سره سره زمونږ په مازغو کښې دا سوچ هم پېدا شو چې د کميونسټانو دا کتابونه هم وګورو چې دوي د قوم او د وطن د ترقۍ په باره کښې څۀ وائي. دغه شان مونږ د کارل مارکس، اېنګلزاولېنن کتابونه واخستل. دکارل مارکس "داس کېپيټل" مونږ بيا بيا وکتو. بلکې تر بي اے پورې مونږه دوه دوه ځله وکتل خو هيڅ نتيجې ته ونۀ رسېدو. د هغې نه پس چې ما په لاهور کښې ايم اے فلسفه کښې داخله واخسته، نو د هغه ځاے ملګرو راته ووئيل چې کارل مارکس خو د جرمني وۀ او اېنګلز د

دۀ ملګرے د برطانيې کارخانه دار او سرمايه دار وۀ. تاسو له پکار دي چې د اېنګلز د کتابونو مطالعه وکړئ نو هله به په "داس کېپيټل" پوهه شئ. د دې سره سره په يونيورسټۍ کښې زمونږ ملګري نور هم زيات شول او زمونږه تعلق ورسره پېدا شو، نو مونږه مضمون هم د فلسفې اخستے وۀ. دغلته مونږ د يو استاذ نه تپوس وکړو چې زمونږه د فلسفې دا مضمون خو ډېر ګران دے هغۀ راته ووئيل چې دومره ګران خو نۀ دے بس دا پته لګول دي چې زۀ يم او کۀ نۀ يم او چې يم نو څۀ يم؟

د دې فلسفې سره زما په ذهن کښې دا هم راتلل چې د مالدارو فلسفې هم کتل پکار دي، چې دوي د قوم او د وطن په باره کښې څۀ وائي؟ زما د مطالعې په حواله دغه خلقو زيات په جمهوريت، انساني حقوقو، د انفرادي مال د تحفظ، چې دا په يوه جمهوري معاشره کښې د رائې په اکثريت باندې کوم حکومت وجود ته راشي، ځکه چې اکثريت خو دغريبانانو وي، نو خود بخود به د غريبانانو خدمت کوي. دا د يورپ په هغه ملکونو کښې په کومو کښې چې د تعليم شرحه ډېره اوچته وه او د وخت سره ئې د ازادۍ او خپل واکۍ ژوند تېرولو، دا صحيح ده چې د هغوي د پاره دا نظام صحيح وۀ لکه څۀ رنګ چې ابراهيم لنکن وئيلي دي:

> **"Democracy is the govt of the people, by the people for the people."**

او کوم ملکونه چې د ازادۍ نه محرومه پاتې شوي دي، هغې کښې د تعليم شرحه ډېره کمه وه، د بادشاهۍ او غلامۍ نظام وۀ، په هغې کښې ذاتي ملکيتونه دبادشاه د خوښې خلقو له ورکړي شوي وو. په برطانيه او نورو ملکونو کښې کارخانې جوړېدې او خام مال ئې د دې ځاے نه اوړۀ. په هر څۀ کښې ئې داسې قانون جوړ کړے وۀ چې ګټه به په کښې د دوي وه. کارخانې دلته نۀ وې چې چا مزدور په کښې

مزدوري کړي وي. او ووتهونه هم د خانانو نوابانو وو او اسمبلو ته تلل ئې دومره ګران کړي وو چې د غريب سړي د وس نه بهر وو. کله نه کله به مې زړهٔ کښې راتلل چې زهٔ نهٔ د روس يم او نهٔ د برطانيې، زهٔ چې سياست شورو کوم د خپل کلي وطن چارسدې نه به شورو کوم. د يو پښتون بچي په حېث چې زمونږه علاقې خلقو ته د کوم سياست او نظريې نه فائده رسي، هغه به خپلوم. دا يو معلوماتي دور وهٔ، ځکه چې زمونږه په علمي ادارو باندې به ځاے په ځاے ليکلي شوي وو چې "علم طاقت دے" (نالج اِز پاور) پکار دي چې په دې وخت کښې زدکړه وکړو او د هر قسم نظريو نه ځان هم خبر کړو. هسې په دغه وخت کښې يوه عجيبه واقعه راپېښه شوه چې تمامي عمر به زما نه هېره نهٔ شي. هغه دا چې زمونږه تمامو ملګرو به د جميعت طلبه سره بحث مباحثې کولې ، جميعت طلبه د جومات اسلامي د طالبانو يوه ډله وه، هسې زمونږ د يونيورسټۍ سره اچره (منصوره) هم نزدې وه، چې مودودي صاحب به په هغې کښې د جمعې په شپه خلقو ته د سوالونو جوابونه ورکول. د يوڅو پښتنو جميعت طلبه سره هم زمونږه تعلق وهٔ. هغوي وئيل پکار دي چې تاسو د مودودي صاحب سره هم ملاؤ شئ او د هغوي خبرې هم واورئ.

## مودودي صاحب سره مکالمه:

اخر داچې د جمعې په شپه د يونس نومي يو هلک سره هلته لاړم. زمونږ د کالج ملګري هلته ناست وو، هغوي ډېر خوشحاله شول، په روڼ تندي ئې زما سره سترې مشي وکړل، په زړهٔ کښې ئې وئيل چې دې جوړې هم زمونږه ډلې ته راغے. د ډېر ساعت ناستې نه پس زما وار راغے، خو زړهٔ کښې مې راتلل چې يو خوا ته فلسفه وايو بل خوا ته راته

خلق کافران وائي او یم پښتون، نو هسې بوسو کښې اوبۀ نۀ بوزم.
مودودي صاحب په ډېره مینه او نرمه لهجه کښې ووئیل "ځوانه وایه!
ما ورته وئیل دا راته ووایه چې خدا ے شته؟ هغوي جواب راکړو چې
بې شکه خدا ے یو دے. ما وئیل کوم ځا ے دے؟ په دې کښې هغه
ناست ملګري په غصه راپاڅېدل، چې زما وهلو ته هم جوړ شول،
مودودي صاحب هغوي ته مخاطب شولو: چپ کښېنئ کۀ تاسو د دې
خبرې جواب زده کړے وۀ، نو تاسو ته به معلومات وو او دا خبره یاده
لرئ، علم به هغه څوک زده کوي چې څوک په علم کښې بې شرمه وي
او طالب علم هغۀ ته وئیلے شي چې څوک د علم طلب کوي. بیا ماته
مخاطب شولو: ځوانه ستا ډېر وخت وشولو ووایه چایې ته دې زړۀ
کېږي او کۀ شربت ته دې زړۀ کېږي. ما ورته اوبۀ یادې کړې او اوبۀ مې
وڅښلې. مودودي صاحب ووې د کوم ځا ے وسېدونکے یې؟ ما ورته
ووې د چارسدې وسېدونکے یم، چې د پېښور یو تحصیل دے. هغۀ
ووې روزګار دې څۀ دے؟ ما ورته ووې زمیدار خلق یُو فصل زمونږه
امدن دے. مودودي صاحب ووې فصل دې په خپل لاس چرته کرلے
دے؟ ما ووې فصل خو مې تراوسه پورې نۀ دے کرلے خو ګلونه مې
ډېر کرلي دي. هغوي ووئیل په ګلونو کښې دې کوم ګل ډېر خوښ
دے؟ ما ووې سُور ګلاب مې ډېر خوښ دے. نو هغوي ووې سُور
ګلاب دې ولې ډېر خوښ دے؟ ما وئیل بوئي ئې په ماباندې ښۀ لګي.
هغه یو طالب ته مخاطب شو وې ورشه ماله چا یوه ګلدسته راوړې ده،
د هغې نه یو سُور ګلاب راوړه. هغۀ یو ګلاب راوړۀ، ما بوئي کړلو.
مودودي صاحب هغه ګلاب ترلاسه کړۀ او وې وئیل: هغه ګلاب خو زما
په لاس کښې دے، چې هغه بوئي ئې څۀ شولو؟ وې وئیل یاد لره چې

ګلاب وي نو بوئي به ئې هم وي او چې ګلاب نۀ وي بوئي ئې هم نۀ وي.
چې دنیا شته نو د دنیا جوړوونکے هم شته دے.

## وادۀ:

زمونږ د فلسفې ډیپارټمنټ او د نفسیاتو ډیپارټمنټ خوا په خوا وو او د دې په خوا کښې چې کومه برانډه وه په هغې کښې د ټیبل ټېنس مېز لګېدلے وۀ. خالي پیرډ کښې به مونږ په هغې لوبې کولې. دوو کسانو به لوبې کولې نور به خپلې وارې ته ناست وو. په فلسفه او نفسیاتو دواړو ادارو کښې د جینکو تعداد زیات او د هلکانو کم وۀ. زما یو ترۀ به کله نه کله زما تپوس له راتلو. چې کله به هم راغے، زما نه به ګېر چاپېره دوه درې جینکۍ ناستې وې. هغه یوه ورځ شکي شولو، چې دۀ ته خو د ترۀ لور کوېژدن ده، هسې نه چې دې دلته وادۀ وکړي. یوه ورځ راته هغه ترۀ ووې! خبره تاته اټاله ده، د وادۀ نېټه درله ږدو؟ ما ورته ووې زۀ خو لا تعلیم کوم، چې ترڅو پورې مې تعلیم نۀ وي برابر کړے تر هغې وادۀ نۀ کوم. چې ډېرې ورځې تېرې شوې او دا خبره هم زړه شوه هغه ترۀ مې دوباره راغے د سترې مشې نه پس ئې ووئیل: مور دې ناوجوړه ده، زۀ په تاپسې راغلے یم، ځه چې کلي ته ځو. ما د تادۍ نه کپړې هم راوانۀ خستې. غرض دا چې ترۀ او ورارۀ دواړه تر کلي راغلو. څۀ ګورم چې حجرې له ئې چونا ورکړې ده او د وادۀ کارډونه ئې لاس کښې راکړل چې دا دې خپلو ملګرو ته ولېږه، ځکه چې درې ورځې پس ستا وادۀ دے. سوچ کښې پرېوتم، په یو دوه کښې حېران شوم، زړۀ کښې وایم چې اوس خو تښتېدے هم نۀ شم. خپلو ملګرو ته مې اطلاع هم ورنۀ کړه، ځکه چې په وادۀ کښې درې ورځې وې. زما د یونیورسټۍ ملګرو ته ډېره موده پته نۀ وه، چې دۀ هم لا وادۀ کړے

دے. د وادهٔ کولو نه پس راته کالج ته په تلو راتلو ځان بد او پیکه ښکارېدهٔ. اخر سوچ مې وکړو چې سبق به په خپل ځاے کښې وايم او چې د امتحان وخت رانزدې شي بيا به کالج ته ځم. ځکه چې زما دوه ورونړه دي يو په پي ائي اے کښې پائيلټ دے او دوېم بېرسټر دے وکالت کوي. دلته په کلي کښې غم ښادۍ د پاره په حجره د جرګو مرکو د پاره هم شوک نهٔ وو او شوک چې لاړ جرګو مرکو خوند واخلي، د هغې د رسمونو رواجونو نه خبر شي، ځکه چې دا په کتابونو کښې نشته. زهٔ اوس هم دا ګڼم چې د حجرې علم ماته کومه فائده راکړې ده دا زهٔ د خپلو هغه ډګرو نه ښه ګڼم په کومو ډګرو چې زهٔ نن په اسمبلۍ کښې ناست يم.

ماته هلته کمينسټو ملګرو وئيلي ووچې ستاسو په چارسده کښې دوه مِلونه دي چې يو شوګر ملز دے او دوېم پېپر ملز دے. د هغې د مزدورانوسره تعلق جوړ کړه او د هغوي د مسئلو نه ځان خبر کړه. ما د هغې فلسفې او نظريې په حواله د پېپر ملز د مزدورانو سره تعلق يعني لېبر يونين چې مشري ئې شيرين خان کوله او بيا د شوګر ملز د مزدورانو سره تعلق يعني لېبر يونين چې مشري ئې ګل رحمان کوله. د دې سره سره د مزدور کسان پارټۍ د مشرانو سره تعلق يعني زما د زدکړې سلسله شورو شوه. د دغې زيات ملګري شاعران اديبان وو، د دوي سره مې هم ناسته پاسته شورو شوه، خو په دوي کښې يو عجيبه عادت وهٔ، چې کوم شاعر به موجود نهٔ وهٔ په هغهٔ پسې به ئې بدې ردې او خبرې کولې او چې کله به هغه راښکاره شولو نو د دوي نه به يو شاعر ورپاڅېدلو، هغهٔ ته به ئې وئيل عمر دې ډېر دے اوس مونږه ياودولے. د دوي سره به زما بحثونه عموماً د روس او امريکې او د چين په سياستونو وهٔ. زما نظريه به همېشه د ماوزے تُنګ په

وېناګانو باندې وه، ځکه چې په تمامه اېشيا کښې دا يو ملک وۀ چې مونږ د هغې د انقلابونو او زدکړو نه د امريکې او يورپ د سياستونو نه زياته فائده کولې شوه. دا هم د ټولو تاريخ پوهو مشرانو او ماوزے تنګ د خُلې وېنا ده چې "کوم خلق د خپل وطن د صحيح تاريخ نه خبر نۀ وي، هغه د خپل قوم کړۀ وړۀ باندې صحيح فېصله نۀ شي کولې.

زمونږ په پښتنو چې څومره ليکوالو ليکل کړي دي، تقريباً هغه تمام کتابونه مې ترلاسه کړل او تمام مې ولوستل. يعني کومو ليکوالو چې په پښتنو کوم ليکل کړي دي، په هغې کښې دوه ليکوال هم چرته په يوه خبره متفق نۀ دي. هر کله چې د پښتنو د يو والي خبره راشي، فقط په دې ئې اتفاق وۀ چې دوي په خپلو کښې متفق نۀ شي. په دغه دوران کښې زۀ د خپلو ملګرو سره کوئټې ته لاړم. د شپې ډېر ناوخته ورسېدو، بازار هم بند وۀ او مونږ چې چاله تللو د هغوي ځاے راته هم معلوم نۀ وۀ. د هغه ځاے سټاف کالج کښې وۀ. دغلته په چوک کښې چا سکوټر ودرولے وۀ، خپله د چوک نه چاپېره ګرځېدلو، اخر دا چې د هغه سکوټر والا نه مونږه پوښتنه وکړه، چې سټاف کالج په کوم ځاے کښې دے؟ هغۀ وئيل چې زۀ په فوج کښې کپتان يم، زما دوه کاله وشول چې دلته دېره هم، د کوئټې هره کوڅه ماته معلومه ده او سټاف کالج خو د فوځيانو ځاے دے، زۀ به خاص تاسو د هغه سرې تر کوره بوځم، خو تاسو يوه مهرباني وکړئ ما ته دا ځاے وښايئ چې زۀ اوس په کوم ځاے کښې ولاړ يم، مونږ چې د فوجي دا خبره واورېده نو زمونږ په زړۀ کښې راغلل چې دې خو يا لېونے دے او يا په نشه کښې دے. خو هغۀ زۀ کلک د لاسه نيولے وم او بار بار ئې وئيل چې ماته دا ځاے وښايئ. اخر مونږ ورته ووئيل دغه چوک دے، فواره په کښې لګېدلې ده. فوجي ووئيل بالکل دا فواره چوک دے. اوس په ما

پسې راځئ چې ستاف کالج ته مو د هغه سړي تر کوره بوځم. د فوجي هغه خبره صحیح وه، مونږ ئې د هغې سړي تر کوره بوتلو، چې د چا په تلاش کښې وو. د هغې نه پس مې په ذهن کښې دا خبره باربار ګرځېده کۀ مونږ د تمامې دنیا د سیاستدانانو نه خبر شولو خو چې ترکومې پورې د خپل قوم او د خپل وطن او د خپل کلي د تاریخ نه نۀ یُو خبر، نو خپل وطن ته، خپل کلي ته، خپل قوم ته هیڅ فائده نۀ شو رسولې. د پښتنو تاریخ مې هم لوستے دے او نور کوشش هم کوم، چې دا معلومات ماته د کوم ځا ے نه شوي دي او یا کېږي، چې د هغې پوره پوره حوالې خپلو لوستونکو ته وړاندې کړم. بیا هم کۀ په دې لیک کښې مانه څۀ کمے بېشے شوے وي او هغه ماته چا په ګوته کړل نو عموماً په داسې اعتراضونو باندې د کتاب او لیک خوند نور هم سېوا شي او د دې سیمې تاریخ به هم صحیح مخې ته راشي. ماته خپلو خپلوانو او ښو ښو ملګرو مشوره راکړې ده چې رښتیا خبرې مۀ کوه، خو اخر زۀ څۀ وکړم؟ د مرګ او ژوند څۀ پته نۀ لګي. زۀ وایم چې د کلي وطن خلق او زما ملګري د دې رښتوني تاریخ نه خبر شي، نو د خپل ژوند ښۀ کولو د پاره به دا رښتونے تاریخ د هغوي په فېصلو کښې هم د هغوي رهنمائي وکړے شي.

زمونږ کالج په پنډۍ کښې وۀ نوخپلې پښتواوپښتونولۍ مې د باچا خان سره بې انتها مینه پېدا کړې وه او دا خبره تر ذهنه راتله چې باچاخان دې پنجابیانوسره په کوم جومات کښې مونځ کړے دے، چې دومره ښۀ ئې پېژني. البته چې کوم پښتون په پنجاب کښې پاتې شي نو خپلې پښتو او پښتونولۍ سره ئې مینه نوره هم سېوا کېږي او چې د باچاخان په باره کښې چا کوم لیکل کړي وو هغه مې هم ولوستل.

د تعلیم نه پس چې خپل کلي چارسدې ته راغلم نو ما باچاخان خپلې حجرې ته رابللے وۀ او ورسره مې په خدائي خدمتګارۍ کښې اعلان هم وکړلو. زۀ تر اوسه پورې دا ګڼم چې زۀ خدائي خدمتګار یم. باچا خان ماته ښوښو ځله وئیلي وو چې ستاد دسترخوان خرچه زیاته ده او دا فضول خرچي د خدائي خدمتګار نخښه نۀ ده. د باچاخان کتاب "زما ژوند او جدوجهد" مې هم ولوستلو.

باچاخان وائي ماته خپل پلاربهرام خان بابا باربار وئیلي وو چې د انګرېزانو مخالفت پرېږده، ځکه چې دا کومې زمکې ئې راکړې دي، دا زمکې به زمونږه نه واپس واخلي. خو ما د بهرام خان بابا خبره ونۀ منله. تر دې حده پورې چې یوه ورځ د کوره بهر ناست وم، پلار راپسې جواب راولېږلو چې کور ته راشه. زمونږ د کورنۍ ټول مشران راغلي وو او ناست وو. بهرام خان بابا په مانځۀ ولاړ وۀ، زۀ ئې تر خوا کښېناستم، چې مونځ ئې وکړلو، سلام ئې وګرځولو نو ماته ئې ووې: دا مشران راغلي دي، دوي وائي او زۀ درته هم وایم چې د انګرېزانو مخالفت مۀ کوه. هسې نه چې انګرېزان زمونږه نه دا زمکې واپس واخلي. ما بهرام خان بابا ته ووئیل: کۀ انګرېزان تاته ووائي چې مونځ پرېږده نو څۀ دې خیال دے دا مونځ به پرېږدې؟ هغۀ ووئیل: زۀ مونځ نۀ شم پرېښودے. ما ورته ووئیل زۀ هم دا کار نۀ شم پرېښودے. ټولو یو بل ته وکتل او ماته ئې ووې ځه خدا ے دې مل شه.

ماته دباچاخان سره دخبروکولو موقعې ډېرې په لاس راغلي دي. ماکۀ هرڅومره د انګرېزانو کتابونه او تاریخونه لوستلي دي خو باچاخان مې دومره خوښ وۀ چې ما د هغۀ په باره کښې دا خبره نۀ منله چې دوي هم پښتانۀ نۀ دي. ما به وئیل دوي د انګرېزانو مخالفت کړے دے انګرېزانو د بدنیتۍ نه په دوي پسې دا خبرې خورې کړې دي. په

۱۹۸۰ء کښې د باچاخان نه تپوس وکړو چې پښتانۀ د بهر نه راغلي دي دا راته ووایئ چې تاسو د کوم ځائے نه راغلي یئ؟ هغۀ په ډېر ښۀ انداز کښې ووې د دې خبرو علم زما مشر زوي غني خان ته دے، دا تپوس د هغۀ نه وکړه. مونږ د غني خان سره په شریکه یوه جرګه جوړه کړه په دې غرض چې د ولي خان او د هغۀ د ښځې بېګم نسم ولي خان نه خفه خلق د جرګې په ذریعه د باچاخان هغه زړې لارې ته بیا راولو.

## غني خان:

په دغه دوران کښې د غني خان سره هم ډېر نزدې پاتې شوم، تر دې حده پورې چې سحر به د هغۀ ځائے ته تلم او ماښام به ترې نه راتلم. غني خان راته انتهائي د یوې لارې سړے ښکاره شو، چې د چا په باره کښې به مې ترې پوښتنه کوله هم په هغې باره کښې به ئې ډېرې ښکاره او بې پردې خبرې کولې. نۀ ئې په ځان پرده اچوله او نۀ په بل. واقعات ئې راته بیان کړل. په ۱۹۴۸ء کښې چې څۀ وخت زمونږه قبائیلي ورونړه او د پاکستان فوج کشمیر کښې په جنګ بوخت وۀ، تقریباً کشمیر ئې فتح کړے وۀ. په دغه دوران کښې ماله د دیر نواب او د باجوړ نواب دواړه راغلل. هغوي ووئیل: زمونږه سره اتیا زره باوسله فوج شته دے او د پاکستان لښکر ډېر فوج په کشمیر کښې اړم دے، کۀ تاسو په حقیقت کښې د پښتنو ازادي غواړئ او پښتونستان جوړولو ته مو خیال وي، نو دا وخت دے. غني خان ووئیل ما هغوي ته ووې زۀ هم د پښتون زلمي مشر یم، ما د دې مقصد د پاره هغوي تیار کړي دي، راځئ چې ورځو د باچاخان نه په دې باره کښې تپوس وکړو. سره د هغه دوو نوابانو مېلمنو باچاخان له ورغلو او دا خبره مو ورته وکړه. باچاخان ووئیل: غني وایه ستا په دې باره کښې څۀ خیال دے؟

ما ورته ووې زما هم دا خبره خوښه ده. باچاخان ووئيل: تهٔ خو پاګل يې، زهٔ ئې دوه کول نهٔ غواړم او تهٔ ئې درې کول غواړې، زهٔ د هندوستان او پاکستان ماتول نهٔ غواړم او تا په کښې لانورې ټپې شورو کړې.

اخر د غني خان نه مې يوه ورځ دا تپوس وکړلو چې ټول پښتانهٔ د بهر نه راغلي دي، دا راته ووايه چې تاسو د کوم ځائے نه راغلي يئ؟ په دغه دوران کښې ئې زهٔ هم ډېر ښهٔ پېژندلے وم، يعني دا ورته پته وه چې د دې خبرو سره سره به دې زما نه تصديقونه هم غواړي. درې ورځې مسلسل مونږ د انګرېزانو په دې خبرو پسې ګرځېدلو، چې انګرېزانو پښتنو له زمکه ولې نهٔ ورکوله؟ د پښتنو تاريخ غني خان ته ډېر ښهٔ معلوم وهٔ او په دې خبره مونږه دواړه متفق وو چې پښتنو د زرګونو کالو په تاريخ کښې خپلې ټولنې له ډېر ښهٔ معاشي او سياسي نظام ورکړے دے. يو پښتون هم بې کوره او بې زمکې نشته دے. مخکښې د غټو غټو قومونو وېش شوے دے. بيا د هر قوم د افرادو په تعداد خېلونو ته زمکې حواله کړې دي او خېلونو په خپلو کښې د انغري په حساب يو کور ته خپله حصه رسولې ده او دې شريکي زمکې ته مونږ شاملات وايو. ځکه چې د شاملات نه نهٔ څهٔ خرڅېږي او نهٔ ترې نه د هغې قومونو د افرادو نومونه وځي. ځکه چې د ټولو قومونو مقبرې شريکې وي. ما غني خان ته ووې چې نهٔ ستاسو شاملات شته او نهٔ ستاسو مقبرې شته دے، دا راته ووايه چې تاسو د کوم ځائے نه راغلي يئ؟ غني خان ووې چې زهٔ به په چُټي کلي ته راغلم نو زما نيکهٔ بهرام خان بابا له چې به کله څوک ملګري راغلل نو هغهٔ به خپلو ملګرو سره خبرې فارسۍ ژبه کښې کولې، ځکه چې هغه د فارسۍ په ليکلو وئيلو ډېر ښهٔ پوهېدو. هغهٔ په دې باره کښې ماته دا رنګ قيصه کړې وه چې مونږ د روس موجوده حکومت ازبکستان او تاجکستان

چې پښوا ئې ورته ثمرقند او بخارا وئیل، په دغه ځائے کښې اکثریت د مسلمانانو وۀ. دوه درې سوه کاله مخکښې په دغه ځائے کښې مسلمانانو عالمانو په فقو باندې جنګونه شورو کړل او مونږ لړ تعلیم یافته او ازاد خیال وو نو ځکه مونږه خپل ځان په دغه جنګونو کښې ملوث نۀ کړلو. په دغه وجه مونږ کابل ته راغلو، کابل کښې د محمدزو بادشاهانو د درباریانو په حېث بېوروکرېټ وساتلو، سل یو نیم سل کاله مونږ دوي سره پاتې شولو. د محمدزو بادشاهانو به په پښتنو باندې اعتبار نۀ کولو ځکه چې په کورونو کښې به هر وخت خپلو کښې مشت و ګرېوان وو. چونکې مونږه د بهر نه راغلي خلق وو، په مونږ ئې اعتبار کولو، زمونږه نه ورته څۀ خطره هم نۀ وه. بهرام خان بابا وئیل چې د سیکانو په دور کښې محمدزو بادشاهانو او سیکانو ترمېنځه دا خبره وشوه چې تاسو ته به کشمیر پرېږدو او پېښور زمونږه د یخنۍ دارالخلافه ده، زمونږه قوم دے زمونږه پښتانۀ دي، پېښور به مونږه ته پرېږدئ. بهرام خان بابا ووئیل زما نیکۀ ئې په دې غرض ولېږلو چې پېښور ته لاړ شه، د پېښور، مردان، صوابۍ ملکان او خانان ووینه او د هغوي نه د ځان سره خلق هم راواخله، په پېښور کښې زمونږه د پاره یوه حکومتي ډانچه جوړه کړه.

هغۀ د اووۀ اتۀ کورونو د کډې سره د پېښور، مردان او صوابۍ ملکان او خانان لیدل کتل شورو کړل. چرته لس ورځې مېلمستیا، چرته شل ورځې مېلمستیا، د هغې نه پس هشتنغر ته راغلل. په اتمانزو کښې ئې د محمدزو خواجي خېلو سره ملاقات وشو. د خواجي خېلو مشر ورته ووئیل چې تۀ خو وایې چې د سیکانو سره ټوله مسئله طے شوې ده، د هغوي په ځائے خو انګرېزان راغلي دي ناست دي او د ځان د پاره ئې حکومتي ډانچه هم جوړه کړې ده. فوج ورسره دے،

ټوپک ورسره دے، توره ورسره ده، آیا مونږه چې پېښور ته ورځو نو مونږ به د دوي سره جنګ کوو او کۀ مونږه ته به هسې حکومت پرېږدي؟ د دې په ځاے په خپله کابل ته لاړ شه، د کابل هغې بادشاه ته دا خبره تر غوږو کړه، چې سیکان خو د پېښور نه تلي دي، د هغوي په ځاے انګرېزان راغلي دي او قابض شوي دي.

بهرام خان بابا وئیل چې زما نیکۀ دغې مشرانو ته ووئیل چې کابل ته نۀ ځم د دې په ځاے پېښور ته انګرېزانو له ولې نۀ ورځم. دغې مشرانو ورته ووې انګرېزان په ټوله دنیا خوارۀ دي او هغوي تا نۀ مني او کۀ تۀ ورشې یا به دې بند کړي او یا به دې پانسي کړي. بیا هم هغۀ دا خبره ونۀ منله البته دا ئې ووئیل کۀ زۀ ئې بندي او یا پانسي کړم نو چې تاسو نه څوک خبر نۀ شي چې دې زمونږه د کورنۍ نه دے او یا ئې دلته کډه پرته ده. لنډه دا چې انګرېزانو له په دې باره کښې د خبرو اترو کولو د پاره پېښور ته ورغے او دا خبرې ئې ورته ترمخې کړې. انګرېزانو ورته په جواب کښې ووې زمونږه خو د کابل بادشاه سره دا خبره طے شوې ده او هغۀ زمونږه د پاره څوک د خبرو اترو کولو د پاره رالېږلي هم نۀ دي. بهرام خان وائي چې زما نیکۀ ئې په جېل کښې بندیوان کړو. څۀ موده پس جېل کښې په حق ورسېدو. د هغې نه پس چې خواجي خېلو مونږه ته پناه راکړې وه، هغوي زمونږه سره لوښے شریک کړلو. خواجي خېل د دې ځاے په خلقو کښې تور او غنم رنګ خلق وو. مونږه د هغوي ښځې ونۀ کړې او هغوي زمونږه نه ښځې وکړې او مونږه ته ئې هم خواجي خېل ووې، نو ځکه په شاملاتو کښې د ښځو نومونه نۀ وي، د هغې وراثت په سرو پسې خېژي، ځکه زمونږ د مشرانو نۀ په شاملات کښې نومونه شته او نۀ ئې مقبرې شته دے.

## یوه بله واقعه:

زهٔ تحصیل ته د خپلو زمکې د معلومات د پاره تلے. وم تحصیل راته وئیل چې مخکښې شجره راواخله ما ورته وې شجره کوم ځائے وي هغهٔ وې د مال خانې سره خوا کښې کوټه ده د هغې نه راواخله. زهٔ چې ورغلم نو په هغه کوټه کښې يو بوډا سړے ناست وهٔ، چشمې ئې اچولې وې اخبار ئې کتلو. ما ورته وئيل زهٔ د غني خېلو شجرې پسې راغلے يم. هغهٔ راته وئيل چې څهٔ سبق دې وئيلے دے ما ورته وې څهٔ لږ ډېر مې وئيلے دے. هغهٔ راته وئيل دا ټول غټ غټ كتابونه د شجرو دي دا راواخله او خپله شجره په كښې ځان له ولټوه. ما چې د ټولو نه د پاسه كتاب راواخستو او په كرسۍ ورته كښېناستم كتل مې په هغې كښې په وړومبۍ صفحه د غني خېلو شجره وه. او په هغې كښې وړومبے نوم هم د شهبازخان وهٔ چې زمونږ د نيكهٔ نيكهٔ وهٔ. ما هغه سړي ته ووې چې دا خو ډېره په اسانه پېدا شوه دا خو په وړومبۍ صفحه باندې وړومبے نوم دے. هغهٔ چشمې كښېښودې او په منډه بهر ته ووتو. دوه تحصيل داران او هغه موجود ګرداوران او پټواريان ئې هم راوستل او ماله ئې د چائې او كېك ووې، ټولو سره ئې زما تعارف وكړهٔ چې زمونږ ځائے ته په وړومبي ځل د شهبازخان نمسے راغلے دے. ما ورته وئيل كاكا په شهبازخان كښې څهٔ چل وهٔ هغه مسكے شهٔ او وئيل ئې چې د هشتنغر يولس زره كسان ئې وژلے وو. ما ورته وې دومره غټ الزام راباندې مهٔ لګوه. هغهٔ وئيل دا خو د فخر خبره ده چې د ټول هشتنغر خلق ستاسو د نيكهٔ په مشرۍ كښې تلي وو او ټول شهيدان شوي وو. مونږ ته د انګرېزانو دا حكم وهٔ چې د دوي ټولې زمكې ضبط كړئ خو پټواريان هم ټول د هشتنغر وو او هغه ئې د خپل مشر په حېثيت منلو نو انګرېزانو ته به ئې وئيل چې مونږه د

هغوي ټول جائيداد ضبط کړے دے تش په شاملات کښې پاتې دے او د شاملات نه ئې مونږ نوم نۀ شو ويستې. ستاسو د نومونو ساتلو د پاره انګرېزانو ډېر پټواريان د نوکرۍ نه ويستلي دي او سزاګانې ئې ورکړي دي نو کۀ څوک مو پېژني او کۀ نۀ پېژني خو مونږ مو ډېر ښۀ پېژنو او پکار دي چې تاسو هم مونږ وپېژنئ. د نن سبا پټواريان چا سره هيڅ بې هڅه ښۀ نۀ کوي خو مونږ تاسو سره ټول عمر ښۀ کړي دي ځکه چې مونږ ته دا پته ده چې دا د ټول هشتنغر د مشرۍ کور دے.

زۀ د هشتنغر د خلقو په ځان احسان منم، دا شجره د دې د پاره ورکوم چې زمونږ د نيکۀ شهبازخان هغه وخت د هشتنغر مشر وۀ. هغه وخت کښې دا رواج وۀ هر قوم چې به خپل مشر خوښوۀ نو د نغري په سر يو ووټ وۀ. دغسې دغه وخت د ټولو نه زيات ووټونه د غني خېلو وو. مونږ غني خېل يُو او دلته راته خلق ټل صافرخېل وائي. د نغري په سر يو ووټ په حساب د غني خېلو ووټونه زيات وو، دوېم نمبر د پائنده خېلو وو دا دواړه د باقي هشتنغر د ووټونه نه زيات وو. دا دواړه چې يو د پړانګ سره تعلق ساتي او بل د چارسدې سره، چې دواړه د جيندي په غاړه پراتۀ دي. زمونږ نيکۀ شهباز خان د۱۸۵۷ء جنګ له چې کوم خلق د دې ځاے (هشتنغر) نه د جهاد په نوم تلي وۀ، د هغوي مشري کړې وه او سره د ټولو وروڼو په جنګ کښې شهيدان شو. د دوي يو تربور چې په زخمي حالت کښې واپس رارسېدلے وۀ، د پائنده خېلو د مومن خان په ډاګ کښې ئې د ټول هشتنغر جرګه په دې غرض راوغوښته چې حسبِ وعده د پائنده خېلو نه د ټولو مشرانو په وړاندې نوے مشر خوښ کړو. په هغې کښې ډېر کم خلق راغلل. هغوي د استازو نه تپوس وکړۀ چې دا خلق ولې دومره کم راغلل. په هغه جرګه کښې په حقيقت کښې ۲۲ کسان راغلي وو. هغوي ورته وئيل چې

کومه دروازه ډبوو نو ښځې راوځې او وائي چې سړي جهاد له تلي او
واپس نۀ دي راغلي. دغه شان په هغه جرګه کښې د مشر خوښولو څۀ
فېصله ونۀ شوه او بلې هفتې ته وځنډولې شوه او صرف دا فېصله
وشوه چې بلې جمعې له به د هر کور نه يوه مشره زنانه او د ټولو نه
لوے ماشوم راځي او بيا به مشر خوښوو. دغه شان بلې جمعې له د
مانځۀ نه پس بيا جرګه وشوه. دا ډېره تاريخي جرګه وه ځکه چې دغه
جرګې له ۱۲۰ زنانه هم راغلې وې صرف ۲۲ کسان په کښې لوے وو
چې اووۀ (۷) د خواجي خېل، ۷پريچ خېل او اتۀ (۸) د کنال خېل نه وو او
درې سوه (۳۰۰) هغه ماشومان هم راغلي وو چې عمر ئې د دولسو
کالو نه زيات نۀ وۀ دا ځکه چې د ديارلس څوارلس کالو هلکان هم
جهاد له تلي وو او واپس نۀ وو راغلي. مشرانو وئيل چې مونږ خو د
پائنده خېلو نه مشرى له سړے خوښوۀ خو د دولس کالو نه زيات
ماشوم په کښې نشته. ځنې خلقو وئيل چې دې دويشت کسانو نه يو
کس خوښ کړئ ځکه چې هم دا موجود زلمي دي دا مشران دي. خو
هغوي وئيل چې دوي جهاد له نۀ دي تلي او زنانوو هم وئيل چې دوي
خو جهاد له نۀ دي تلي دوي نه مشر نۀ اخلو. مشر ورته هم ووئيل چې
څوک جهاد له لاړ نۀ شي هغه د مشرى قابل نۀ وي البته دا زنانه مو دې
له راغوښتې دي چې پښتون لور خور د ورکړو شے ګڼي او چې څوک ئې
په طريقه وغواړي هغوي له ئې ورکوي. خو چې انګرېزانو چاله
جائيدادونه ورکړي دي نو دا ټول جائيدادونه دوي زمونږ د دې ځاے د
پښتنو نه اخستي او ضبط کړي دي ځکه نو اوس زمونږ زلمي مړۀ دي
په دې وجه د دولس کالو نه لوے هلک نۀ وۀ، زمونږ کورنى ته مشري
پاتې شوه اودا فېصله وشوه چې لس دولس کاله پس به بيا مشر وټاکو.
في الحال مشر ځکه نۀ جوړوو چې انګرېزانو له بيا موقعه نۀ ورکوو

چې خپل ماشومان پرې مړه کړو او جائیدادونه رانه هم ضبط کړي دغه وجه وه چې مشري په کوم کور کښې وه هم هغې کښې پاتې شوه.

په دغه زمانه کښې زمونږ په علاقه کښې هوټلې نۀ وے، چې د یو ځائے نه به څوک راغلل نو تپوس به ئې کوۀ چې د مشرۍ حجره کوم ده؟ یعني مېلمه به د مشرۍ حجرې ته تللو. هغه د مشرۍ حجره د شهبازخان نه په وراثت کښې مونږ ته پاتې شوې ده او هغه هم دا موجوده حجره ده، دې د مشرۍ حجرې ته به د ټول هشتنغر نه غله راتله. تنګي، عمرزو، اتمانزو وغېره دا ځکه چې د هر ځائے مېلمه به اول حجرې ته تلو، هلته نه به ورسره سړے ملګرے شۀ او بیا به مخکښې په کار پسې ورتلو.

د شهبازخان نیکۀ او د هغۀ د ورونړو نه انګرېزانو ټول جائیداد ضبط کړۀ چې دۀ خو د جنګ مشري کړې ده او د هغه وخت سره بلها قیصې او چاربېتې د شهبازخان په مرګ لیکلې شوې وې چې داسې په نرتوب باندې مړ شوے وۀ. د شهبازخان نمسے چې فریدخان ئې نوم وۀ او زمونږ نیکۀ وۀ۱۹۳۵ء یا۱۹۳۶ء کښې په هندوستان کښې قحط راغلے وۀ غله نه وه، زما نیکۀ سره ډېر زیات غنم وو. هغۀ د پړانګو نه ټول غنم په خرو بار کړل، بابړه، چارسده، د چارسدې نه قاضي خېل رغړې، په خپله به ئې دروازه ډبوله، زنانه نه به ئې تپوس کولو چې په کور کښې څومره کسان دي. د سړي په سر درې غنم وو. څۀ وخت چې په قاضي خېلو کښې د غنمو دا وېش کېدۀ نو د هغې سره خوا ته کچرۍ دي، کچرو کښې اسسټنټ کمشنر نه ډپو هولډرز مطابله کوله چې غله پکار ده. هغۀ ورته وئیل چې په هندوستان کښې قحط دے اوړۀ نشته نو یو بیلف (اواز کولو واله، اردلي) ورته ووئیل چې دلته کښې یو خان دے او هغه دې هغه په قاضي خېلو کښې هسې

غنم وېشي. اسسټنټ کمشنر پولیس والا ولېږل چې لاړ شئ او دې ګرفتار کړئ او ماله ئې راولئ. چې هغه ئې راوستهٔ نو کمشنر ترې تپوس وکړهٔ چې تهٔ څوک يې؟ خپلو ټولو ماتحتانو ورته ووئیل چې دا د شهبازخان نمسے دے هغهٔ ورته وئیل چې د شهبازخان نه خو مونږ ټوله زمکه اخستې ده، تا سره دا غنم د کوم ځاے نه راغلل؟ هغهٔ ورته وئیل چې زمونږ د مشرۍ کورنۍ ده د ټول هشتنغر نه خلق زياتي غنم راوړې ماسره ئې ږدي، نن په ملک کښې قحط دے دا د دې خلقو امانت دے اوس ئې وخت دے چې دا خپل امانت واپس ورکړم. هغهٔ ورته وئیل دوه کاله مې قېد کړې او شل کوړې ئې د خلقو مخکښې ووهئ او په ټولو کلو کښې ډنډوره وغړوئ او پولیس واله دې اعلان وکړي کهٔ دهٔ له چا غنم راوړهٔ نو هغه به هم دوه کاله قېد وي او جرمانه به هم ورکوي. خو د دې باوجود د ۱۹۴۵ء پورې خلقو دغه غنم، جوار، ګوړه وغېره هرڅهٔ راوړل. خبر د کوړو د پاره ئې خلق راغونډ کړي وو چې د خلقو مخکښې ئې ووهئ. پولیس والوو او څنې انګرېزانو اسسټنټ کمشنر ته ووئیل چې بوډا سړے دے په کوړو به مړ شي او د شګو بوجۍ پرې وچلوئ. د شګو بوجۍ ئې ډکې کړې او هغه ئې پرې چلولې. څنې خلق به خوا له ورغلل او د شګو دغه بوجۍ کښې به ئې سُورې کول چې شګه ترې کمه شي او بوجۍ اوړل ورته اسان شي. د دې نه علاوه چې ښځو او ماشومانو به ورته ژړل نو هغهٔ به ورله طبعه تسلي کوله او ورته به ئې وئیل چې خبر دے په غلامۍ کښې داسې کېږي. دا خبره زهٔ ځکه کوم چې د هشتنغر د خلقو هغه احسان اوس هم زمونږ یاد دے.

CamScanner

## هشتنغر کښې مزدور کسان پارټي:

افضل خان بنګش اوشماس خان چې دجنوبي هشتنغرد مزدور کسان پارټۍ صدروۀ او دبنګش صېب سېکرټري او يو نژدې ملګرے چې ملا کښې ئې غونډۀ وۀ، د مېنې نه به ورته مونږه قوبا وئيلو، زما حجرې ته راغلل او وئيل ئې سباله په لاهور کښې د پارټۍ مېټنګ دے او دې نورو ملګرو له مې د موټر چلؤل نۀ ورځي دې کښې به هم امداد وکړے او په لاهور کښې به د پارټۍ د نورو ملګرو سره هم ملاؤ شې. په لاره مې ورته وئيل چې زما خو دا خيال وۀ چې زمونږه ملګري خو د دې صوبې تر حده پورې دي. هغۀ ووې په ټول پاکستان کښې زمونږ ملګري شته دے خو د دې صوبې دا ښۀ فعال ملګري دي او بيا دا تحريک خو ستاسو د هشتنغر نه شورو شوے دے او د ټولو نه ښۀ او فعال ملګري هم په شمالي هشتنغرکښې دي. ماوئيل دا څۀ وجه ده چې دشمالي هشتنغرتحريک دټولونه ښۀ روان شو او څۀ رنګ روان شولو؟ هغۀ وئيل چې زۀ مخکښې د نېشنل عوامي پارټۍ غړے وم چې د نېشنل عوامي پارټۍ د سنټرل کمېټۍ د وېنا مطابق مې يوه کسان کمېټي جوړه کړه چې په کوموعلاقوکښې مالکان دکسانانوسره زياتې کوي نو مونږ به د کسانانو امداد کوو او هغوي سره د زياتي کولو مخ نيوے به کوو. د دې دپاره مونږيوائين هم جوړکړو او د دوي په ملګرتيا باندې ډېر کسانان په نېشنل عوامي پارټۍ کښې هم شامل شول ځکه چې زما غوندې وکيلانو به ورله مفت کېسونه کول. په دې دوران کښې د نېشنل عوامي پارټۍ په خپلو کښې الېکشن راغے چې په هغې کښې دجرنل سېکرټري توب دپاره زمااو د اجمل خټک نومونه خلقو وړاندې کړل. ارباب سکندر او الياس باچه او ځنې نورو ملګرو زما د نامې په دې وجه باندې مخالفت وکړلو چې دۀ د مزدور کسان په نامه باندې بله

پارټي جوړه کړې ده چې د هغې خپل اٰئین هم شته دے چې دې ئې په خپله مشرد ے. نو یو سړے په دوو تنظیمونو کښې نۀ شي پاتې کېدے اونۀ د دووپارټو عهد ېدارکېدے شي. الیاس باچه وئیل چې دۀ له پکار دي چې یوه پارټي پرېږدي. ماجواب ورکړوچې دا تنظیم خو په مابانديې هم دې پارټۍ جوړ کړے وۀ او د دې ټول غړي کسانان ډېر کلک قوم پرست دي او د نېشنل عوامي پارټۍ غړي هم دي او په ډېره مینه ئې ماته د خپل وکالت په وجه مشري راسپارلې ده. اوس دا رنګه خلق زۀ څنګه په ډاګه پرېږدم خوستاسوهم ډېر مشکور یم چې تاسو په مابانديې د مزدورانوکسانانو د پاره پارټي جوړه کړه، تاسو ته دے د دې پارټۍ جرنل سېکرټري توب مبارک شي، زۀ اوس هم قوم پرست یم بیا به هم قوم پرست یم او تر خپله وسه به تر مرګه پورې د دغه خلقو امداد کوم.

الیاس باچه ډېره موده پس د دې خبرې تصدیق وکړلو چې ولي خان ماته وئیلي وو چې دا یو مضبوط او خُلۀ ور سړے دے، هوښیار هم دے، مونږ د پاره اجمل خټک غوندې سړے ښۀ دے چې مونږ ورته څۀ وایو چې هغه شان کوي.

بنګش ووئیل چې دتنګي د علاقې د کسانانو ټول کېسونه زما تر لاسه وو. دې کښې د واوا خان د کورنۍ د څلور سوو جریبونو کسانے هم وۀ. په دیواني کېسونوکښې تاریخونه ډېرزیات ورکوي. د تاریخونو دپاره به مالک هم راتللو او کسان به هم راتللو. د ډېرو تاریخونو نه پس مالک ډېر په غصه کښې دننه تر مجسټرېټ راغے وئیل ئې چې دا شلم تاریخ دے او دا خوشي تشي مهمندان دې زما مقابله کښې ودرولي دي او فېصله نۀ کوي. اخر زۀ د دې علاقې یو پښتون خان یم ټولو خلقو ته پته ده چې دا زمکه زما ده. ما ورته وئیل خان! دا خبره دوباره وکړه څۀ دې ووې؟ هغۀ دوباره ووې چې زۀ د دې

علاقې خان او پښتون يم. ما وئيل چې خان تۀ هم واوره او دا مجسټرېټ دې هم واوري، زۀ ستا مخالف وکيل يم او د دوي د کېس واک اختيارزماسره دے، کۀ تا چرې دا ثابته کړه چې تۀ پښتون يې نو بيا دا زمکه ستا ده، زۀ ئې بغېر کېس درته پرېږدم. په هشتنغر کښې محمدزي اباد دي، تۀ په محمدزو کښې دکوم قوم سره تعلق لرې؟ بياراته وښايه چې ستا د قوم شاملات په کوم ځائے کښې دے او ستا د قوم مقبره په کوم ځائے کښې ده؟ ځکه چې مقبره هم شاملات دے ده. زۀ وکيل يم ما ستا د کېس په حواله ټول کاغذات کتلي دي او زماسره اوس هم موجود دي. په دې ځائے کښې خوستاسودخاندان نومونه په شاملاتوکښې نشته اونۀ ستاسوقبرستان شته. خو خبر دے پښتنو قومونو ټولو د يو ځائے نه تر بله ځايه هجرت کړے دے او دا قامونه د "أمو" نه تر "جهلمه" پورې او د "چترال" نه تر "بولانه" پورې پراتۀ دي، کۀ ستا قوم بل ځائے هجرت کړے وي او تا په هغه علاقه کښې د خپل قوم نامې او شاملات راپېدا کړل، چې ستاسو قبرستان په کښې هم وي نو تۀ بې شکه پښتون يې او دا زمکه به هم دغسې تاته پرېږدو. تاخو ووئيل دا خوشي تشي مهمندان دي، د دوي په مهمندو کښې خپل قوم هم شته دے، شاملات ئې هم شته دے او اوس هم خپل مړے د دې ځائے نه مومندو ته اوړي او په خپل قبرستان کښې ئې ښخوي. کۀ تا چرې ثابته نۀ کړه چې تۀ پښتون يې نو دا خو پښتانۀ دي، بيا دا زمکه دوي ته پرېږده.

خان ووئيل دا خو به زۀ سبا له ثابته کړم او کۀ ثابته مې نۀ کړه نو دا زمکه به دوي ته پرېږدم. مجسټرېټ شل ورځې پس تاريخ ورکړلو. د تاريخ نه دوه ورځې مخکښې خان زما تر دفتره راغے، او وې وئيل چې څومره رقم دې پکار وي نو زۀ به درکړم خو زما حيا راوله. ما

ورته ووې زۀ خو ستا د مخالف فریق وکیل یم او اوس ستا حیا هم په دې کښې ده چې د تاریخ په ورځ راشې او مجسټریټ ته ترمخه شې چې ما په خپله خوښه دا زمکه دې کسانانو ته پرېښودې ده او کۀ داسې ونۀ کړې نو کېدے شي چې دا نورې زمکې درنه هم لاړې شي.

د دې کېس د کامیابۍ نه پس تقریباً هر کسان په شمالي هشتنغر کښې د خپلو خانانو په زمکو قابض شو، ما ډېرو ته ووئیل چې فقط په هغې زمکو قابض کېږئ چې هغه د نوابانو یا د داسې خانانو وي چې انګرېزانو زمکې ورکړې وي. انګرېزانو درې نسله پښتون چې څوک نۀ وۀ، هغوي له ئې زمکې ورکړې دي، چې چاله انګرېز زمکه نۀ ده ورکړې او په شاملاتو کښې ئې نامه هم شته او قبرستان هم شته، دغه هم ستاسو غوندې پښتانۀ دي. دوي په خپله زمکه باندې خپل سر هم ماتوي او یا به پرې ستاسو سر ماتوي، خو تحریک وۀ چې یو ځل روان شولو نو بیا چا جائز او ناجائز ته نۀ کتل، وارۀ وارۀ مالکان په کښې هم چا ونۀ بخښل. په شمالي هشتنغر کښې په یو تقریر کښې مې یوه ورځ کسانانو ته ووئیل چې تاسو خو دیاړي مارو سره ډېر ظلم کوئ، دوي د خانانو او د خانانو د ناظرانو بلد دي، خانان او د هغوي ناظران په ګوډ چارې نۀ پوهېدل او نۀ د څخکورې په وهلو پوهېدل، تاسو خو په خپله دا کارونه کړي دي او په دې کار پوهېږئ، اوس تاسو د مزدور په سر ولاړ یئ څرمن ترې وباسئ. زما په خیال د پښتنو په زمکو ورتلل وارۀ مالکان شوکول او دیاړي مارو او مزدورکارو سره غلطه رویه ساتلو په وجه دا تحریک ختم شو.

د صوابۍ د یو پښتون قیصه ئې وکړه څوک چې د خپل کور ګاونډ سره هر وخت په جنګ او په جدل وۀ. انګرېزانو ووئیل داسې سړے هم زمونږ ملګرے جوړېدے شي. هم په دغه غرض ورغلل، هغۀ

ته ووئیل چې په دې خپله کوټه وخېژه، چې ستا تر کومه حده پورې نظر لګي، ورسره ستا د مخالفو څومره زمکې چې وي هغه ټوله زمکه به تاله درکړو. هغه پښتون انګرېزانو ته په دې باره کښې ووئیل چې تاسو زما دومره خوا خُوږي یئ نو ماله دلته دومره زیاته زمکه مه راکوئ، د دې په ځائے په لندن کښې لږه زمکه راکړئ، نو زۀ به ستاسو ډېره شکریه ادا کړم. دلته خو دغه زمکې زما د وروڼو تربورانو زمکې دي، دلته ستاسو څۀ کار نشته، ځکه چې زمونږه دشمني او دوستي په دې پولو جوړېږي او هم په دې پولو ختمېږي. دغسې د ایسټ انډیا کمپنۍ مشرانو انګرېزانو چې څۀ رنګ د هندوستان په نورو صوبو کښې لکه پنجاب، سندھ، بلوچستان کښې خلقو له جاګیرونه او نوابۍ ورکړې دي، دغه شان خبرې اترې ئې د زمکو او جاګیرونو ورکولو پښتنو سره هم شورو کړې وې، خو پښتنو ترې نه انکار وکړو. پښتنو ووئیل چې مونږه خو په پولو او ډېرانونو باندې شل شل کاله د یو بل سره دشمنۍ پالو او چې یو پښتون د بل پښتون زمکه واخلي نو ژوند به څۀ رنګ تېروي؟ انګرېزانو چې دا خبرې واورېدې یو بل ته ئې وکتل او وې وئیل: یو پښتون د بل پښتون زمکه نۀ اخلي هسې به هم دا زمکې مونږه غېر پښتون له ورکوو، د دې ځائے پښتون له به سزا ورکوو.

مونږ ترې نه پوښتنه وکړه اخر کومه سزا او څۀ رنګ سزا به ورکوئ؟ هغوي ووئیل د دوي د ماشومانو نه به پښې لاسونه پرې کوو، د هغه وخت کمشنر ورته واضحه کړه چې دا ظلم زما د لاسه نۀ کېږي. هغوي ورته ووئیل چې زمونږ مطلب د ماشومانو نه لاس پښې پرې کول نۀ دي، بلکې د دوي نه د امدن ذریعې ختمول دي یعنې دا زمکې ترې نه اخستل دي او خپلو هغه ملګرو له ئې ورکول دي، څوک چې درې نسله پښتانۀ نۀ وي او چې زمونږه بادشاهۍ له تقویت ورکوي او زمونږ

سره د امداد کولو وعدې وکړې. په دې کښې ایسټ انډیا کمپنۍ هغه زاړۀ کسان چاچې ۱۸۵۷ء نه مخکښې په اېډمنسټرېشن کښې حصه اخستې وه، هغوي ووئیل فکر مۀ کوئ، پښتانۀ هسې هم د یو بل زمکې نۀ اخلي او لا دا ټپه هم کوي چې مونږ د یو بل پولې ووهو بیا پرې نسل تر نسل د یو بل سره دشمني پالو.

"هشتنغر کۀ خورې او کۀ نۀ خورې بده ئې مۀ وایه" دا خبره ما په بنو کښې د وزیرو مسیدو نه اورېدلې ده. ما به د هر چا نه دا پوښتنه کوله چې دا متل د څۀ د پاره شوے دے؟ او د دې متل پس منظر څۀ دے؟ هغوي به وئیل د هشتنغر وسېدونکے خو تۀ یې پکار دي چې دا معلومات تاته وي.

بیا مې د صاحب الرائې مشرانو نه هم پوښتنه وکړه، خو چا هم مطمئن نۀ کړم. په دې دوران کښې زما ترۀ چې سخر مې هم وۀ خواجه محمدخان، چې د مشرۍ په وجه به ترې نه مونږ ډېر تپوسونه هم کول او د زړۀ مریض هم وۀ، ایل ایل بي ئې د علي ګړه نه کړې وه. د پېښور په وکیلانو کښې د دیوانو ډېر ښۀ وکیل ګڼلے شو. په هغه وخت کښې په پېښور کښې د زړۀ د مریضانو څۀ انتظام نۀ وۀ، هغۀ له ډاکټرانو مشوره ورکړه چې د دې د پاره لاهور ته لاړ شه. د هغۀ د زړۀ د ټسټونو د پاره یو زۀ دوېم ډاکټر تاج محمدخان د هغۀ زوے سره د ډرائېوره تر لاهوره روان شولو. تر لاهوره د اتو ګېنټو سفر وۀ، ما د هغوي نه د دې متل په باره کښې پوښتنه وکړه. تر لاهوره ئې ووئیل د دې خبرې خو ډېر اوږد تاریخ دے، زما سره موجوده کتابونه نشته خو چې کومه یو خبره درته کوم د هغې به پوره پوره حواله درکوم. هغوي چې تر لاهوره پورې ماته کومې خبرې بیان کړې، زۀ ئې خپلو لوستونکو ته ترمخه کوم:

په ۱۸۵۷ء کښې په هندوستان کښې ټول مسلمانان راپورته شول د انګرېزانو نه ئې د ځان ازادولو جنګ وکړلو. د هغه جنګ حوالې لارډ کرزن په خپل کتاب کښې ورکړې دي. انګرېزانو د جنګ د خپلو فائدو او نقصاناتو په ۱۸۵۸ء او ۵۹ء کښې خپلو مشرانو ته لندن ته دوه رپورټونه لېږلي وو. هغوي د کمشنرانو په اولني ميټنګ کښې چې چارسده د پېښور سب تحصيل دے، چې د هغې نيمه حصه هشتنغر دے او نيمه حصه ئې دوابه ده، د ټولې چارسدې ابادي يولاکه نه کمه ده، هشت د فارسي لفظ دے اتو ته وائي او نګر ښار ته وائي، نو دا د اتو کلو ښار دے. په دې کښې تقريباً د شپږو زرو خواوشا کورونه دي. هغوي ووئيل زمونږه مشرانو به وئيل د ۱۸۵۷ء په جنګ ازادئ کښې به مونږه مړے په اړخ اړولو او د زخميانو نه به موتپوس وکړو چې دا د کوم ځاے دے هغوي به ووئيل دا د هشتنغر دے. د ۱۸۵۷ء او ۵۹ء په رپورټونو کښې ئې څۀ دا رنګ تفصيل ورکړے دے چې څومره پښتانۀ، د کوم کوم ځاے نه په مونږ پسې د جنګ د پاره راغلي دي، د هشتنغر نه ۱۱۰۰۰ کسان، په دې کښې د ويزرو مسيدو نه ۵۰۰۰ کسان، د مهمندو نه ۳۰۰۰ کسان، د مردان صوابئ نه ۲۵۰۰ کسان، د پېښور نه ۲۷۰۰ کسان، بنو نه ۲۲۰۰ کسان، د سوات بونېر نه ۲۵۰۰ کسان، دوابې نه ۲۰۰۰ کسان. هغوي به وئيل دا څۀ رنګ لېوني دي چې د شپږو زرو کورونو نه په مونږه پسې ۱۱۰۰۰ کسان د جنګ د پاره راځي؟

دهغې نه پس دبرطانيه حکومت دافېصله وکړه چې هندوستان د سرو زرومرغئ ده، دلته به باقي حکومت مونږه په خپله کوو. د هغې نه پس دبرطانيې حکومت دملکې په نوم جوړشو.هغوي اېډمنسټرېشن ښۀ کولو دپاره هندوستان په ډويژنونوکښې تقسيم کړواو د هريوډويژن ئې يو

يو كمشنر مقرر كړو. په پېښور د وړومبي كمشنر د خلې وېنا ده چې انګرېزانو به وخت په وخت مانه د هشتنغر تپوسونه كول، چې هشتنغر څۀ ته وائي؟ هشتنغر كوم ځاے دے؟او په هشتنغر كښې ابادي څومره ده؟او كورونه ئې څومره دي؟ هم دغه كمشنر ته خپل مشر ووئيل چې ستا د خُلې وېنا ده، چې هشتنغر د اتو كلو ښار دے، پكار دي چې دلته اتۀ خانۍ او نوابۍ جوړې كړې، نو د ايسټ انډيا كمپنۍ كسانو ورته وليكل چې موجوده خو مونږه پنځۀ نوابۍ جوړې كړې دي. په دې كښې څلور نوابان غېر پښتانۀ دي او يو په كښې نسلي پښتون دے لكه درانيان. اوس ستاسو خوښه ده كۀ دا نوابۍ ترې نه واپس اخلې او كۀ نۀ اخلې. مونږ په دې مصلحت دا نوابۍ وركړې دي، كۀ د دې درانيانو د كورونۍ نه يو سړے راپاڅي او ټولو پښتنو ته بلنه وركړي چې راځئ د انګرېزانو خلاف جنګ كوو، نو پښتانۀ اوس هم دوي خپل مشران مني، نو هر وخت د دوي سره راپاڅي. مونږ په دې زمكو باندې دوي غلي كړي دي. هغه مشر انګرېز ورته ووئيل مياګان، سېدان خو دا خلق هم د اسلام په نامه راپاڅولے شي دوي له به هم څۀ نه څۀ وركول پكار وي. نو ايسټ انډيا كمپنۍ والا ووئيل سوچه سېدان خو ډېر سخت دي لكه د پښتون زمونږ د لاسه يو څيز هم نۀ اخلي. البته پيرانو، مياګانو له مونږه څۀ نه څۀ په ښو ښو ځايونو كښې زمكې وركړې دي، مونږه خوشحاله ساتلي دي. بيا د چارسدې څلور كسان نور لكه باچاخان كورنۍ، د شېرپاؤخان كورنۍ، د واوا خان كورنۍ، هغوي ووئيل دا خو اتۀ كلي دي. بيا ئې درانيانو ته چارسده خاص او د نيستې مېره، باچاخان ته اتمانزي او د اتمانزو مېره، شېرپاؤخان ته شېرپاؤ او د شېرپاؤ مېره، د عباس خان او مېجر مختيار مشرانو ته پړانګ او د پړانګو مېره، وا وا خان ته تنګے او د تنګي مېره، د اكرم خان مشرانو ته عمرزئي او د عمرزو مېره، دا ئې هم ووئيل د تنګي علاقه زياته ده، دا به

دوه خانئ کړو د واوا خان رشته دارو ته هري چند مندنې حواله کړو چې د تنګي د زمکو حصه ده. د دوسهرو طرف ته ئې داسي کورنۍ پیدا نۀ کړه، چې درې نسله پښتون نۀ وي نو هغه زمکه ئې د مردان نوابانو ته حواله کړه.

د باچا خان د دې دومره مخالفت باوجود د باچا خان د کورنۍ نه یو جرېب زمکه چا اخستې نۀ ده او نۀ کمه شوې ده. البته وخت په وخت دانعامونوپه شکل زمکه ورکړې شوې ده او زیاته شوې هم ده. کۀ دبهرام خان نیکۀ ته انګرېزانوزمکه ورکړې ده، نود باچاخان پلار بهرام خان ته د انعام په شکل کښې چېرمېښي او ورسره د چېرمېښۍ زمکه هم ورکړې شوې ده، چاچې انګرېزانو سره د ۱۸۵۷ء په جنګ ازادۍ کښې ملګرتیا کړې ده. د هغه ملګرتیا په عوض کښې چې د چارسدې کومو خانانو له زمکې ورکړې شوې دي، هغه د عجائب ګهر سره په خوا کښې د آرکائیوز په لائبرېرۍ کښې په فهرست کښې موجود دي.

## دي پهتهان:

اولف کیرو د پېښور وروستنې ګورنر وۀ چې پښتنو سره ئې بې انتهامینه وه او دپښتنود تاریخ په باره کښې ئې ډېرې ښکلې ښکلې او تاریخي قیصې لیکلي دي، کتابي شکل ئې ورکړے دے. د دۀ د دې کتاب په قیصو باندې یو ډېر ښۀ وکیل او یو ډېر ښۀ پښتون محقق، شاعر، ادیب دوست محمدخان کامل صاحب دا یوه خبره په ګوته کړې ده. هغه دا چې انګرېز په پښتنو کتاب ولې لیکي؟ د دې خبرې په حواله زۀ وایم چې دغه انګرېز له داد ورکول پکار دي، چې هغۀ خپل قیمتي وخت دپښتنودتاریخ لیکلو دپاره وویستو او دوست محمدخان کامل غوندې ښۀ وکیل او یو ښۀ پښتون دانشور ته ئې دا موقعه ورکړه چې هغه دې په دې کتاب پسې د پښتنو نور تاریخ هم وګوري.

اروابناد دوست محمدخان کامل د یو وکیل په حېث د سر اولف کیرو ډېرې خبرې غلطې ثابتوي. یوه ورځ په دیر کښې د اېف سي په لائبرېرۍ کښې "دي پټهان" په نوم یو بل کتاب مې ولوستلو خو دا کتاب اولف کیرو نۀ دے لیکلے. ځکه چې دا کتاب په ۱۹۰۵ء کښې د دوو پېرنګیانو د شلو کالو د تحقیق وروستو لیکلے شوے دے. چې د امو دریاب نه راواخله تر جهلم دریاب پورې ټول قومونه د کوم ځائے نه راغلي دي او د کله نه دلته اباد دي او د دوي یو تربله کومې کومې دشمنۍ دي او په کومو کومو ډلو کښې تقسیم شوي دي.

د هغه کتاب په سرنامه کښې د کتاب لیکونکے لیکي چې دا کتاب به فقط انګرېزان یعني اېګزېکټېو افسران ګوري، هندوستانے سړے به دا کتاب نۀ ګوري. دا کتاب د انګرېزانو په لائبرېرۍ کښې پروت دے. زمونږ فوج تر اوسه پورې د انګرېز وفادار دے، ډسپلن هم هغه دانګرېزانوساتي، چې دوي په دغه کتاب دغه سرخط ولولي نو زر هغه کتاب بند کړي. حالانکې د دې دوو کسانو ریسرچ په هندوستان د انګرېزانو حکومت مضبوطوي. دوي د پښتنو په علاقو کښې پښتانۀ خپلو کښې جنګول، دوي ته خپلې زړې دشمنۍ راتازه کول، د دوي ترمېنځ قبیلوي جنګونه تازه کول یو ډېر ښۀ کوشش دے.

د دې کتاب نه د افغانستان او پښتنو په لړ کښې ګڼ شمېر معلومات تر لاسه کېدے شي. زمونږ د محمدزو په لړ کښې وائي چې په قندهار کښې د دوو قبیلو تر مېنځ د جګړې په ترس کښې مشرانو محمدزي د قندهار نه د هشتنغر سیمې ته راواستول. په دغه کتاب کښې لیکلي شوي دي چې د محمدزي د قندهار نه دې هشتنغر سیمې ته د نن نه یعني ۱۹۰۵ء نه اوونیم سوه کاله اګاهو راغلي دي.

## دعلامه مشرقي يوه انټرويو:

په ۱۹۲۰ء او ۱۹۲۱ء کښې يوه رساله چاپ کېدله چې د هغې نامه "دهقان" يا "زميدار" وه. په هغې کښې د خاکسارو د مشر په حواله پوښتنه وشوه. چې په دوېم جنګ عظيم کښې انګرېزانو دا وعده کړې وه هرکله چې مونږه جنګ وګټو نو هندوستان به ازادوو. هر کله چې هندوستان ازاد شي نو حکومت به پرې څوک کوي؟ علامه مشرقي صاحب ووئيل چا چې قرباني زياتهورکړې وي، چا چې د ازادۍ په هلو ځلو کښې برخه اخستې وي. سوال کوونکي ووئيل دا خو به هرسړے وائي چې ما قرباني زياته ورکړې ده. د دې خبرې به څۀ پته وي او ثبوت به ئې څۀ وي؟ علامه صاحب ورته د چيف سېکرټري يو خط وښودلو کوم چې په برطانيه کښې هغۀ هوم سېکرټري ته ليکلے وۀ، د ليک نمونه دا وه چې: ما په هندوستان کښې د انګرېز د تاج خلافت کولو والا پنځوس زره کسان بنديوان کړل او بيا د هغه بنديوانو لسټ يعني د هرې صوبې نه چې څومره کسان نيولي شوي دي لکه د يو پي نه دوه سوه کسان، د مديه پرديش نه درې سوه کسان، د پنجاب نه پنځۀ سوه کسان، د بنګال نه اتۀ سوه کسان او په اګره کښې د شمال مغربي صوبې نه يو کم دېرش زره کسان چې په برېکټ کښې ورسره ليکلي شوي وو چې دا په هندوستان کښې د ټولو نه وړه صوبه ده، په هغه وخت کښې ئې بلوچستان له د صوبې حېثيت نۀ وۀ ورکړے.

علامه صاحب واضحه کړه چې په پنځوسو زرو کسانو کښې د ټول هندوستان يويشت زره کسان دي او زمونږ د دې وړې صوبې نه يوکم دېرش زره بنديان دا ثابتوي چې د ټول هندوستان په اقتدار کښې او په حکومت کښې زمونږه اتۀ پنځوس فيصه حصه ده. نو په هندوستان کښې زمونږه هم دغسې حصه پکار ده او کۀ د تش

پاکستان خبره راواخلو نو بیا خو زمونږ پنځهٔ کم سل فیصه حصه رسي.
د بده مرغه کهٔ مونږ په پاکستان کښې د ابادۍ په حساب دیارلس نیم
فیصده یو. د پاکستان د جوړېدو نه پس مونږ ته په یو څیز کښې
دیارلس فیصده حصه هم نهٔ ده ملاؤ شوې او بیا په هشتنغر کښې
د ۱۸۵۷ء په جنګ ازادۍ کښې چې هشتنغر کومه برخه اخستې وه، د
هغه وخت نه راواخله تر دې ساعته پورې خصوصي سزا هشتنغر ته
ملاوېږي. دا ځکه چې په هشتنغر کښې کومو اتو کورونو ته د انعام په
شکل کښې خانۍ او نوابۍ ورکړې شوې دي، د هغې کورنو نظام
تعلیم طبقاتي په وجه په خپلو بچو تعلیمونه وکړل. څوک انجنئران
شول، څوک ډاکټران شول، څوک سي ایس پي افسران شول، څوک د
فوج، پولیس او ایف سي جرنېلان شو او چې کوم په دغه کورونو کښې
نالائقه وو هغه زمونږه سیاسي مشران شو. 'ایا ټول عمر به دغه نالائقه د
خانۍ او نوابۍ په نامه په اسمبلو کښې ناست وي؟ زمونږ د پاره به
قانون جوړوي یعني په چا چې په ټول عمر کښې تکلیف نهٔ وي راغلے
هم هغه خلق به قوم له د تکلیف ختمولو لارې لټوي؟

## د هشتنغر قومي مشران او د هغوي قرباني:

څوک چې دې خاورې زېږولي دي د خپلو پلرونو په ادیرو کښې
ښخ دي. په ۱۸۵۷ء کښې چې د هشتنغر کوم یولس زره کسان د جنګ
ازادۍ د پاره تلي وو، په هغې کښې درې درې نیم سوه کسان په داسې
زخمي حالت کښې راغلي وو چې څوک دلته لږې ورځې وروستو په حق
ورسېدل او څوک میاشت پس په حق ورسېدل. دا یولس زره کسان د
شهباز خان په مشرۍ کښې د جنګ ازادۍ د پاره تلي وو.

شهبازخان د پړانګو وسېدونکے او د غني خېلو مشر وۀ، چې د انګرېز مخالف په جنګ ازادۍ کښې سره د ورونو شهيد شوے وۀ. پخوا په هشتنغر کښې د پښتنو دا رواج وۀ چې د قوم مشر به جوړېدۀ د هغۀ د پاره به د انغري په سر يو مشر وۀ او د هغۀ به يو ووټ وۀ. دغه شان د انغرو تعداد زيات د پړانګو د غني خېلو وۀ او دوېم نمبر د انغرو تعداد د چارسدې د پائنده خېلو وۀ، چې يو ځل مشر به د غني خېلو وۀ او چې هغه به په حق ورسېدۀ نو بيا به د پائنده خېلو نه مشر جوړېدۀ. دغسې د اتمانزو، عمرزو، تنګي ملکانو چې به وکتل چې دا خو دوه قومونه دي او زيات هم دي نو مشري به ئې دوي ته پرېښوده. په دې دواړو ځايونو کښې د شهبازخان يو د ترۀ زوے په زخمي حالت کښې د ازادۍ د جنګ نه راغلے وۀ. هغۀ د منيرخان په ډاګ کښې د جيندي په غاړه د پائنده خېلو په ډېره کښې د ټول هشتنغر يوه جرګه رابللې وه، چې د جنګ ازادۍ نه پس هشتنغر ته کوم حالت پېښ دے په هغې فېصلې وکړي او بل د شهباز خان د شهادت نه پس پائنده خېل خپل مشر مقرر کړي. دغه جرګه د جمعې په ورځ د ماسپښين د مانځۀ نه پس رابللې شوې وه. خو په دغه جرګه کښې په ډېر کم تعداد کښې خلق راغلل. سوال جواب د پاره چې کوم استازي لېږلي شوي وو د هغوي نه دا پوښتنه وشوه چې خلق په کم تعداد کښې ولې راغلي دي؟ هغوي ووئيل چې د کوم کور دروازه مونږ وهلې ده، نو د هغې کور ماشوم يا زنانه به وئيل زمونږ د کور کسان د جهاد د پاره تلي دي لاواپس نۀ دي راغلي. دغه جرګه دوباره دغه مشرانو بلې جمعې له مقرر کړه، ورسره ئې دا جواب هم ولېږلو چې په کوم کور کښې يو سړے هم پاتې شوے نۀ وي نو د هغه کوره دې ماشوم يا زنانه په پرده کښې راشي. د پښتنو په تاريخ کښې ځکه دا جرګه د اهميت وړ ده چې د دې د پاره په هغه

وخت کښې شپږ شلې زنانه او درې سوه ماشومان راغلي وو. په دې جرګه کښې اول د مشر د خوښېدو خبره وړاندې شوه. د غني خېلو هغه مشر چې په زخمي حالت کښې ئې په کټ کښې راوړے وۀ، هغۀ پائنده خېلو ته ووئیل تاسو خپل مشر خوښ کړئ ځکه چې ستاسو د مشر خوښولو وار دے. هغوي ووئیل زمونږ مشران خو ټول مړۀ دي او ماشومان پاتې دي، هغوي مشري کولے نۀ شي. بیا ئې نورو مشرانو ته ووئیل تاسو خپل مشر مقرر کړئ. د پریچ خېلو یو مشر ووئیل زمونږ د لوري جنګ ختم شو خو د انګرېز اصلي جنګ اوس شورو شولو او په دې وخت کښې مشر خوښول د خپله لاسه خپل مشر پانسي کول دي. انګرېزانو مخکښې هم زمونږ نه جائدادونه اخستي دي او کۀ دوباره راشي نو د دې جنګ وټ کټ به زمونږ نه وباسي. د دې خبرې نه پس ئې نورې فېصلې د لیکلو په شکل کښې محفوظ کړې، چې هغه فېصلې د احمدخان اخونزاده سره تر ډېره کالو پورې پرتې وې، د هغې نه پس ئې د پړانګو میراحمد استاذ ته حواله کړې، چې د صفدر الېکټریشن پلار وۀ. د هغه لیکلو فېصلو کاغذونه ئې ماته ښودلي وو. د صفدر استاذ د مرګ نه پس مې ډېر واړې کوشش وکړو چې زامن ئې هغه کاغذونه راکړي، خو هغوي رانۀ کړل. په دغه فېصلو کښې ساده ساده خبرې لیکلې شوې وې، چې انګرېزانو جنګ وګټلو او مونږه جنګ بائېلو. انګرېزانو زمونږ نه مخکښې هم زمکې اخستې وې او خپلو ملګرو وفادارو له ئې ورکړې دي. اوس به نورې زمکې هم زمونږ نه اخلي او هغو خلقو ته ئې ترلاسه کوي چې ډېر وړسره ملګرتیا کوي او الحمدالله په هشتنغر کښې داسې ډېر نشته چې د بل پښتون زمکه ئې ترلاسه کړې وي.

انگرېزان هم د بهر نه راغلي خلق وو او دلته چې په چا ئې زمکې وېشلي دي هغوي هم د بهر نه راغلي خلق دي. انگرېزانو ځان سره د خپل وطن نه زمکې نۀ دي راوړې، ځومره زمکې چې دلته دي دا ټولې زمونږه دي. دا بېله خبره ده چې انگرېزان او د هغوي ملگري مضبوط دي او مونږه کمزوري یُو. هر کله چې مونږ له خدا ے پاک وس راکړي نو د دوي نه به دا خپلې زمکې اخلو. په دغه کاغذونو کښې د جرگې دغه مشران لیکي، چې د دې جرگې د پاره زنانه مونږه ځکه راغوښتلې وې چې لور خور هم د ورکولو شے د ے چې ځوک ئې په صحیح طریقه غواړي هغۀ له لُور خور مونږه ورکوو. خو چې دلته انگرېزانو چا له زمکې ورکړې دي، هغوي له به لور خور نۀ ورکوو او نۀ به ترې نه په خپله لور خور کوو. هسې نه چې د دوي بچي مونږه ته ماماگان ووائي بیا به زمونږه لاسونه د دوي گرېوان ته نۀ رسي.

د الله تعالی بې انتها شکر د ے چې دغه اتو کورونو د دې مجبورۍ د لاسه په خپلو کښې ورکړه راکړه کړې دي یعني د مردان نوابانو د یو بل سره رشتې کړې دي خو د هشتنغر په پښتنو کښې د دوي رشتې نشته یعني دغه خلقو به د دې ځا ے خلقو سره غم ښادي نۀ کول. د دغه خلقو د دې خبرو مونږه سره ژوندي مثالونه پراتۀ دي. د مثال په توگه د پړانگو یو خان چې نوم ئې نثارخان وۀ انگرېزانو ورله زمکه ورکړې وه. کله چې هغه په حق ورسېدۀ ځوک ئې هم قبر کسنتو د پاره نۀ تلو اخر دا چې قبر ئې ورله په کرایۍ وکنستلو او په جنازه کښې ئې هم ځوک نۀ وو.

یو بل خان صحبت خان چې انگرېزانو دۀ له هم زمکه ورکړې وه په پائنده خېلو کښې ئې یوه جینۍ خوښه شوه. صحبت خان د دې جینۍ په سرو زرو کښې د تللو وعده وکړه او په زرگونو جریبه زمکه

ئې ورته هم سپارله خو د جینۍ پلار د لور ورکولو نه انکاري وۀ. د هغه وخت نوابان د جینۍ پلار له په جرګه کښې راغلل، کۀ دا لور دې صحبت خان له ور نۀ کړه نو د دې غمه به مړ شي. په دې کښې د تنګي يو نواب د جینۍ پلار ته ووئیل کۀ د صحبت خان دغه زرګونه جريبه زمکه درته کمه ښکاري نو دوه زره جريبه زمکه به درته زۀ هم درکړم. د هغې جینۍ پلار ورته واضحه کړه چې پخوانو مشرانو مونږه ته ليکلي پرېښي دي چې چاله انګرېزانو زمکې ورکړې دي هغوي له به لور خور نۀ ورکوئ او نۀ به ترې نه لور خور په خپله کوئ. او دا زمکې چې تاسو له انګرېزانو درکړې دي دا زمونږه د ورونړو عزيزانو زمکې دي، خو اوس زمونږه وس نۀ رسي کۀ خدائے پاک مونږ له وس راکړو بيا به دا زمکې تاسو سره نۀ وي او دغه لور ما خپل هغه ورارۀ له ورکړې ده څوک چې په خر باندې ماله پټي ته ډېران راوړي. صحبت خان د غمه مړ نۀ شو خو شاعر شو دا قيصه ماته فريد صحرائي کړې وه چې د هغۀ مشرانو زنانو به هغه وخت پښتنو له رشتې کولې.

## احمدشاه ابدالي او قېس عبدالرشيد:

د کابل او پېښور شاعرانو دوه بادشاهان د پښتو ژبې په قيصو، چاربېتو او بدلو کښې بې انتها نمانځلي دي. اولف کيرو هسې نۀ دي ليکلي چې ما د پښتنو تاريخ د شاعرانو د قيصو، چاربېتو او بدلو نه ليکلے دے.

د پښتو په فولکلوري قيصو کښې د قېس يوه مشهوره قيصه ده، چې دې پوره يوه مياشت کور ته نۀ تلو، د دۀ په کور کښې يوه قدرمنه پښتنه او قابله مور وه، هغې په دۀ پسې جواب ولېږلو چې کور ته نۀ راځې؟ ولې دۀ ووئيل مور ته مې ووايه وزګار نۀ دے. د ټول کابل

نه چاپېره دېوال وهي چې ملک او قوم يعني ټول پښتانۀ او د هغوي بچي د خطرې نه بچ شي.

په دې باره کښې ئې مور ووئيل يواځې د کابل قوم او د هغوي بچي ستا قوم او بچي نۀ دي، د امو نه راواخله تر جهلمه پورې دېوال چاپېره کړه چې ټول پښتانۀ او د هغوي بچي د خطرې نه بچ شي او يا دا اراده ترک کړه ځکه چې د کومو خلقو دېوالونه مضبوط وي د هغوي زړونه کمزوري وي، هغوي د ملک او قوم دفاع نۀ شي کولے.

قېس عبدالرشيد چې د قومونو ترمېنځه د انصاف کومې فېصلې کړې دي يعني صحيح د زمکو وېش ئې کړے وۀ په هغې ترې نه تمام قومونه ډېر خوشحاله وو. د دغې خوشحالۍ نه ورله دغې قومونو په سر د په سرولو د پاره د سرو زرو تاج جوړ کړلو. دغه قومونو ووئيل چې څومره بادشاهان تېر شوي دي، د هغوي په سرونو ذاتي د سرو زرو تاجونه پراتۀ وو او مونږ د خپل طرف نه د خپلو قومونو د طرف نه د سرو تاج دوي ته په سر ږدو. قېس عبدالرشيد چې واورېدل او پوهه شو نو دې قومونو ته ئې ووئيل ډوډۍ وخورئ او په دې باره کښې به زۀ د خپلې مور نه پوښتنه کوم، ځکه چې هغه په هره فېصله کښې زما سره ملګرتيا کوي. هر کله چې قېس عبدالرشيد مور ته دا خبره تر غوږو کړه، مور ورته ووئيل بالکل دا صحيح خبره ده چې د ټولو بادشاهانو سرونه سرو زرو ته ښکته شوي دي. د پښتنو ملکانو مشرانو او قومونو په ډېره مينه او د زړۀ په اخلاص تاد پاره دا تحفه راوړې ده، تاله پکار دي چې په ډېر اخلاص د زړۀ د کومي نه د هغوي شکريه ادا کړې. بيا ورته ووايه زۀ د پښتنو ملکانو مشر يم، خدائے پاک دې د پښتنو او ملکانانو د مشر سر دومره سپک نۀ کړي چې هغه

نه چاپېره دېوال وهي چې ملک او قوم یعني ټول پښتانۀ او د هغوي بچي د خطرې نه بچ شي.

په دې باره کښې ئې مور ووئيل يواځې د كابل قوم او د هغوي بچي ستا قوم او بچي نۀ دي، د امو نه راواخله تر جهلمه پورې دېوال چاپېره کړه چې ټول پښتانۀ او د هغوي بچي د خطرې نه بچ شي او يا دا اراده ترک کړه ځکه چې د کومو خلقو دېوالونه مضبوط وي د هغوي زړونه کمزوري وي، هغوي د ملک او قوم دفاع نۀ شي کولے.

قېس عبدالرشید چې د قومونو ترمېنځه د انصاف کومې فېصلې کړې دي يعني صحيح د زمكو وېش ئې كړے وۀ په هغې ترې نه تمام قومونه ډېر خوشحاله وو. د دغې خوشحالۍ نه ورله دغې قومونو په سر د په سرولو د پاره د سرو زرو تاج جوړ کړلو. دغه قومونو ووئيل چې څومره بادشاهان تېر شوي دي، د هغوي په سرونو ذاتي د سرو زرو تاجونه پراتۀ وو او مونږ د خپل طرف نه د خپلو قومونو د طرف نه د سرو تاج دوي ته په سر ږدو. قېس عبدالرشید چې واورېدل او پوهه شو نو دې قومونو ته ئې ووئيل ډوډۍ وخورئ او په دې باره کښې به زۀ د خپلې مور نه پوښتنه کوم، ځکه چې هغه په هره فېصله کښې زما سره ملګرتيا کوي. هر کله چې قېس عبدالرشيد مور ته دا خبره تر غوږو کړه، مور ورته ووئيل بالکل دا صحيح خبره ده چې د ټولو بادشاهانو سرونه سرو زرو ته ښکته شوي دي. د پښتنو ملكانو مشرانو او قومونو په ډېره مينه او د زړۀ په اخلاص تاد پاره دا تحفه راوړې ده، تاله پکار دي چې په ډېر اخلاص د زړۀ د کومي نه د هغوي شکریه ادا کړې. بيا ورته ووايه زۀ د پښتنو ملکانو مشر يم، خدائے پاک دې د پښتنو او ملکانانو د مشر سر دومره سپک نۀ کړي چې هغه

دې سرو زرو ته ښکته شي، د هغې نه پس دا روايت مشهور شولو چې د مشرانو مشر ته ئې امير ووئيل.

دا هم د تاريخ په پاڼو کښې ليک دي چې د هندوستان مسلمانانو دافغانستان مشرانوته خطونه ولېږل په هغه خطونو کښې دا ليک ووچې تاسوخومونږه په هندوستان کښې مسلمانان کړو مهرباني وکړئ اوس خو زمونږ دومره پوښتنه وکړئ چې په دهلي او په اګره کښې مرهټاهندوان په مونږباندې څومره ظلمونه کوي. کۀ تاسو غېرت مند مسلمانان يئ نو زمونږه تپوس وکړئ. د افغانستان په مختلفو قومونو باندې دا خطونه تقسيم شول. د هغې نه پس د افغانستان دغه خلقو يوه جرګه راوغوښته، په دې غرض چې هندوستان ته د تلو د پاره څوک مشر مقرر کړي، چې هغه په هندوستان حمله وکړي. هندوستان ته څوځو ځله پښتانۀ مشران تلي دي، د دهلي تخت اخستل ورته ډېر اسان ښکارېدل او هندوستان هسې هم د سرو زرو مرغۍ وه، د مال غنيمت ډېرې موقعې په کښې په لاس راتلې ځکه د دې جرګې په مشر خوښولو باندې پوره يوه مياشت ولګېده. بلکې د هر قوم به دا کوشش وۀ چې زمونږ د قوم نه دې د دې ډلې مشر جوړ شي. يعني شپه ورځې په دې هلو ځلو کښې لګيا وو چې مشران دې زما مرسته وکړي او بل به وئيل چې مشران دې زما مرسته وکړي. د احمدشاه بابا پلار وفات شوے وۀ چې کوم د دې قوم مشر وۀ په زلميتوب کښې دۀ ته د دې قوم مشري ترلاسه شوې وه. دې به دغسې په مشرانو ګرځېدۀ خو دا ئې نۀ وئيل چې زما د مشرۍ يا د فلاني د مشرۍ مرسته وکړئ. البته دا ئې ووئيل چې زر ترزه دا فېصله وکړئ چې په هندوستان ورځو چې دغلته د دغه مسلمانانو تکليفونه ختم کړو. اخر دا چې فېصله د هغې قوم په مشر وشوه چې څوک په تعداد کښې زيات وو. کوم مشر چې وټاکلے

شو هم هغهٔ ووئیل د هندوستان د مشرۍ د پاره ډېرو زور لګولے وهٔ سپوا د احمد شاه نه ځکه چې دې لانوے زلمے دے. مشري هم داسې چاته حواله کول پکار دي چې هغه تورزن هم وي او ځوان هم وي او بهادر چې د مشرۍ غوښتنه ئې کړې نهٔ وي. هغهٔ د احمدشاه په پټکي کښې د غنم یو پلے کښېښودهٔ او دا ئې ووئیل چې دا جهاد دے او زهٔ هم درسره ځم او دا ټول مشران به هم درسره ځي او د جنګ مشري به احمد شاه کوي.

لنډه دا چې احمد شاه سره د ډلې هندوستان ته روان شو. د جهلم د ډېرو د پُل نه دې خوا ته ئې خپل فوج له دمه ورکړه او بیا ئې ټول فوج ته دا وینا وکړه چې مونږ خو د دهلي د تخت د اخستو د پاره ځو، د دې نه اخوا ته پردے وطن دے کهٔ مونږه د دهلي د تخت په اخستو کښې کامیاب نهٔ شولو او واپس راتلو خبر دے کهٔ نوره علاقه پاتې شي خو د جهلم نه دا ښکته وطن به په یو شکل نهٔ پرېږدو. ځکه چې د آمو د دریاب نه راواخله تر جهلم دریابه پورې د افغان قومونه اباد دي. تر هغې حده پورې کهٔ په مونږ کښې یو فرد ژوندے پاتې شي نو د جهلم نه شاته ځاے به نهٔ پرېږدو. د هندوستان جنګ ګټل خو یوه تاریخي خبره ده خو احمدشاه د دهلي په تخت باندې خوشحاله نهٔ وهٔ. هغهٔ وئیل حکومت به د کابل نه په دهلي کوم خلقو ورته وئیل دهلے خو د سرو زرو مرغۍ ده، دا تخت ولې پرېږدې؟ احمدشاه بابا د دغه موقعې په مناسبت دا شعر ووئیلو:

د ډیلي تخت هېرومه چې رایاد شي
زما د ښکلي پښتونخوا د غرو سرونه

د دې دوو بادشاهانو مثالونه ځکه د ستائنې وړ دي چې دا دواړه د پښتنو هغه بادشاهان دي چې دواړو بادشاهۍ له او تخت و

تاج له لته ورکړې ده. هم د دوي نه روایت دے چې پښتانهٔ ټول عمر بادشاهان جوړوي خو بادشاهي کولو والانهٔ دي ځکه چې د دې درپرده د پښتنو د زړګونو کالو رسمونه رواجونه پراتهٔ دي. دوي د هر بادشاه د ازادۍ نفي کوي چې په کوم ځاے کښې بادشاه وي هلته به غلام ضرور وي او د هر پښتون ذهن غلامي نهٔ مني ځکه بادشاهي د دهٔ په ذهن کښې غلط فعل ګرځي.

## ایران او یونانیان:

په ټوله دنیا کښې دا دوه لوے طاقتونه وو. دوه نیم زره کاله مخکښې د جنګ په دوران کښې به دواړو ملکونو د جنګ د پاره په قیمت خلق اخستل. یو فریق به وئیل چې زما ډله دې زیاته شي، بل فریق به وئیل چې زما ډله دې زیاته شي. دغه شان په افغانستان کښې به هم د دواړو فریقو آستازي ګرځېدل چې کوم مشر به په اسونو، اوښانو، سرو زرو باندې راضي شولو نو هغهٔ به د خپلې قبیلې نه ورسره ځوانان ولېږل. د ځینو قبیلو به د ایران سره خبره وشوه، د ځینو قبیلو به د یونان سره خبره وشوه. دا جنګونه به د عربو او د روس په زمکه کېدل. جنګ به خامخا یو فریق ګټلو. په کوم فریق کښې چې به افغانان تلي وو او هغوي به واپس راتلل، اوښان، اسونه، هلکان، جینکۍ به ئې هم د مال غنیمت په شکل کښې راوستل. چې هرکله به د افغانستان په خاوره کښې داخل شول نو خلقو به ترې نه تپوسونه کول چې د دې هلکانو جینکو لاسونه تاسو ولې تړلي دي؟ دوي به ورته ووئیل مونږه دوي غلامان راوستي دي، دا مال غنیمت دے او په جنګ کښې ګټلے شوے مال دے. چونکې په افغانستان کښې د بادشاهۍ او غلامۍ دواړه نظامونه نهٔ وو، هرکله چې به دا لاس تړلي

غلامان مشرانو ته حواله کړے شول، مشرانو به ئي لاسونه پرانستل. هغه مشرانو به ووئيل انسان خدا ے پاک د غلامۍ د پاره پيدا کړے نۀ د ے، د مال غنيمت جينکۍ به ئې خپلو هلکانو ته وادۀ کړې او هلکانو له به ئي خپلې لوڼه خوېندې ورکړې. مطلب دا چې دا د ښو تهذيبونو نه راغلي خلق دي چې په افغانستان کښې پاتې شي او په ازاد ماحول کښې ژوند تېر کړي چې د دغې ښو تهذيبونو ګټه د افغانستان خاورې ته اورسي. دې خلقو ته به هم دا پته ولګېده چې پښتانۀ ترخپله مېنځه غلام نۀ پرېږدي نو دلته کښې به څوک بادشاهي څنګه کوي؟

په دغو کښې هوښيار او باتهذيبه خلقو به پښتانۀ د ځان سره روان کړل او تمام هندوستان به ئې پرې باندې ونيوۀ. پښتنو چې به جنګ وګټلو چې څۀ مال غنيمت به ورته ملاوېدلو هغه به ئې د ځان سره کړل او ترخپل وطن به واپس راغلو او دې خلقو به هلته کښې خپله بادشاهي قايمه کړه. د هندوستان د خلقو نه به ئې فوج جوړ کړلو، هم به ئې پرې ځان ساتلو او هم به ئې پرې خپله بادشاهي مضبوطوله، ځکه چې په هندوستان کښې د بادشاهۍ او غلامۍ رواج وۀ.

قطب الدين ايبک په هندوستان کښې سليب ډائنستي يعني د غلامانو خاندان سل کاله خواوشا په هندوستان باندې بادشاهي کړې ده. يو مينار ئې جوړ کړے د ے چې په قطب مينار باندې مشهور د ے. کوږ د ے خو لا تراوسه پورې ولاړ د ے او د دنيا په نوادراتو کښې د ے، يعني پښتنو چې کوم غلامان په خپله زمکه په ازاد ماحول کښې پاللي وو، هغه خلق د هندوستان بادشاهان شول.

زما خيال د ے چې دغه خلقو په دغه وخت کښې هم پښتنو سره يوه خوږه غوندې دوکه کوله. د دوي افغانستان ته د راتګ نه

مخکښې د افغانانو د جنګ اړخ هغه وه یعني دوي به د جنګ د پاره ازبکستان، تاجکستان چې په هغه وخت کښې ئې ورته ثمرقند بخارا وئیل، د غنیمت شوق ئې د دغه اړخونو نه پوره کولو. دې خلقو د افغانانو د مال غنیمت د شوق مخ هدوستان طرف ته وګرځولو. کۀ د افغانانو مخ په هغه لور پاتې شوے وے نو زمونږه صوبه او بلوچستان به چرې د هندوستان حصه جوړه شوې نۀ وه. خو د دغه خلقو په ذهنونو کښې د بادشاهۍ او غلامۍ تاریخونه پراتۀ وو. حالانکې د دغه خلقو بچو ته ځنې قومونو خپلې مشرۍ ترلاسه کړې وې. یو ډېر ښۀ مثال ئې د غزني محمود وۀ.

الف تګین او سبکتګین د محمود غزنوي پلار او نیکۀ وو. د خلقو په نظر کښې دي چې ایاز پلار په نیکۀ د دې وطن، د دې خاورې وسېدونکے وۀ، د قومولۍ او ورورولۍ په شکل کښې د هغۀ په ذهن کښې وفاداري وه او دې وفادارۍ او مینې په اخر کښې محمود ایاز غلام کړلو. لکه څۀ رنګ چې ګلستان وائي:

چاچې ښـلے پـه اخـلاص وي جـام د عشـق
قربـانېږي بـه هـر وخـت پـه نـام د عشـق
راتـه ښـکاري عاشـقي لويـه رتبـه ده
شـو محمـود غونـدې بادشـاه غـلام د عشـق

چې د کارل مارکس او کېپیټل په قیصو کله پوهه شو نو ورسره ورسره په دې هم پوهه شو چې تاریخ یواځې د بادشاهانو د تخت و تاج قیصې نۀ دي بلکې د هغه خلقو د معاشي نظام د غلامۍ نه د نفرت او خپلو حالاتو بدلولو او ښۀ کولو کوششونه هم دي، چې هغه تاریخ په خپل دور کښې د انقلابونو په شکل کښې ښودلي دي. چې شورو ئې د یونان د غلامانو د بغاوت نه شوې ده. یو خوا ته د دنیا

تاریخ دغه بغاوتونه چې څنې په کښې په انقلابونو کښې بدل شول چې د دنیا تاریخ ئې هم د ځان سره بدل کړو.

د روس انقلاب په دنیا کښې د معاشي نظام لاړښودنه وکړه. د دوي د انقلاب د مشرانو د خبرو اترو دا نچوړ وؤ چې هر سړي ته دې د خپل قابلیت او ضرورت عوض ورکړے شي او د ملکیت تصور دې ختم کړے شي. ځکه چې څومره د ملکونو جنګونه او انفرادي جنګونه په ملکیتونو باندې کېږي یعني زما زما باندې کېږي. د چین او روس انقلابونو خلق رابېدار کړل. د طبقاتي نظام د ختمېدو کوشش ئې وکړلو. خپل خلق ئې په خپلو حقونو پوره کړل. بس دا یو شے یقیني دے چې د ملکیت تصور ئې ختم نۀ کړلو. د جرمني په ښار فرانکفورت کښې یوه مباحثه د داسې عالمانو ترمېنځه وشوه چې په هغې کښې د روس او جرمني، هندوستان، انګرېزان یعني د تمامو ملکونو نمائندګان موجود وو. په دې غرض چې د ملکیت تصور به څۀ رنګ ختم کړے شي او هر سړي ته به د هغۀ د قابلیت او ضرورت عوض څۀ رنګ ورکړے شي. ما په دغه مباحثه کښې د پنځو زرو کلونو مخکښې د پښتنو د معاشي نظام حواله ورکړه او کوشش مې وکړو چې پښتنو کښې معاشي نظام او د زمکو تقسیم پنځۀ زره کاله کم و زیات په دې طریقه شوے وؤ چې د ملکیت تصور ئې ختم کړے وؤ. په دې کښې دوه دوه نیم زره کلونه څۀ د مغلو بادشاهانو کوششونه چې خاقو له ئې ملکیتونه د خانۍ او نوابۍ په شکل کښې ورکړي وو او څۀ ملکیتونه انګرېزانو د خانۍ او نوابۍ په شکل کښې ورکړي وو خو بیا هم په قبائیلي علاقو او د افغانستان په څنې صوبو کښې په هغه زوړ شکل کښې دي چې د ملکیتونو تصور په کښې نشته. پنځۀ زره کاله مخکښې چې پښتنو سره علاقه ډېره وه او خلق کم وو. دا تاریخي

روایات دي چې دوه ځله په دې فېصلې شوې دي چې په اول ځل ئې دې ته د ځُتې تقسیم وئیلے وۀ، ځکه چې په دې کښې به د ښځو حصې نۀ وې. بیا کښېناستل او بل تقسیم ئې وکړو چې دغې ته د خُلې وېش وائي. یعني په یو کور کښې چې څو خُلې وي په دغه حساب به ورته برخه ورکوي او بیا دا رنګې کورنۍ هم وې چې سړي به په کښې کم وو او ښځې به زیاتې وې لکه دوه سړي او اتۀ ښځې، دا لس کسان شول. د دوو کسانو په دې حصه باندې لس کسان نۀ پائېدل او دې وېش ته ئې غلط ووئیل. د خُلې وېش کښې ئې په په خوراک کښې د ښځو او سړو حصه برابره کړه.

دا د خُلې وېش تر نولسمې صدۍ پورې روان وۀ او په ځنې قبائیلو کښې تراوسه پورې روان دے، خو په شاملاتو کښې د ښځو نامې نشته دے. دا ځکه چې هر پښتون لور خور خو د ورکولو شے ګڼي، چې ترکومه پورې د دۀ په کور کښې وي نو خُلۀ ئې هم وي د خُلې په نامه ئې د خوراک حصه هم وي، چې د دۀ د کوره لاړه شي نو په بل کور کښې د هغې حصه شورو شي. دغه شان چې دې خپل زوي له ښځه وکړي د هغې حصه دلته کښې شورو شي. په پښتنو دا اعتراض کېدے شي چې دوي ښځو له په زمکو کښې حصه نۀ ورکوي، د دې په بدل کښې مشرانو ښځو ته چې کوم اختیار په کور دننه ورکړے دے او کوم عزت ئې ورکړے دے، دغه رنګ عزت د دنیا یو قام هم نۀ دے ورکړے. په کور کښې به یو نغرے وۀ چې په هغې کور کښې به مشره ښځه، چې صحت ئې وۀ او ګرځېدې به هم شوه، د ټول کور مشري به د دې ترلاسه وه. کۀ هر څو زامن او لونړه ئې لرلې په یو کور کښې به وسېدل. د ټولو زامنو ښځې به هم په دغه کور کښې وسېدلې، چې سړو به هرڅۀ ګټل هغه به ئې په کور کښې نیا له ورکول، خپلو ښځو له به

ئې نهٔ ورکول، نيا به پرې د خوراک څښاک بندوبست کولو او د نواسه نمسو پورې د ټولو ښځو او د ټولو سړو د جامې پېزار بندوبست به ئې هم کولو او د ضرورت د پاره به ئې بچت هم کولو. دغه شان په کور کښې به د يو نغري لاندې دهرش ځلوېښت کسان د برابرۍ په شکل پائېدل. کهٔ يو زوي ئې ډېره ګټه کوله او بل به کمه ګټه خپل مور يا نيا ته حواله کوله، هغې به د کور ټولو کسانو له خوراک، جامه پېزار او نور ضرورتونه يو شان پوره کول او د کمې زياتي څهٔ احساس به په کښې نهٔ وهٔ. په دې شريکو کورونو کښې ډېرې فائدې وې. يو خو دا چې د غل غلدو خطره به نهٔ وه، بله دا چې د حيا عزت او د کورنۍ د تحفظ په ګڼه وسېدلو په خپله يقيني شي. د زمکې اصلي خبره امدن وي، چې د دې زمکې نه به ځومره امدن راتللو هغه به ټولو وروڼو راوړلو او د نغري د مشرې ترلاسه کېدلو. دغسې د ټولې زمکې هغه ګټه به دغه ښځې ته راغله. کهٔ چرې په دې پسې زمکه ليکلې شوې وے نو دې ته به د خپلې حصې زمکه نيمه ملاوېده ځکه چې ښځه خو په خپله زميداري نهٔ شي کولے نو چې هر چا به دا زميداري کوله نو نيمه به ئې ورکوله. دې ته خو د ټولو افرادو حصې ملاو شوې د دې واک اختيار هم ترلاسه شو، چې څهٔ رنګ خرڅ کوي او کهٔ بچت کوي، ځکه تر اوسه پورې د خوانښې اينګور په کور کښې زړهٔ بداوے وي، چې د نغري مشري خوانښې سره وي او دا ټول د نغري سره تړلے دے. کهٔ په خُلهٔ وائي او کهٔ نهٔ وائي خو اينګور په زړهٔ کښې وائي چې دا خوانښې به مې کله مړه شي چې د نغري مشري زما ترلاسه شي. د ټولو نه زياته فائده چې مونږ ته د شريک نغري نه رارسېدلې ده، په تاريخ کښې د جنګجو او تورزن قوم په صف کښې ئې ودرولي يُو، هغه هم دا تحفظ وهٔ چې په کلونو به د کوره بهر وو خو د ښځو، بچو، خوېندو، مېندو

غم به راسره نۀ وۀ او دغه وجه ده چې د روس نه راواخله تر هندوستان او تر چين پورې مونږه خلقو تجارت کولو. د دې تجارتونو ترمخه به راته لارې ګودرې ښې معلومې وې او د معلوماتو ترمخه به مونږه جنګونه ډېر په اسانه ګټل. انسانان خو ټول خدائے يو شان پيدا کړي دي، دغه دوه لاسونه او دوه پښې د هر چا وي، خو دې نورو قومونو به جنګونه نۀ شو کولے، د ښځو او بچو غم به ورسره وۀ، د ښځو د حيا، عزت عدم تحفظ په وجه ئې جنګي سوچونه کولے نۀ شول. نن چې څۀ رنګ مونږ د نورو قومونو عادتونه خپل کړي دي. د واده کېدلو سره د بېل کور او د بېل نغري سوچونه شورو شي، چې سحر د کوره ځي نو د پيازو ټماټرو نه واخله تر اوړو او تر غوښې پورې به يو خوا ته کاروبار هم کوے او دا سوچ به دې هم وي چې په دې پېسو به دا څيزونه برابر شي او کۀ نه؟ بيا د ګېس او د بجلۍ د بل د پاره به هم څۀ نه څۀ کنښېښودل غواړي. کۀ خوش قسمه يې دومره پيسې ګټې چې د دې غم نه خلاص يې، نو بيا هم چې په کور کښې دې ښځې يواځې وي نو د خپلې حيا او عزت د تحفظ غم به درسره خامخا وي، د يوې شپې د پاره بهر تلے نۀ شې. ټول ژوند به دې په دې کښې ختم شي او ټول عمر به دې د ښځې او بچو په خدمت کښې تېر شي.

چې کوم قومونه په کومو علاقو کښې په اکثريت کښې وو د هغه علاقې زمکې ئې هغه خلقو له ورکړې يعني دغه زمکې ئې د افرادو په تعداد خېلونو ته ورکړې، چې نن هم کاغذات مال د دغه خېلونو د شاملاتونو په نامه باندې پراتۀ دي. د دې خېل د هر فرد نوم په دغه شاملات کښې موجود دے، چې هغه نامه ترې نه څوک ويستې نۀ شي ځکه چې د شاملات زمکه مشترکه وي خرڅېدې نۀ شي. البته په پښتنو کښې به په دې تقسيمونو کښې نائي، شاخېل، لوهار، ترکاڼ

يعني هر كسب ګر به د دغه قومونو نه وۀ چې يوه حصه ئې د ملكيت كېده او بله حصه ئې د كسب كېده يعني د يو كسب ګر به دوه حصې وې او دې به هم د دغه خېلونو يو فرد ګڼلے شو. لكه د هندوانو په شان چا كسب ګر ته سپک نۀ كتل. ټولو پښتنو به ورته په درونډ نظر كتل. د دې زمكې حاصل چې هركله د فصلونو په شكل كښې د دغه خېل په افرادو لكه غنم، جوار، ګنے برابر برابر تقسيميدۀ. دې خېلونو بيا د مشرانو ګيلې شورو كړې چې مونږه يو خېل يُو، هغه دا چې فلانې خېل ته ئې ښه زمكه وركړې ده او مونږ له ئې خرابه زمكه راكړې ده. دغه مشرانو په دغه قومونو كښې دا فېصلې وكړې چې په كومو زمكو كښې به د ښو خرابو ډېر فرق وۀ هغه زمكې به ئې لس كاله پس د يو بل سره بدلولې.

دغه شان يو خېل خپله خرابه زمكه لس كاله پس د هغه ښې زمكې والا سره د كورونو سره، د جوماتونو سره او د حجرو سره بدلولې. دغه شان لس كاله پس به دۀ دا زمكه بيا پرېښوده او بل به پرې راتلو. دغه رواجونه تراوسه پورې په سوات، ملاكنډ، بونېر، د افغانستان په څنو صوبو كښې موجود دي. د قبائيلي خلقو نه كۀ اوس هم تپوس وكړے، هغوي به درته وائي دا زمونږه حجره، دا زمونږه جومات دے، دا زمونږه پټي دي، يو شي ته هم زما نۀ شي وئيلے. دا زما لفظ په كښې ځكه نشته چې دا د قوم ملكيت دے، هر لس كاله پس خپل ملكيت بل سره بدلوي، نۀ دې ته زما وئيلے شي او نۀ هغې ته زما وئيلے شي. دغه مشرانو په دې طريقه د ملكيت تصور ختم كړے وۀ. يعني يو شے زما نۀ دے بلكې د قوم دے. دغه شاملات لس كاله پس بل ته حواله كېږي، په ذاتي حېثيت ورته زما وئيلے نۀ شي. دغه شان د آمو نه راواخله تر جهلمه پورې چې قومونو خپل جائداد په

شاملات کښې یو بل له ورکړے وۀ هم دغه وجه ده چې یو پښتون هم بې جائداده او بې کوره نشته. کۀ په هشتنغر کښې په شاملاتو کښې د یو پښتون نامه نۀ وي هغه به د مزدورۍ د پاره راغلے وي. کۀ باجوړے دے، کۀ مومند دے او کۀ قندهارے دے، کۀ کابلے دے، د دۀ په هغه ځائے کښې خپله حصه زمکه وي او کور ئې هم وي او په شاملاتو کښې به د دۀ د خاندان نومونه هم وي. دغه وجه ده چې پنځۀ زره کاله مخکښې په معاشي نظام پښتنو صحیح عمل کړے وۀ. نو په پښتنو کښې انقلابونه هم راغلي نۀ دي، البته په ډېرانونو او په پولو باندې جنګونه هر وخت وي. دغه معاشي نظام مونږه د یو بل سره نژدې کړي یُو. په دغه وجه زمونږه په تصور کښې د غلامۍ نظام نۀ راځي، چې کوم سړے بذاتِ خود د غلامۍ خلاف وي، هغه د بل قوم د پاره هم غلامي نۀ خوښوي. د هندوستان په ازادۍ کښې د ټولو نه لویه برخه پښتنو اخستې وه، دا بېله خبره ده چې پښتانۀ په دې پوهـ نۀ دي چې مونږه غلامان یو او کۀ نۀ یو. د ازادۍ په جدوجهد کښې د انګرېز خلاف به مشرانو خپلو کشرانو ته مثال ورکولو چې یو سړے وۀ څلور ئې زامن وو، په پټي کښې په دې خبره په جنګ وو، یو وئیل زۀ په دې پټي کښې غنم کرم، بل وئیل زۀ په کښې جوار کرم، بل وئیل زۀ پرې افیم کرم، بل وئیل زۀ پرې اوربشې کرم. لنډه دا چې پلار ئې د پاسه راغے، هر یو زوي ورته خپله خپله مدعا ترمخې کړه، پلار ورته ووئیل دا پټے د بل دے، اول دا پټے خپل کړئ بیا به پرې د فصلونو د کر فېصلې کوو.

مغلو په خپل دور حکومت کښې خپل ښۀ کوشش کړے دے چې د پښتنو دا معاشي نظام ختم کړو. ذاتي ملکیتونه ئې د خانۍ او نوابۍ په شکل کښې خلقو له ورکړل نو په هندوستان کښې کامیاب

شول، ځکه چې د دې ځاے نه کوم پښتانۀ د مغلو سره تلي وو، هغوي له ئې د ذاتي ملکیتونو په شکل کښې خانئ او نوابئ ورکړي، سره د شېرشاه سوري. د پښتنو په دې علاقه کښې مسلسل د مغلو سره جنګونه شوي دي خو د انګرېزانو چې يو مضبوط نظام د فوج او د هغې سره تړلو ادارو طاقت او عدالتي نظام په هغې کښې چې انګرېزانو کومو خلقو له زمکې ورکړې دي، د هغوي د مال او سر تحفظ موجود وۀ، پښتانۀ د ملکیتونو خاوندان تر عدالتونو تلل، خو په هغه عدالتونو کښې چې انګرېزانو چا له زمکې ورکړې وې، د هغوي د مال او د سر تحفظ وۀ. يعني په عدالت کښې به هم د پښتون د حق فېصله نۀ کېدله. په جنګ جدل کښې به فوج پولیس هم د انګرېزانو وۀ، هغوي به هم د دوي د مال او د سر تحفظ کولو، ځکه د پښتنو په علاقه کښې چې مونږ نن کومې ته خپله صوبه وايو او د انګرېز په دغه نظام خپل ژوند تېروو، د پښتنو دغه رواجونه رسمونه په دې علاقو کښې نشته. د ۱۹۱۷ء نه وروستو د پښتنو په ټولو علاقو کښې سره د افغانستان د ذاتي ملکیتونو د مضبوطولو د پاره انګرېزانو ډېر کوششونه کړي دي، چې د دغه نظام مخ نیوے وکړي. په افغانستان کښې چې د دغه نظاموننو تاریخ پروت وۀ هغه ئې ختم کړلو بلکې د دغه ځاے د امیرانو په صلاح ډېر ښۀ تاریخي کتابونه او لائبرېرئ ئې سېزلي دي په کومو کښې چې د پښتنو د معاشي نظام د ملکیت تصور ختم کړے شوے وۀ يعني چې د روسیانو تر لاسه نۀ شي. خو د خوش قسمتئ نه څۀ کتابونه د دوي تر لاسه شوي دي، د سوزېدو نه بچ شوي دي، هغه د جرمني د يو ورکوتي ښار ټرير په لائبرېرئ کښې موجود دي او هغه لائبرېري د کارل مارکس په نامه باندې مشهوره ده. د دنیا د هرې ژبې پخواني کتابونه په هغه زوړ حالت کښې په زوړ

شکل کښې موجود دي، چې ما په کښې د پیر روښان حال نامه، جنګ نامه هم کتلي او لوستلي دي، چې یو مخ ئې په فارسي ژبه کښې او بل مخ ئې په پښتو ژبه کښې لیکلے شوے وؤ. پیر روښان په خپل کتاب کښې لیکي چې ما په صوابۍ او لاهور کښې د ځرمنې په ټکړه دولس سوه کاله مخکښې هغه معاهده لیکلې لیدلې وه چې کومه د عربو او د بره افغانستانه راغلي تبلیغیانو د سوات، صوابۍ، ملاکنډ، هشتنغر، نوښار او نظام پور د دې علاقې د مشرانو سره د اسلام په قبلولو کښې ټولې فېصلې کړې دي. د دې نه هم خبر شوم چې څو کاله مخکښې په پکتیا او قندهار کښې دغه شان معاهدې شوې دي او د دغه علاقو ټولو قومونو اسلام قبول کړے دے، خو پښتون داسې قوم دے چې په دغه لیکلې معاهده کښې د اسلام غوندې عالمي مذهب د ورکوټي کولو کوشش ئې کړے دے او خپل رسمونه رواجونه ئې پرې منلي دي. د معاهدې په سرنامه لیکلي شوي دي، لا اله الاالله محمد رسول الله، چونکې دې تبلیغیانو زمونږ ټول رسمونه رواجونه ومنل چې ستاسو ټول رسمونه رواجونه عین د اسلام مطابق دي. نوموني ورسره خدا ے او رسول ومنل. لاندې لیکي چې دوه څیزونه مونږ نۀ منو، یو سود، سود به مونږ کوو ځکه چې سود زمونږه تجارت دے او دوېم په زنا کښې د کوهي او بوقې والاشهادت دے، د زنا خبره مونږ سمدستي په مرګ فېصله کوو، په شهادتونو نه.

په دغه لائبریرۍ کښې داسې نور کتابونه هم پراتۀ دي چې د سره پرې د مصنفینو نومونه نشته او کۀ شته دے د مثال په توګه چنار ګل چې هغه هم فرضي نامه ښکاري. البته د تېرو وختونو د جنګونو قیصې په کښې لیکلې شوې دي. یو بل کتاب مې هم ولوستلو چې د ښائسته ګل نامه پرې لیکلې شوې ده. خو دغه نامه پرې هم فرضي

ښکاري البته د میني محبت او د عشق باره کښې مې یو بل کتاب ولوستلو چې هغه کتاب جرمنیانو په جرمنۍ ژبه کښې لیکلے وۀ. په دې باره کښې د سنسکرت لیکونکو لیکلي چې دا زړه پښتو ژبه ده.

یو بل مثال دا دے چې په کوم وخت کښې د ایران شهنشاه پهلوي د خپل جشن د تیارۍ د پاره په ۱۹۵۸ء او۵۹ء کښې په یوه شاړه مېره کښې تمبوان لګولي وو، د اوبو تالابونه. لارې سړکونه ئې جوړ کړي وو ځکه چې د دغه جشن د پاره به د دنیا بادشاهان راتلل. دغلته په یو کاڼي د پاسه په سنسکرت کښې لیکلي شوي وو چې د سنسکرت لیکونکي ئې د لوستلو د پاره راوغوښتل هغوي ترې نه مطلب وانۀ خستے شو. البته دغلته یو څو افغانان مزدوران د مزدورۍ د پاره راغلي وو چې دا لیک ئې د کاڼي د پاسه ولوستلو هغوي هم ووئیل چې دا پښتو ژبه ده. په هغه کاڼي د پاسه لیکونکي لیکلي وو چې زۀ او زما ناجوړه ښځه په دې لار تېرېدلو چې دلته کښې د هغې لور پیدا شوه، چې زما هغه ښځه او پېدا شوې لور دواړه دلته کښې مړې شوې، ما هغوي دلته کښې دفن کړې یعني ښخې مې کړې. ما دا لیک د دې کاڼي د پاسه د یاداشت د پاره کړے دے.

سائنسدانانو چې دا لیک مطالعه کړو هغوي ووئیل چې دا لیک د دې کاڼي د پاسه درې زره کاله مخکښې لیکلے شوے دے.

یوه بله لائبرېري هم په برطانیه لندن کښې وه چې نامه ئې "انډیاآفس" وه. په دغه لائبرېرۍ کښې هم په پښتو او فارسۍ ژبه کښې زاړۀ لیکل پراتۀ دي.

## د هندوستان او افغانستان تر منځه پوله کښېښودل

په ۱۸۹۳ء کښې د امیر عبدالرحمان او د مارتیمر ډیورنډ ترمخه د هندوستان او افغانستان تر مېنځه پوله اېښودې شوې ده چې هغه پولې ته نن هم ډیورنډ لائن وائي. چونکې انګرېزانو سره د دې علاقې خپله څۀ نامه نۀ وه دا په زرګونو کلونو د هندوستان یوه حصه د افغانستانه پاتې شوې وه او پېښور خو د افغانستان د یخنۍ یوه دارالخلافه ګرځېدلې وه نو هندوستان د شمال مغرب په سرحد د پاسه خپله صوبه ووئیله څکه دې ته شمال مغربي سرحدي صوبه وائي. د ۱۸۹۳ء د معاهدې نه څلور کاله مخکښې د ګنډمک معاهده شوې وه. دا معاهده د هندوستان او افغانستان د سرحداتو د تعین د پاره شوې وه خو په اصلي پوله کښېښودو کښې څلور کاله ولګېدل او اخري فېصله ئې په ۱۸۹۳ء کښې وشوه. سر ماتیمر ډیورنډ په دې باره کښې وائي چې زما دا کوشش وۀ چې زۀ دې ټوله قبائیلي علاقه افغانستان ته حواله کړم او د افغانستان د نمائندګانو دا کوشش وۀ چې قبائیلي علاقې دې ټولې انګرېزان واخلي. څلور کاله پس دې نتیجې ته ورسېدو چې دا ټوله قبائیلي علاقه په مېنځ کښې نیمه کړې شي، موجوده ډیورنډ لائن چې په زرګونو میله اوږد دے او په دواړو غاړو ئې قبائیل پراتۀ دي، نیمې پښتنې قبیلې په دې غاړه پرتې دي او نیمې هغه غاړې ته پرتې دي.

دغه قبائیل د انګرېزانو د پاره سر خُوږے وۀ د افغانستان د پاره هم سر خوږے وۀ، بلکې د پاکستان د پاره هم سر خوږے وۀ. انګرېزانو د دوي د پاره ازاد قبائیل نامه ورکړې ده، څکه چې دوي خپل رسمي رواجي قانون جوړ کړے وۀ. د انګرېزانو قانون ئې نۀ منلو

او د انګرېزانو په دوي هغه لاره پکار وه کومه چې تر افغانستانه تلې وه. يو جرمني ليکوال په خپل کتاب "دبان ريګرونګ" (DER BONHOFF RIEGERUNG) کښې ليکي چې د پښتنو په قبائيلي علاقو کښې د انګرېزانو حکومت د سړک د پاسه وۀ، تر اوسه پورې قبائيليان د پاکستان حکومت د سړک د پاسه مني، د سړک نه اخوا او دې خوا ته په خپلو اندروني مسئلو کښې د دوي ګوتې وهل نۀ مني. په اوسني د پښتنو په حالاتو د پښتو دا ټپه پوره خېژي چې:

زۀ د سيندونو لامبوزن وم
په نصيب خوار شوم د لختو اوبۀ مې اوړينه

انګرېزانواودپاکستان مشرانو قبائيلو ته وئيلي وو چې ستاسو د بچو د پاره سکولونه، سړکونه او لارې جوړوو خو قبائيلو د دې هرڅۀ نه انکار کړے وۀ. په دې باره کښې قبائيلو وئيل چې په سړک باندې به مونږ پسې د دوي ټېنکونه، توپې او فوجونه زر رارسي. په سکولونو کښې به زمونږه بچو ته خپله ژبه، خپل کلچر او خپل مذهب ښائي او د دې په وجه به په مونږه غلامي مضبوطوي او زمونږه بچي به ذهني غلامان کوي. نن ثابت شوي چې کومو خلقو دغسې سکلونو کښې سبق وئيلے دے هغه ټول ذهني غلامان دي. په دې لړ کښې د پښتون شاعر سيف الرحمٰن سليم شعر دے:

نوے کُول به د ماضي نه منحرف کړي
پښتونخوا کښې د مغلو مکتبونه

اوس هم چې د چا بچي په دغه سکولونو کښې سبق وائي هغه به د دوي ذهني غلامان کېږي، خو د پاکستان تعليم يافته او نوکر پېشه طبقې د ريټائرمنټ نه پس د ځانه سوال کوي چې اٰيا پاکستان د کوم اسلام په نامه جوړ دے؟ اٰيا دا هغه د عربو نه راغلے اسلام دے او

کهٔ د دهلي نه راغلے اسلام دے؟ ځکه چې زمونږه نهٔ په شپېتهٔ کلونو کښې روژه په یوه ورځ شوه او نهٔ اختر. حالانکې د پاکستان او د عربو ترمېنځ د درېو ګېنټو فرق دے. په مکه معظمه کښې چې په کومه ورځ روژه وي، د دنیا ټول اسلامي ملکونه او د ټولې نړۍ مسلمانان په هغه ورځ روژه کړي. چې په مکه معظمه کښې کله د اختر اعلان وشي د دنیا ټول اسلامي ملکونه په هغه ورځ د اختر اعلان وکړي خو زمونږ د اسلام اباد عالمان به دهلي ته په انتظار کښې ناست وي چې هر څومره ورځې پس په دهلي کښې سپوږمۍ ولیدې شي نو دلته هم په هغه ورځ روژه کړي او کله چې په دهلي کښې د اختر سپوږمۍ ولیدې شي نو هم په هغه ورځ د اختر اعلان وکړي.

د ګاندهي جي د مرګ نه پس د ګاندهي جي تاریخي کارونه هندوانو تقریباً په اتیاؤ کتابونو کښې لیکلي دي. په دغه کتابونو کښې د پښتنو په خبرو پسې ګرځېدم نو هغه په جلد وویشتم، جلد اتهٔ ویشتم او په جلد یوکم دېرشم او بیا په جلد دوه دېرشم کښې راجمع دي چې د هغې مجموعې نامه "کلکټډ ورکس" ده. ما په دې کښې د خپلې علاقې د مشرانو سره ملاقاتونه، د مسلمانانو او د هغوي رابطې لټولې، عجیبه خبره دا ده چې په یو شي پسې ګرځېدم بل شے مې په نظر راغے، هغه دا چې په هندوستان کښې ۱۹۳۰ء پورې د زمکو د خاوندانو ووټونه وو او د بې زمکو خلقو ووټ نهٔ وهٔ او په هندوستان کښې په زرګونو کلونو بادشاهي هم مسلمانانو کړې ده. دغه شان د زمکو ملکیت هم د مسلمانانو سره وهٔ او خانۍ نوابۍ هم د دوي تر لاسه وې.

د کانګرس د انګرېزانو نه دوه مطالبې وې يوه دا چې څۀ رنګ تاسو په برطانيه کښې يو فرد له د يو ووټ حق ورکړے دے هم په هغه شان په هندوستان کښې يو فرد له د يو ووټ حق ورکړئ. دوېمه دا چې خانۍ او نوابۍ ټولې ختمې کړئ. په دې باره کښې انګرېزانو ګاندهي جي ته ووئيل چې په هندوستان کښې يو انسان د يو ووټ حق ترلاسه کړو، نو بيا خو به هندوان په اکثريت کښې راشي، ووټونه به هم دوي ګټي. هرکله چې ستاسو حکومت راشي، نو بيا د پارليمنټ نه د قانون په ذريعه جاګيرونه، خانۍ نوابۍ ختمې کړئ. ستاسو خو به دا دواړه مطالبې په دې طريقه حل شي تر اوسه پورې پارليمنټ ته خانان نوابان تلل يعني د دولتمندو ووټونه وو ځکه په اسمبلۍ کښې اکثريت د مسلمانانو وۀ او انګرېزانو به وئيل چې د هندوانو اکثريت راشي نو د مسلمانانو نه به واک اختيار او حکومت لاړ شي، خو زمونږه هم دوه مطالبې دي. چې په هندوستان کښې ستاسو عدم تشدد مونږ ته هيڅ فائده نۀ راکوي البته عدم تشدد په پښتنو کښې شورو کړئ. مطلب دا دے چې د هغوي نه ټوپک ترلاسه کړئ. په مونږ پسې کۀ دا ټول هندوستان راپورته شي نو مونږه ترې نه نۀ وېرېږو خو د پښتنو نه وېرېږو ځکه چې په هندوستان خومره مسلمانانو بادشاهانو حکومت کړے دے دا يا افغانان پښتانۀ وو او يا د پښتنو په مرسته باندې دلته راغلي وو نو دا خلق په سياست هم پوهېږي او د ټوپک په چلولو هم پوهېږي.

بله خبره دا ده چې د ۱۹۰۵ء نه دوي "اصلاح افاغنه" تنظيم جوړ کړے دے. چې نن سبا په سوونو ازاد سکولونه هم لري. خلقو ته په مورنۍ ژبه کښې خپل تاريخ او خپل مذهب ښائي او د سکولونو په دېوالونو ئې ليکلي دي چې حجره او جومات دې بېل نه شي. دا

ماشومان او خلق کۀ خپل تاریخ په مورنۍ ژبه کښې زده کړي نو تر دې به ضرور رسي چې زمونږه مشرانو په هندوستان حکومت کړے دے او نن مونږ د انګریزانو غلامان یُو او کۀ په مورنۍ ژبه کښې په خپل مذهب باندې پوهه شي نو ضرور به وائي چې دا عیسایان دي، د دوي خلاف جهاد روا دے. دغه شان په دغه سکولونو کښې یو تعلیم یافته او پوهه فوج تیارېږي چې د هغې مقصد به د هندوستان نه انګریزان ویستل وي. مونږه هسې هم د دوي نه په یوه لار نۀ خلاصېږو. ګاندهي جي په دې باره کښې ووئیل زما ډېر ښۀ او کلک ملګري د پارټۍ په دغه صوبه کښې موجود دي چې څۀ رنګ په هندوستان کښې عدم تشدد کېږي نو هلته به زما ملګري جارحانه عدم تشدد کوي. انګریزانو ووئیل پښتون قوم عجیبه عدم تشدد کوي، سمدستي سړک بند کړي او دا اواز کوي په مونږ ګولۍ وچلوئ یعني زمونږه د هندوانو غوندې بزدلانه في سبب بزدلانه عدم تشدد پکار دے.

په دې باره کښې ګاندهي جي انګریزانو ته ووئیل چې د دغه ځاے مشرانو سره به په تنهایۍ کښې لیدل کتل او خبرې کوم. لهذا ګاندهي جي په حېدراباد کښې ګرفتار شو او عبدالغفار خان په نوښار کښې ګرفتار شو. په اول ځل د جېل په یوه کوټه کښې عبدالغفار خان او ګاندهي د یوې میاشتې نه کم جېل تېر کړو او بیا دواړه په یوه ورځ او یو وخت د جېل نه رها شول او په شلو ورځو کښې دننه دننه ئې د في سبب خبرې شورو کړې. په سر دریاب کښې د لسو زرو سُورپوشو ترمخه ئې په اردو ژبه کښې او په انګریزۍ ژبه کښې تقریرونه وکړل. بقول غني خان زۀ د سټېج د پاسه ناست وم، امیر نواز جلیا په دې وجه د سټېج نه راکوز کړم هغۀ وئیل ستا د خُلې نه د شرابو بوئي راځي. ما ورته ووئیل بابا نشه نۀ کوي هغه په دې بوئي څۀ پوهېږي؟ هغۀ وئیل

بابا دې یواځې نهٔ دے، پټېل، نهرو او ګاندهي هم ورسره راغي، هغوي خو د شرابو په بوئي پوهېږي. د دې خبرو نه پس زهٔ د ستېج نه ښکته کښېناستم او ټولو ناستو خلقو ته مې پام وهٔ. په انګرېزۍ او اردو ژبه کښې تقریرونه کېدل، خلق ورته ډېر په ادب ناست وو او زنو ته ئې لاسونه اېښي وو، وخت په وخت ئې لاسونه پړقول لکه چې دوي په دې تقریرونو ښهٔ پوهېږي. ما د کاغذ یوه ټکړه راواخسته یو څو شعرونه مې پرې ولیکل، د شعرونو مطلع دا رنګ وه:

خټک د پښتون شلېږي باچاخان په کښې ګیندې وهي

ګاندهي لېونے شوے دے سندا ته سریندې وهي

هم هغه د کاغذ ټکړه جلیا خان زما نه ترلاسه کړه او ټوټې ټوټې ئې کړه. د دغې نه څهٔ موده پس دا مشران بیا اتمانزو ته راغلي وو، په حجره کښې کښېناستو چې د کانګرس پارټۍ ټول مشران د هشتنغر او اتمانزو صاحب الرائې خلق د اصلاح افاغنه د تنظیم ټول مشران د ازاد سکولونو ټول استاذان په ګڼ تعداد کښې موجود وو. مخامخ یوه سره جنډه لګېدلې وه د پاسه پرې الله اکبر لیک وهٔ. ګاندهي جي ووئیل چې زمونږ د کانګرس په جنډه باندې خو سرخه جوړه شوې ده، ستاسو په دې جنډه خو څهٔ بل څهٔ شوي دي. حاضرینو په دې باره کښې ووئیل مونږه مسلمانان یو او د دغه لیک مطلب دا دے چې الله ډېر لوے دے. باچاخان ووئیل ګاندهي په دې خفه کېږي دا جنډا راکوزه کړئ سرخه پرې د پاسه جوړه کړئ. د باچا خان د وئیلو په حواله ئې هغه جنډا راکوزه کړه او د پاسه ئې پرې سرخه جوړه کړه، بیا ئې اوچته کړه.

په دې کښې د ازاد سکولونو استاذان عبدالاکبرخان اکبر او محمداکبر خادم سره د دولسو ملګرو د هغه هجوم نه راپاڅېدل بهر ووتل، څهٔ ګوري د سرډهېرو یو استاذ حمزه الله په سرو سترګو ژاړي.

دوي ترې نه تپوس وکړو اخر ژاړې ولې؟ هغهٔ وئیل ژاړم په دې چې د نن نه حجره او جومات بېل شو. د دې نه پس محمد اکبر خادم چې د ازاد سکولونو ناظم هم وهٔ، شاعر هم وهٔ، یوه مصرعه ووئیله:

باچا امام زهٔ مقتدي وم

ګاندهي امام شو څکه ځان له نیت تړمه

یعني د انګرېزانو په دواړو مطالبو د اتمانزو نه د ګاندهي په اشاره باندې اغاز وشولو.

په هندوستان کښې چې د یو سړي یو ووټ شو نو مسلمانانو جاګیردارو د جاګیرونو او د پېسو په وجه حکومتونه کول. دا خطره ورته ترمخه شوه چې حکومت خو لاړهٔ او جاګیرونه هم روان دي. په برطانیه کښې ښهٔ تعلیمونه، په کېمرج، اکسفورډ کښې د دغه جاګیردارانو او نوابانو بچو تعلیمونه کول. په ۱۹۳۳ء کښې د کېمرج یو پمفلټ چې هغې ته ئې Now or never (are we to live or perish forever) وئیل چې د هغې لاندې یو بل سرنویس وهٔ چې هغه په هندوستان کښې د مسلمانانو د پاره وهٔ هغه دا چې په هندوستان کښې مسلمانان د هندوانو په مشرۍ کښې نور ژوند تېرولے نهٔ شي. د دوي د پاره یو خپل وطن پکار دے چې هغې له د پاکستان نامه دوي ورکړې او دا ئې واضحه کړه: پ: د پنجاب د پاره، الف: د افغانیه د پاره، ک: د کشمیر د پاره، س: د سندهـ د پاره، تان: د بلوچستان د پاره. دغه شان چودهري رحمت علي، اسلم ختک، شېخ محمدصدیق او عنایت الله خان د پاکستان نوم په یو پمفلټ کښې لیکلے وهٔ. یو خوا ته د هندوستان نوابانو ته د جاګیرونو خطره ترمخه شوه بل خوا ته د حکومت سره تړلي مراعات او ښې عهدې چې نوابانو ته به په تحفه کښې ملاوېدې، د ختمېدو ویره پیدا شوه. په هغه وخت کښې د مال

زیاتولو پېدا کولو جاګیرونه وو او زمکې هم وې. په دغه پېسو باندې دوي کارخانې جوړولې او تجارتونه ئې هم شورو کړي وو. عادتونه او فضول خرچي ئې هم د بادشاهانو په شان وو. دوي به دا سوچ هم کولو چې مونږ به د هندو تاجر او کارخانه دار سره په ازاده منډۍ کښې چلېدے نۀ شو او نۀ ورسره مقابله کولے شو. د دې د پاره فقط يوه لار او هغه دا چې د مسلمانانو په نامه باندې يوه بېله منډۍ جوړه کړئ. چې د دوي نه دا جاګيرونه هم پاتې شي، کارخانې او تجارتونه هم د دوي ترلاسه دي او منډۍ هم د دوي ترلاسه شي او مقابلې ته ئې هم څوک پاتې نۀ شي. دغې مسلمانانو جاګيرداران، نوابان، ازاد خياله د شرابو او د ډمو شوقيان او تش په نامه مسلمانان، چې ډېرو له په کښې کلمې هم نۀ ورتللې، په ټول هندوستان کښې د پاکستان د تحريک او د دوي دا غږ د هندوستان په هر ځاے کښې نوابان چې سله په سله د مسلم ليګ ممبران وو د تحريک په مخکښې بوتللو کښې ئې فعال کردار ادا کړے دے. په دې کښې څۀ نوابان څۀ غريبانان د بدقسمتۍ نه په هندوستان کښې پاتې جوناګړهـ او حېدراباد نوابان په دې اوسني پاکستان کښې په څلوروواړوصوبو کښې، بلوچستان لا د صوبې شکل اختيار کړے نۀ وۀ، په شمالي مغربي صوبه کښې د کانګرس ملګرو الېکشن وګټلو چې د پاکستان د جوړېدو خلاف وو. په پنجاب کښې يونينسټ الېکشن وګټلو چې هغوي هم د پاکستان د جوړېدو مرسته نۀ ده کړې او د مسلم ليګ هم خلاف وو. په سندهـ کښې جيئے سندهـ او د هغوي ملګرو اتحاديانو ووټونه وګټل چې هغوي هم د پاکستان او د مسلم ليګ خلاف وو. په بنګال کښې چې مونږه به ورته مشرقي پاکستان وئيل مسلم ليګو او د هغوي ملګرو الېکشن وګټلو چې مشران ئې څوک په شېرِ بنګال، څوک په شېرِ پاکستان مشهور شول.

د پاکستان د جوړېدو نه یو کال مخکښې په ۱۹۴۶ء کښې چې کومو خلقو په ووټونو باندې ځان د پاکستان وفادار ثابت کړے دے او د پاکستان په جوړولو کښې ئې تاریخي کردار لوبولے دے. په ۱۹۷۰ء او ۱۹۷۱ء کښې د پاکستان د هغه صوبې مشرانو، فوج او بېروکرېسي دغه خلق د پاکستان نه وویستل. د پاکستان د جوړېدو سره سم د دنیا په تاریخ کښې د قومونو تبادلې وشوې.

د دې لوري نه هندوان، سیکان هندوستان ته تلل او د هغه لوري نه مسلمانان پاکستان ته راتلل. په دې کښې په لکونو خلق مړهٔ او ژوبل شوي دي چې د ظلم او بربریت قیصې ئې تراوسه پورې د هندوستان او پاکستان د خلقو په نفرتونو کښې اضافې کوي. د دې زیات تکلیف په هر لوري تر غریب ورسېدهٔ. کهٔ د دې لوري نه هندوان غریبانان تلل هغوي هم خلقو وژل کهٔ د هغې لوري نه مسلمانان غریبانان راتلل هغوي هم خلقو وژل. مسلمانان جاګیرداران او نوابان صحیح سلامت په جهازونو کښې تر کراچۍ راغلل او هندوان تاجران صحیح سلامت په جهازونو کښې تر دهلي ورسېدل. هم دغه قتلِ عام د سیاسي مشرانو په نظر کښې وهٔ ځکه چې بغېر د مسلم لیګ نه د شریک هندوستان یوې سیاسي پارټۍ د پاکستان د جوړېدو خبره نهٔ ده کړې. جومات اسلامي به پاکستان ته ناپاکستان وئیل او جناح ته ئې کافراعظم وئیل. جمیعت علمائے هند به وئیل چې په هندوستان کښې زر کاله حکومت مسلمانانو کړے دے، انګرېز دې حکومت مسلمانانو ته حواله کړي او انګرېز دې ترې نه ځي.

چونکې مسلم لیګ دجاګیردارو نوابانو پارټي وه، د غریبانانو د هجرت، د کورونو پرېښودلو، د روزګار پیدا کولو د تکلیفونو نه خبر وو، پاکستان ته د راتلو سره سم د مارکیټونو قبضه کولو په غرض

د راتلونکو جاګیردارانو، نوابانو په معیشت، د حکومت په ټولو ادارو ئې قبضه وکړه. سازشونه ټول د بادشاهانو په محلونو کښې کېږي، وفادارۍ بدلول او د غدارۍ اغاز هم د دغه ځایونو نه کېږي. چونکې دا نوابان د خپلې علاقې بادشاهان وو او ټول پاکستان ته راغلل، پوهه، لیک پړه خلق وو، کارخانو، تجارتونو او د حکومت په لارو چارو هم پوهېدل. دغه شان د پاکستان د ټولې ابادۍ د یو فیصد نه کم خلق د پاکستان په ټولو ادارو قابض شول، خپلې مورنۍ ژبې ته ئې د پاکستان ژبه ووئیله، چې کوم وخت په رېډیو او اخبارونو باندې قابض شول ځکه چې دغه ژبه نۀ پنجابي له ورتله، نۀ بنګالي له ورته، نۀ سندهي له ورتله او نۀ بلوچي له ورتله. د رېډیو د ټولو ډرامو او فلمونو په ذریعه د لکهنوو، اترپردېش، مدیه پرېش ته ئې د پاکستان کلچر ووئیل. د سي ایس پي او سي ایس ایس په نوکرو کښې د پاکستان او اسلام په نوم باندې د زمکو پرېښودو همدردۍ د خلقو حاصلې کړې او نوکرۍ ترلاسه کړې. په فوج، پولیس او نورو ادارو کښې هم په دغه همدردۍ ورته کمېشن ملاو شو هم د هغه خلقو نه ضیاءالحق او مشرف جوړ شو.

نن په پاکستان کښې په هر فورس کښې نوي (۹۰) فیصد نه زیات جرنېلان د دوي دي. په هندوستان کښې چې د کانګرس حکومت راغے چاچې جاګیرونه نوابۍ ختمې کړې وې صحیح او جمهوري حکومتونه د غریبانانو تر مخه راغلل او جمهوریت په اصلي معنو کښې جرړې ښخې کړې چونکې پاکستان کښې اقتدار دغه خلقو ته ترلاسه وۀ. زمونږه د ازادۍ نه پس زمونږه عمر د فوجي حکومتونو په غلامۍ کښې تېر شو، د ازادۍ جرړې مونږه ونۀ موندې، د مختلف قسم نظامونو تجربې وشوې، چې د هغې تاوان د

پاکستان هر غريب ته ورسېدهٔ او کټه ئې هغه نوابانو ته ورسېده يعني
د ټولو ملکونو دا يو مشترکه قانون دے چې يو مهاجر هم د يوې
ادارې چيف اېګزېکټيو نهٔ شي جوړېدے.

د امريکې مشهور وزيرخارجه ډاکټر کسنجر صدارتي ووټونو
ته ودرېدے نهٔ شو ځکه چې پلار ئې د جرمني نه هجرت کړے وهٔ او په
امريکه کښې اباد شوے وهٔ. دا قدرتي امر دے څوک چې په کومه
خاوره پېدا شوے وي هم د هغې خاورې سره مينه لري ځکه د ملک او
قوم زمکې خاورې ته د مور په نظر ګوري. په پاکستان کښې چې کوم
قومونه اوسي د ټولو خپله ژبه، خپل کلچر او خپل تاريخ دے. پردۍ
ژبه او پردے کلچر خپلول د غلامۍ ذهنيت پېدا کوي. انګرېزانو کهٔ په
هندوستان حکومت کړے دے نو د بهر نه راغلي خلق وو او د ښو
غلامانو د ساتلو د پاره ئې يو ښهٔ قانون جوړ کړے وهٔ. د هندوستان او
پاکستان د ټولو قومونو دا غوښتنه وه چې مونږ دې د انګرېز د غلامۍ
د نظام نه ځان خلاص کړو او د ټولو قومونو رسمونه رواجونه موجود
دي او د مسلمان په حېث د خپل مذهب د قانون سره مينه لرو او مونږه
دا غوښتل، چې انګرېزان لاړ شي او د غلامۍ دا نظام ورسره هم ختم
شي، ځکه چې زمونږه په پاکستان کښې ټول مسلمانان دي او ټولو ته
دغه نظام قابول قبول دے او يا د بېلې بېلې صوبې په شکل کښې
قومي رواجي قانونونه شته دے. چونکې دا خلق هم د انګرېز په رنګ
د بهر نه راغلي خلق دي د دې خاورې سره مينه نهٔ لري او اسلام ئې هم
د دهلي اسلام دے ، ذهني غلامان وو، د انګرېز نظام ئې په پاکستان
کښې قايم و دايم وساتهٔ. دوي وائي پاکستان مونږه د پنجابي، بلوچي
او سندهي د پاره جوړ کړے نهٔ دے، دا فقط مونږ د ځان د پاره جوړ
کړے دے، زمونږه د دې ځاے انسان نهٔ دے پکار، زمونږه د دې

ځاے خاوره پکار ده یعني دا خاوره د دوي نۀ ده نو د دوي ورسره د مور هغه مینه هم نۀ پیدا کیږي. هرڅوک چې ښۀ قیمت ورکوي او د دوي د حکومت تحفظ کوي هم په هغوي ئې خرڅه کړې ده. هم دغه وجه ده چې بغېر د بټهو د حکومت نه چې پاکستاني فوج د هندوستان په جېل کښې بندي وۀ او بیوروکرېسي چپ وه، د پاکستان خارجه پالیسي ازاده پاتې شوې وه، د ملک او قوم په حق کښې فېصلې شوې وې. د لیاقت علي خان په وخت کښې د حلقې د برابرولو د پاره په جهازونو کښې د هندوستان نه په زرګونو خلق راغوښتے شوي وو. د ضیا الحق په دور حکومت کښې باهرې کولاؤ شوے وے، د لکونو په تعداد کښې خلق راغلي دي، د هغوي د پاره په دې ملک کښې د ښې نه ښې نوکرۍ، د بېنکونو قرضې، بهر ته د تللو مراعات، د هندوستان ډېر غریبانان په امریکه او په کنېډا کښې د پاکستان په قرضو باندې استوګنه او تجارتونه کوي. امریکې ته دغه رنګ خلق پکار دي چې د هغوي د ملک سره همدردي نۀ وي او د امریکې په اشاره باندې د خپل مالي جاني ګټو د پاره هرڅۀ کوي. د بټهو د نوي پاکستان سره د خلقو همدردۍ وې، د ډوډۍ، جامې، مکان په نامه د غریبانانو نوي امیدونه د نوي پاکستان د ترقۍ سره وتړلي شول.

صوبائي حقوقو علمبردار قوم له متفقه آئین ورکړو چې په هغې کښې د پښتنو، بلوچو او د نورو لیډرانو دستخطونه موجود دي خو شرط په کښې دا وۀ چې لس کاله پس به صوبائي خودمختاري ورکوو. په دغه دوران کښې یو لکهـ فوج د هندوستان په جېلونو کښې پروت وۀ. د پاکستان بیوروکرېسي خپلو غلطو او بدنیتۍ چپ کړے وۀ. دغه شان د پاکستان په تاریخ کښې په وړومبي ځل یو سیاسي او د عوامو نمائنده حکومت د سِول او ملټري په عدم موجودګۍ کښې د

قوم په حق کښې یوځو فېصلې وکړې. هرکله چې فوج د هندوستان د جېلونو نه خپل ملک پاکستان ته راغلو نو بیوروکرېسي بیا هغه زاړه کرتبونه شورو کړل. بټهو چې د چین، روس او د امریکې د دورې نه واپس راغلے نو دا ئې محسوسه کړه چې دغه حکومتونه بغېر د څۀ شرطه پاکستان سره امداد کول نۀ غواړي. د امریکې او روس دواړو شرطونه د غلامۍ نه کم نۀ وو.

پاکستان چې د ۱۹۷۱ء په جنګ کښې نیم ملک بائېللے وۀ، هر قسمه قرضدارے شوے وۀ. د دغه ملکونو خیال دا وۀ چې بټهو به د امداد په عوض کښې زمونږه شرطونه ومني. بټهو خپل ملک ته د راتلو سره عربو ملکونو ته د امداد خواست وکړو او دا خبره ئې ورته ترمخې کړه چې ټول اسلامي ملکونه د غټو طاقتونو په غلامۍ کښې پراتۀ دي، د هغې په باره کښې ئې اسلامي سربراه کانفرنس په لاهور کښې منعقد کړلو چې تاریخي فېصلې په کښې وشوې یعنې په تېرو دوو درېو سوو کلونو کښې اسلامي ملکونه په دارنګ په یو ځائے کښې راغونډ شوي نۀ دي او نۀ دومره ښکلې او تاریخي فېصلې د مسلمانانو په حق کښې شوې دي. په دغه فېصلو کښې یوه دا هم وه چې د جنګ په حالت کښې په امریکه او یورپ پټرول بندول، بل اسلامي بېنک جوړول چې په هغې د ټولو اسلامي ملکونو پېسې د امریکې او یورپ په بېنکونو کښې پرتې وې او خپل ملکونه ئې پرې چلول، هغه رقم راویستل او په اسلامي بېنک کښې داخلول او د هغې نه غریبو ملکونو سره بې سوده امداد کول. اسلامي عدالتي نظام د پاره یو شریک کمېشن چې د جنګ په حالت کښې به فېصله کوي دغه فېصله به د جنګ په حالت کښې د جنګ دواړو فریقو ته منظوره وي. د ټولو نه اهمه، ضروري او پټه فېصله دا وه چې پاکستان سره او داسې

نورو غریبو ملکونو سره دې امداد وشي یعني اټمي ټېکنالوژي چې هغوي هم د ایټم بم جوړو قابل شي.

روس، امریکې او یورپ دغه فېصلو ته د شک په نظر کتل. دوي په اسلامي ملکونو کښې خپلې ډلې جوړولې او هغه ډلو له د حکومتونو ورکولو کوششونه ئې شورو کړل. بل خوا ته روس او امریکه دواړه په دې متفق وو چې د دوي دا اتحاد دې مات او خراب کړے شي. بټهو د چین، روس او امریکې د دورې نه پس درې څلور کاله د هندوستان او د بنګال د معاملې نه پس د بېوروکرېسي ځُلې هم بندې وې. هم دغه درې څلور کاله بټهو ته موقعه وه چې په پاکستان کښې یوه ازاده پالیسي وساتي.

هرکله چې شمله معاهده ترسره شوه، فوج واپس راغے، د بېوروکرېسي ځُلې هم ازادې شوې. د سازشونو هغه دور بیا شورو شو. د ۱۹۷۳ء د آئین په حواله کۀ چا دا آئین مات کړلو هغۀ له به د پانسۍ سزا ورکولے شي. د دې هرڅۀ باوجود په ۱۹۷۳ء کښې د دې آئین جوړوونکي خلق په جېلونو کښې پراتۀ وو او یو جرنېل د زور د مخه راغې د آئین باني له د پانسۍ سزا ورکوي.

د ایوب خان په دور کښې په حکومت کښې ښې فېصلې شوې وې، چې هغه د لانډري فارم او کارخانه دارو د پاره قانون چې حکومت ته ئې جوابده کړل. په دې کښې ئې ۲۲ خاندانه په ګوته کړل کوم چې د پاکستان مالدار ترینې کورنۍ وې. تقریباً په پاکستان کښې هغه وخت ټولې کارخانې د دوي تر لاسه وې. په ۲۲ خاندانونو کښې ۱۷ داسې کورنۍ وې چې هغه هم د هندوستان نه راغلي خلق وو. په هغه وخت کښې ایوب خان په ښۀ لور ګامزن وۀ کۀ د هغۀ په قانون هم چرې عمل شوے وۀ دا صحیح ده چې پاکستان به د ترقۍ په لور پرمختګ کړے

وۀ چونکې د هغۀ نه هم ګېرچاپېره سي ایس پي ټول افسران او بېوروکرېسي چې اکثریت په کښې د مهاجرو وۀ، د مضبوط مرکز حامیان وو. بنګالیان چې د پاکستان ۶۳ فیصده ابادي وه، هغوی د ابادۍ په بنیاد خپل حق غوښتلو. په مغربي پاکستان کښې د دغه افسرانو ترمخه څلور واړه صوبې ختمې شوې او د برابرۍ په بنیاد یو مغربي پاکستان په عمل کښې راغے او بل مشرقي پاکستان په عمل کښې راغے ټول امدن ئې په پنځوس پنځوس باندې تقسیم کړۀ. د مشرقي پاکستان امدن د ارهرو او د وریژو نه وۀ. د بنګالیانو دا مطالبه وه چې دا ټول امدن مونږ ته ترلاسه کړئ او دې خلقو پنځوس فیصده امدن مغربي پاکستان ته وسپارۀ او پنځوس فیصده امدن ئې مشرقي پاکستان ته وسپارۀ.

په دغه وخت کښې په اتۀ پنځوسم (۱۹۵۸ء) او یا اووۀ شپېتم (۱۹۶۷ء) کښې د پنډۍ په ګارډن کالج کښې ما تعلیم حاصلولو. زمونږه سره یوځو بنګالیان ملګري په دغه کالج کښې هم وو. په هغه وخت کښې اسلام اباد نوے نوے جوړېدۀ چې په سبل به چرته یو ځاے د هغه بنګالیانو سره لاړو او د اسلام اباد د لویو سړکونو او د لویو لویو بلډنګونو تعریف به مونږ شورو کړلو نو هغې بنګالیانو ملګرو به وئیل چې د دغه لویو لویو سړکونو نه مونږ له د ارهرو او د وریژو بوئي راځي. په مغربي پاکستان کښې د صوبو دوباره د جوړولو تحریکونه شورو شول. د ایوب خان خلاف هنګامې زیاتې شوې، عوام راپورته شول. د بنګال او د دې صوبو غوښتو والا مشرانو باندې د غدارۍ کېسونه جوړ شول. هنګامې ورځ په ورځ زیاتېدلې چې نتیجه ئې د یحٰی خان په راتلو او د ایوب خان په تلو ترسره شوه.

زمونږ علاقه د چترال نه تر بولان پورې وه چې کوئټه په کښې

هم شامله وه. یحیٰ خان چې صوبې واپس ومنلې نو زمونږه د صوبې او کوئټې او د بولان حصه ئې بلوچستان ته حواله کړه. دغه شان د پښتنو خاوره، چې زرګونه کاله د آمو نه تر جهلمه پورې او د چتراله تر بولانه یادېده، په څلورو حصو تقسیم شوه. یوه د افغانستان علاقه، بله قبائیلي علاقه، بله دصوبه سرحد علاقه او بله د کوئټې او بولان علاقه.
دبلوچستان دصوبې او دصوبه سرحد دصوبې د مشرانویو شان احتجاج وۀ. دوي به وئیل چې زمونږه د پښتنو او زمونږه د بلوچو پولې معلومې دي. لهذا حکومت دا کمیشن د هائي کورټ یو جج ته حواله کړو. په دې غرض چې د پښتنو او بلوچو پولې معلومې کړي، هغه جج د خپلو معلوماتو په حواله واضحه کړه چې دا شتۀ بارډر د پښتنو او بلوچو ترمېنځه یو قدرتي پوله ده او دواړه فریقه پرې راضي هم دي. لهذا دا دې هم په دې زړه پوله فېصله شي. خو د پاکستان بېوروکرېسي چې د مهاجرو ترلاسه وه او د انګرېزانو د پالیسۍ په حواله چې "قومونه خپلو کښې جنګوه او حکومت پرې کوه" د پښتنو او بلوچو ترمېنځه د نفرت پېدا کولو د پاره اوس ئې هم هغه پوله په خپل ځاے برقرار ساتلې ده.
په سندھ کښې څۀ مهاجر د لیاقت علي خان په وخت کښې راغلي وو ورسره څۀ د خپلو خپلوانو په دعوتونو باندې راغلل. د ضیاالحق په دور کښې خو په حکومت کښې بیخي باډرې کولاؤ وے، د لکهونو په تعداد کښې مهاجر راغلي دي. په کراچۍ، حېدراباد کښې کۀ حساب کتاب وکړے شي نو سندهیان په اقلیت کښې راځي.
په ګوادر کښې د مهاجرو د پاره نوے ښار او بندرګاه جوړېږي چې د کراچۍ نه به هم ښۀ وي او سندهیانو ته دا وائي چې تاسو ناپوهه یئ، تاسو په دې خپلو کلو کښې ژوند تېروئ، مونږ به درله ټول سندھ چلوو او هم به درته ټول پاکستان چلوو. د ضیاالحق په دور حکومت

کښې په پنجاب او ملتان کښې د بیوروکریسي د لاسه تحریکونه شورو شول، خو مقصد ئې ترسره نۀ شولو نو بیا ئې د شیعه سني د فسادونو په نامه باندې په پنجاب کښې دوه جنګي ډلې جوړې کړې چې د سنیانو جنګي تحریکونه او پارټۍ د ملتان نه او د شیعه ګانو جنګي ډلې او پارټۍ د پنډۍ او د لاهور نه شورو شوې. تر اوسه پورې د یو بل په جوماتونو او په مشرانو باندې د مرګونو حملې کوي او دا فساد تر نورو صوبو هم ورسیدۀ. هم دغه شان د دوي د برکته د پاکستان په ټولو صوبو کښې قومونه خپلو کښې په جنګ دي او دوي ته بالکل د چا هډو څۀ خیال نۀ دے. دوي په ارام خپل حکومت کوي او د دوي د جنګونو فیصلې کوي. په پاکستان کښې داسې څوک نشته چې په هغې کښې په قومي مشر باندې څوک اعتبار وکړي. نۀ د پاکستان د دغه قومونو د دې خاورې داسې څوک وسیدونکے شته چې هغه هم د دې خاورې او د پاکستان د خودمختارۍ او ګټې فیصلې وکړي.

## ازاده پالیسي:

هرکله چې غازي امان الله خان افغانستان د ازادې پالیسۍ په لور بوتلو او د افغانستان د فائدې خبرې ئې شورو کړې نو برطانیې د افغانستان خلق د اسلام په نامه راپورته کړل. دغه خلقو به ځاے په ځاے وئیل چې امان الله خان ازاد خیاله سړے دے او د هغۀ د ښځې تصویرونه ئې د ګډا په حالت کښې ویستلي وو او خلقو ته ئې ښودل. هم د هغه طریقه کار په حواله بټهو باندې هم د کفر فتوې ولګیدې. د شریعت په نامه باندې تحریکونه شورو شول، چې د بټهو د پارټۍ نه علاوه نورې ټولې پارټۍ د بټهو خلاف په یو پلیټ فارم ودریدې او د الیکشن کولو مطالبه ئې وکړه.

هر کله چې الېکشن وشو د هغې نه پس ئې د بټهو په پارټۍ د دهاندلو او د بټهو د لرې کېدو تحریکونه شورو کړل. په ۱۹۷۷ء کښې د صفا الېکشن کولو او د احتساب په وعده د بټهو نه اقتدار یو جرنېل ترلاسه کړو یعني دا هم د تاریخ یو عجیبه موړ وۀ چې ټول اسلامي ملکونه چې اسلامي سربراه کانفرنس کښې چا رابللي وو او په دې کښې تاریخي فېصلې چا کړې وې، کومې چې د امریکې او یورپ خلاف وې، د شریعت نۀ منلو په تور کښې د اقتداره لرې کړې شو.

د صفا ووټونو، د احتساب او د شرعي نظام په پاکستان کښې د نافذ کولو په نامه باندې ضیاالحق جرنېل اقتدار ترلاسه کړو چې هغه ترکومې پورې ژوندے وۀ تر هغه وخته پورې الېکشن ونۀ شولو. د احتساب په نامه بټهو له پانسي ورکړې شوه. د بېوروکرېسي هغه مهاجر چې ترقي ترې نه د ګنکپې ترمخه پاتې شوې وه، هغه تمام مراعات ئې په یو ځل واخستل. دوي د شریعت په نامه نظام صلواة او نظام زکواة د هغه پارلیمنټ نه منظور کړو کوم خلق چې د غېر سیاسي پارټو په بنیاد اسمبلو ته تلي نۀ وو. هغه پارلیمنټ ته به دوي مجلس شورٰی وئیله.

دوه کاله پس په افغانستان کښې د روس فوجونه داخل شول. په پاکستان د نظام صلواة او زکواة ترمخه د ډالرو باران شورو شو. د پښتنو او بلوچو غوندې قومونه چې ځان به ورته په زکواة اخستلو بد ښکارېدۀ دامریکې نه راغلي د زکواة په رقم ئې جنګونه شوروکړل او د جهادپه نامه باندې د اسلامي ملکونو نه مالي او جاني امداد وغوښتے شو، چې په هغې کښې د امریکې او یورپ او نورو ملکونو بهترینې وسلې لکه سټېنګرې، بلوپائپ او کلاشنکوفي یواځې په افغانستان

کښې نه بلکې د درې په بازارونو کښې ښکاره باره خرڅېدلې. جهادي مشران راغلل په پېښور کښې دېره شول او دا عربي مشران چې مالي او جاني امدادونه ورته د امریکې د لورې نه شوي وو، اسامه بن لادن او ایمن الزواهري غوندې خلق ئې په پېښور کښې زمونږه مېلمانهٔ کړل.

په ۱۹۶۸ء کښې یو ښهٔ لیکوال او ترجمان چې ئې امید پېدا شو چې امریکه د دوېم جنګ عظیم نه پس په خپله یو عظیم طاقت دے، چې ۷ فیصده ابادي ده او د دنیا پنځوس فیصده وسائل هم د امریکې ترلاسه دي. مونږه له پکار دي چې دا ګېپ نور هم سېوا کړو او مونږه په دې کښې انساني همدردۍ او نور فضولیات او جمهوري ملکونه خپل مخ نیوي ته پرېږدو او د ټولې دنیا ټول وسائل کهٔ په زور وي او کهٔ په رضا وي چې زمونږه ترلاسه شي، چې زمونږه ابادي هم راپاتې شي او دغه شان امریکې ته او د امریکې هر یو فرد ته فائده ورسي. د هغه وخت نه راواخله تر دې وخته امریکه هم په هغه مقام ولاړه ده. نن ئې هم په ټولو وسائلو کښې پنځهٔ کم سل فیصده حاصل کړي دي او د پنځهٔ فیصدو د پاره ئې کوششونه جاري دي.

په ۱۹۶۶ء کښې په انډونېشیا کښې سهارتو راوستل او هلته په فوجي بغاوت کښې پنځهٔ لکه کسان وژل، د نوو نوو غټو کارخانو په نامه باندې انډونېشیا قرضدارے کول او هغوي ځان ته کښېنول. په ۱۹۷۰ء کښې په چیلي کښې یو منتخب صدر وژل او د هغهٔ په ځاے د خپلې خوښې جرنېل کښېنول او بیا په ۱۹۸۰ء کښې د جهاد په نامه روسي طاقت ختمول، ټول اسلامي قوتونه په افغانستان کښې غونډول، د دهشت ګردۍ په نامه هغه ختمول دا فقط دغه یو لورې ته اشارې دي چې څهٔ رنګ به د ټولې دنیا وسائل زمونږه ترلاسه شي او ټوله دنیا سره د مسلمانانو زمونږه طاقت او زمونږه بدمعاشي ومني.

اسلامي پوهان دانشوران د عيسايانو او يهوديانو د اهمو فېصلو کتابونه نۀ ګوري، دغه شان زمونږ د پاکستان د مذهبي پارټو مشران او ديني عالمان د دغه کتابونو کتونکو ته هم د کافر په نظر ګوري. په ۱۹۸۰ء کښې په برطانيه کښې د لېبر حکومت په خپلو پاليسو کښې د بدلون ترمخه د معاشي بدحالۍ ښکار شول او د پاؤنډ قيمت هم پرېوتلو. د لېبر په کارخانو کښې د هړتالونو په حواله د امدن کارخانې بندې شوې، تر دې حده چې د کلو په کارخانو کښې هم لېبر په هړتال وۀ. په داسې حالاتو کښې د برطانيې انټلي جنټس (M I 6) چې د دنيا بهترينه انټلي جنټس اداره ده، د دنيا دوه لوے طاقتونه يعني روس او امريکې ته خپلې اېجنسۍ جوړې کړې وې لکه سي ائي اے او کے جي بي. دوي برطانيې حکومت ته ووئيل چې نن په اېشيا او افريقه کښې جنګونه د ملکونو ترمېنځه روان دي. هر څومره جنګونه چې کېږي دا په معلوماتو باندې ګټلي شي. چونکې مونږه په دغه ملکونو بادشاهي کړې ده، د دوي د اندروني حالاتو نه ښۀ خبر يُو او د دوي ټولې کمزورۍ راته ښې معلومې دي. اوس د دوي نه دا فائده اخستې شو چې په دې دواړو ملکونو خپله وسله خرڅه کړو په دغه غټو طاقتونو چې کوم په دې جنګونو کښې ملوث دي زيات رقم چې کوم يو راکوي په هغۀ به معلومات خرڅ کړو.

د هغه وخت لېبر پارټۍ ورسره دا خبره ونۀ منله هرکله چې الېکشن وشو او کنزروېټيو راغلل د هغې نه پس تېچر دا خبره ومنله چرته ئې د جنګ معلومات په امريکه باندې خرڅ کړل لکه انګولا او موزمبيق هلته به د امريکې ملګرو جنګ وګټلو. په دې دوران کښې به برطانيې په دواړو ملکونو باندې وسله هم خرڅوله او کوشش به ئې دا وۀ چې جنګ دې اوږد شي او زمونږ زياتې نه زياته وسله خرڅه شي.

په ۱۹۸۹ء کښې چې څهٔ وخت روس په افغانستان کښې داخل شو نو د برطانیې دا معلومات د دواړو ملکونو د پاره انتهائي ضروري وو او د دې معلوماتو د پاره ئې هرڅومره رقم ورکولو خو امریکې برطانیې ته د دوي د طبعې د خبرو د منلو هم پیشکش وکړو. هغه دا چې کهٔ چرې دا معلومات تاسو په روس خرخ کړل نو تاسو سره به زړې معاهدې ختمې کړو او برطانیې ته به د دشمن په نظر ګورو. دغسې په ۱۹۸۹ء کښې د ګټې کولو کارخانو کښې په امریکه کښې، برطانیې ته بې رقمه حصې ملاو شوې چې په هغې کښې د کوکاکولا او پیپسي، د موټرو جهازونو کارخانې هم شاملې وې.

امریکنیان کم عقل خلق وو چې د معاهدې نه پس برطانیې ترې نه پوښتنه وکړه چې په افغانستان کښې څهٔ غواړے هغوي ورته ووئیل کابل غواړو، دوي ورته ووئیل کابل خو په یوه ګینټه کښې قبضه کېږي او د پاکستان پرې په اختستو نهایت دوه درې ورځې لګي. خو مونږه ته خپله تجربه، خپل تاریخ او خپل معلومات واضحه کوي چې کابل نیول اسان دي خو وتل ترې نه ګران دي او کهٔ تاسو چرې زمونږه په مشوره باندې عمل وکړلو چې دې جنګ له لس کاله دوام ورکړئ، نو زمونږه تاسو سره دا وعده ده چې په دغه لس کاله کښې به درته ټول روس ختم کړو هرکله چې روس ختم کړو بیا مونږه په دغه عوض کښې ستاسو نه څهٔ نهٔ غواړو او د دې جنګ د اوږدولو فائدې زمونږ د لاسه خي، امریکې ته ئې ترمخه کړه.

وړومبے دا چې دا جنګ به د اسلام او د جهاد په نامه کېږي نو خاص د عربو ملکونو او د اسرائیلو ترمینځه په جنګ کښې چې شک او شبهې په نوم په یو بل پیدا شوي دي هغه به ختمې شي. وائي به چې امریکه د جهاد په نامه باندې په افغانستان کښې د مسلمانانو سره

امداد کوي. د دوي نيت زمونږه د پاره ښهٔ دے او په کومو عربو ملکونو کښې چې د تېلو وسائل دي او ستاسو دا خواهش دے چې دا به په زور نيسو هغوي به د خپلې دفاع د پاره په خوشحالۍ ستاسو فوجونه راولي او په خپلو ملکونو کښې به ئې ډېره کړي. دغه شان د هغوي وسائل به په پُرامن طريقه ستاسو ترلاسه شي. بله دا چې د ټولو اسلامي ملکونو به د روس نه هغه خوف پېدا شي چې روس سره د وسلې معاهدې شوې دي، هغه به هم ختمې شي، بيا به زمونږ نه او ستاسو نه د وسلې اخستلو کوششونه کوي. بله دا چې په افغانستان کښې مونږه په خپله نهٔ جنګېږو، البته په دې جنګ کښې چې روس کومه وسله استعمالوي، مونږ ته به د هغې وسلې پته ولګي چې دا وسله څهٔ رنګ جوړه شوې ده او په دې کښې څومره طاقت دے؟ بله دا چې دا وسله به د لسو کلونو په دوران کښې په افغانستان کښې په افغانانو باندې ضائع شي. بله دا چې زمونږه او ستاسو دا فائده مشترکه ده، هغه داچې زمونږه اصلي دشمن روس نهٔ دے بلکې مسلمانان دے چې مونږه په افغانستان کښې چې څومره جنګي مسلمانان دي چې د مذهب په نامه باندې د کافر سره په جنګ فخر کوي، هغه به ټول په افغانستان کښې راغونډ شي هسې به هم دغه برخه زمونږه په ذريعه اخلي، خو د دوي پېژنګلو به هم وشي د سبا د پاره به د دوي په ختمولو کښې مونږه ته اسانتيا وي، په ځاے د اسلامي ملکونو چې په دې خلقو پسې ګرځو او جنګي مسلمانان پېدا کوو، دوي به ټول يو ځاے ته راغونډ کړو، اول به په دوي روس ختم کړو، څهٔ خلق به په دغه جنګ کښې د دوي ختم شي، جنت ته به لاړ شي او چې کوم خلق پاتې شي، هغه به ورپسې مونږه تر جنته ولېږو. دا خلق ختمول مونږه ته د مسلمانانو نه د لښې ويستلو په شکل کښې

ښکاري. په ټولو اسلامي ملکونو کښې چې کوم بقایا پاتې دي دا بې لشې ماکوان دي، ښۀ په خوشحالۍ به زمونږه غلامي قبوله کړي یعني دا ټول پلاننګ د هغوي صحیح وۀ او په صحیح طریقه ئې ترسره کولو، فقط لشې والا خلق لا پاتې دي چې د دوي د ارادو نه برعکس ورځ تر ورځې زیاتېږي. هغه یواځې په افغانستان کښې نه بلکې د عراق او لبنان غوندې ملکونو کښې ئې لشې پیدا کړي.

په اسلامي ملکونو کښې سېوا د ایران نه داسې ملک نشته چې د هغې وسائل د امریکې او د هغې د اتحادیانو ترلاسه نۀ وي. د روس چې کومه حصه د افغانستان سره په بارډر پرته ده او ټول اسلامي ممالک دي، په دې کښې د تېلو او ګېسونو ډېرې لویې او غټې ذخیرې پرتې دي. روس د دې ملکونو نه پائپونه ماسکو، یوکرائین او کیوبا ته رسولي دي نو د دغې نه په اوچه باندې دا پائپونه یورپ ته هم ورکولے شي خو دغه لاره د امریکې د پاره ډېره اوږده ده او کۀ څۀ فائده ورکوي، هغه به یورپ ته ورکوي. امریکې ته د ټولو نه نزدې او فائده منده د ایران په لاره دغه پائپونه سمندر ته غورزول دي.

په موجوده حالاتو کښې دغه دوه لارې ممکنې نۀ دي. په افغانستان کښې چې تر کومې پورې یو مضبوط حکومت راغلے نۀ وي او پُر امن حالات ئې پیدا کړے نۀ وي نو د پائپونو بوتلو اراده په افغانستان باندې فضول ده.

د برهان الدین رباني د صدارت په وخت کښې په افغانستان کښې د یونیکال او نورو بین الاقوامي ادارو چې هغه د پټرولو او ګېسونو په کارونو کښې ملوث دي ورسره ئې معاهده کړې وه، چې مونږه به د افغانستان په لاره دا پائپونه پرېږدو. چونکې د رباني حکومت په افغانستان کښې څۀ حکومت نۀ وۀ او دغه پائپونه د ټولو

صوبو نه تېرېدل او په دغه صوبو کښې اکثريت هم د پښتنو وُ چې د رباني حکومت ئې نهٔ منلو.

د بې نظير د حکومت په دوران کښې هم دا معاهدې شوې دي، چې ستاسو پائپونه به مونږه په دې لاره پرېږدو چونکې په دوي ډېره تادي وه زور ئې لګولے وُ، وئيل ئې ستاسو پائپونه ولې نهٔ راځي؟ هغوي ورته ووئيل په کومه لار د افغانستان چې پائپونه رسول پکار دي، په هغه لاره د رباني کنټرول نشته. نصيرالله بابر هم په دغه حکومت کښې وزير وُ، هغهٔ ووئيل چې په دغه لاره د پائپونو رسولو زهٔ ګارنټي درکوم البته زما سره د قومي سفارتخانو نه خلق ولېږئ زهٔ به هم په دغه لار په کومه لار چې تاسو پائپونه راوستل غواړئ هغوي سره به د ټولې قافلې لاړ شم، بيا به پرې راشم چې دا ثابته شي چې په افغانستان کښې څهٔ مشکلات نشته. خو چې هرکله دا پروګرام ناکام شو، بابر صاحب دا نمائندګان او طالبان سره مخامخ کړل، ورته ئې ووئيل کهٔ تاسو او مونږه د دې طالبانو سره امداد وکړو نو دوي به د دې قابل شي چې په ټول افغانستان به دوي حکومت وکړي. هرکله چې د هغوي حکومت راغے د نوي فيصد نه زياته حصه د دوي ترلاسه راغله. د دې مقصد حاصلولو د پاره چې په ټولو غلطو کارونو طالبانو د امريکې خُلهٔ بنده کړې وه، کهٔ د ۱۱/۹ حالات نما شوے نهٔ وے نو تراوسه پورې به د دوي دا مقصد هم تر سره شوے وُ خو د مالي او جاني امداد په شکل کښې د عربو نه راغلے اسامه چې په افغانستان کښې د طالبانو مېلمه وُ، ۱۱/۹ او په امريکه کښې د دماکو دعوه پرې وشوه، د امريکې دا خيال وُ چې طالبان خو زمونږه د لاس جوړ شوي خلق دي او ښهٔ مسلمانان هم دي، چې څهٔ رنګ صلح حديبيه رسول (ص) د خداے د کافرانو سره کړې وه، چې څوک په جنګ کښې زمونږه نه په تېښته

باندې تر تاسو درشي هغه به مونږ له راکوئ. لهذا د صلح حدیبیه په حواله اسامه بن لادن مونږ له راکړئ، خو د شاه حسین بادشاه ورور او د پاکستان ډېرو ښو ښو عالمانو چا چې ورته صلح حدیبیه په ګوته کړې وه، د هغې باوجود ئې اسامه ورنهٔ کړلو او په جواب کښې ئې ووئیل دا به د مسلمانانو روایت وي خو د پښتنو دا روایت نهٔ دے، څوک چې زمونږه په ځاے کښې پناه واخلي ترڅو پورې چې زمونږه کورنۍ پرې مړې شوې نهٔ وي تر هغې پورې په ژوندانهٔ باندې هغه مېلمه واپس نهٔ ورکوو. د هغه روایاتو په بنیاد دهٔ له مونږ دلته پناه ورکړې ده او دې اوس د امریکې او د هغې د اتحادیانو سره جنګیږي.

عجیبه خبره دا ترمخه راشي چا چې جوړ کړي وو، چاچې پاللي ووهم هغوي ئې دختمولو کوشش کوي. په داسې حالاتو کښې پاکستان هم عجیبه حالاتو سره مخ شو. دېرش کاله د افغانستان سره په ټولو مصیبتونوکښې شریک وهٔ مهاجرئې دېرش کاله په خپله خاوره وساتل او هم ئې وپالل او د روس سره د جنګ په دوران کښې د مجاهدینو ټول مشران په پېښور کښې پراتهٔ وو او د پاکستان فوجي امداد او د خلقو تر مخه د روس غوندې طاقت نه ځانونه خلاصول د پښتنو د صوبې خلق چې سل په سل فیصده مسلمانان دي، د روس خلاف په جهاد کښې د خپلو پښتنو ورونړو سره اوږه په اوږه جنګېدلي دي او شهیدان شول. د پاکستان مسلمان ګاونډي ورور سره په دې جهاد کښې برابره حصه اخستې ده. د جنګ د هر قسمه تاوان بالخصوص پاکستان ته او زمونږه صوبې ته ورسېدو او فائده ئې هندوستان ته ورسېده. د پاکستان فوج ته او د پاکستان خلقو ته د افغانستان خلق نن د نفرت په نظر ګوري او د دوي په ښو فېصلو شک کوي.

پاکستان او امریکې دواړو په شریکه طالبان په افغانستان

کښې د امن د پاره جوړ کړي وو او تربیت ئې ورکړے وۀ. دغه طالبان یواځې طاقت پاتې شوے وۀ، په افغانستان کښې امن راوستل او دپاکستان سره ښۀ تعلق ساتلو امیدونه وابسته وو. نن د پاکستان هغه فوج ته حواله شوے دے چې اوس ئې ختم کړئ. دغه شان امریکه مونږ ته وائي چې تر کومې پورې دا بچي تاسو لوے کړي وو او تاسو پاللي وو او تاسو تربیت کړي وو، هغه په خپل لاس ختم کړئ. اوس د پاکستان واکدارانو د ویرې نه دا فېصله کولې نۀ شوه چې مونږه خپل ځان وساتو، خپلې کرسۍ وساتو، اسلام وساتو او کۀ خپل بچي وساتو او کۀ د خپلو کرسو ساتلو د پاره خپل بچي مړ کړو؟

آیا څۀ رنګ دافغانستان خلق د پاکستان مشرانو ته د نفرت په بنیادګوري. د دنیاټول ازادخودمختارملکونه اودهغې مشران یعني هر یو د خپل ملک دپاره داسې پالیسۍ جوړوي چې هغه هم د هغې ملک په ګټه تمامېږي. په دې کښې د هغه ملک د وسېدونکو د اکثریت مرضي هم شامله وي. په جمهوري نظام کښې باربار د الېکشنونو په ذریعه عوام دخپلې رائې اظهارکوي. پاکستان په ټوله دنیا کښې واحد داسې ملک دے چې د مذهب په نامه جوړ شوےاو بېل شوے دے. دا هم د تاریخ یو تریخ حقیقت دے چې په هغه وخت کښې د هندوستان ټولومذهبي پارټود مذهب په نامه د دې د جوړېدو مخالفت کړے دے. لکه جمیعت علمائے هند او جومات اسلامي هم د دې جوړونکو خلقو باندې د کفر فتوې ورکړې وې او دا وئیل چې دغه خانانو، نوابانو ته کلیمې هم نۀ ورځي، ځنو به وئیل چې په پاکستان کښې چې څومره ملسمانان دي د دې په دوه هومره مسلمانان په هندوستان کښې دي او د هندوانو په رحم وکرم پاتې دي. ځنو به وئیل چې هندوستان کښې مونږ په شریکه پاتې شو نو مونږه به دا باقي هندوان مسلمانان کړو.

د ۱۹۸۰ء نه پس دا کار د امریکې او برطانیې دانشوران ترسره کوي چې د سلطان صلاح الدین ایوبي د وخت نه راواخله ترسن دوه زره پورې د دوي ټول پنځوس کلیزه پروګرامونه هم په دغه وختونو کښې ترسره شوي دي چې په دوه زره او دوه زره یو کښې د دوي د مشرانو د وېناګانو په حواله دریم جنګ عظیم شورو شوے دے او دا د دهشت ګردۍ په نامه شورو دے چې د مسلمان نه علاوه ئې په بل چا ګوته ایښې نۀ ده. د بدقسمتۍ نه چې دا لړ ډېر وسائل چې کوم امریکې ترلاسه کړي نۀ هغه څۀ په ایران کښې دي او څۀ د روس نه ازاد شوي ملکونو لکه تاجکستان، ازبکستان چې ټول مسلمانان دي، دغه وسائل خپل لاس ته د راوستو د پاره په افغانستان کښې امن ضروري دے خو داسې امن چې د دوي د مقرر کرده خلقو د لاس د لاندې راشي او بیا د پاکستان په لار دغه پائپونه تر سمندر راورسوي.

په افغانستان کښې امن او د امریکې فوج پاتې کېدل د ایران د حالاتو سمولو د پاره او ځاے په ځاے کښې دا اخري وسائل قبضه کولو د پاره هم دا ضروري دے. په بلوچستان کښې حالات خرابول هم په دغه لور باندې یو قدم دے چې د امریکې فوج خو دلته کښې راشي او د بلوچیانو زمکې قبضه کړي. دا ځکه چې د هغوي پوله هم د ایران سره لګېدلې ده بل په بلوچستان کښې خپله هم د ګېسونو، پټرولو ذخیرې موجودې دي ځکه د دهشت ګردۍ خلاف دا جهاد چې د امریکې پوهان ورته دریم عظیم جنګ وائي، د بلوچستان قبائیل او زمونږه صوبه چې ترکوئټې پورې په کښې پښتانۀ دي، د دې علاقو دا جنګ شورو شوے دے او هم په دې علاقو به ختمېږي. د پاکستان او افغانستان دیني عالمان فقط په خُلۀ وائي مونږه د امریکې خلاف یُو خو په ناپوهۍ کښې خپلو صحیح خبرو ته عملي جامه اغوستې نۀ شي

ځکه چې د جنګ په حالاتو کښې لږه ناپوهي د دوي ټول عالم اسلام ته ډېر نقصان رسولے شي. د ټولو غټو پارټو مذهبي مشران په پاکستان کښې او په افغانستان کښې پښتانهٔ دي. په اسلامي ملکونو کښې ښکاره جاره ایران د امریکې خلاف په صف کښې ولاړ دے چې د انګرېزانو وفادارو ایجنټانو د شیعه ګانو په نامه باندې د پاکستان او افغانستان سني مسلمانانو د فقهې په نامه باندې په مخالفو اړخونو کښې ودرولي وو چې نن هم په هنګو، پاړاچنار، ډي ائي خان او بنو غوندې ځایونو کښې د شیعه او سني فسادونو قیصه روانه ده.

ماځکه د دغه دیني پارټو مشرانو ته اشاره وکړه چې ټول پښتانهٔ دي او پښتانهٔ وائي چې زما د دشمن دشمن زما بهترین دوست دے. په حقیقت کښې کهٔ دوي امریکې ته د دشمن په نظر ګوري کهٔ ایرانیان کافر هم دي، خو زمونږه د دشمن دشمن دے او د امریکې په جنګ کښې زمونږه بهترین دوست کېدے شي. کوم دیني عالمان چې پاکستان کښې په قبائیلي علاقوکښې د شیعه سُني فسادونه جوړوي، هغوي فقط د امریکې امدادکوي ځکه چې د امریکې دشمن کمزورے کوي. هم دغه مشران په پاکستان کښې یوه بله واضحه غلطي کوي چې دوي ټول پاکستان ته په یو نظر ګوري او د ټول پاکستان د پاره ئې یو شان پالیسۍ جوړې کړې دي. تاریخ ګواه دے چې سندهـ او پنجاب ټول عمر د هندوستان سره په هرځهٔ کښې شریک پاتې شوي دي، د دوي تاریخ، ژبه، ثقافت، کلچراو مذهبي روایات نن هم د هغه دي کوم چې په هندوستان کښې د وسېدونکو قومونو دي. زمونږ د صوبې او د بلوچستان تاریخ د افغانستان سره شریک پاتې شوے دے او زمونږه مذهب، روایات، ژبه او کلچر یو وو او یو دے.

زمونږ خلقو ټول عمر شمال مغرب ته کتلي دي او د دې علاقو

نه په ښکته تلي دي، یواځې هندوستان نه بلکې په ټوله ایشیا کښې ئې دا دوه مذهبونه خوارهٔ کړي دي. اشوکا وائي زما نیکونه د بامیان نه راغلي وو ځکه په ټوله دنیا کښې د ټولو نه غټه مجسمه په بامیان کښې جوړه وه. بدهـ مت د اشوکا په وخت کښې خور شوے دے .دهٔ وئیل زما داسې قوم دے چې دکوره په بهر خوشحاله دے ځکه چې دوي د سیند د لارې تجارت کوي ځکه د ټولې ایشیا لارې ګودرې ورته معلومې دي. د بامیان نه راواخله تر ټیکسلا پورې علاقه ده، په هره دره او په هره ضلع کښې د بدهـ اثرات اوس هم پراتهٔ دي. زمونږه چارسده د ګندهارا اولنۍ دارالخلافه وه چې دا دیحیٰ علیه السلام د پیدائش نه پنځهٔ سوه کاله مخکښې او د هغهٔ د رحلت نه شپېتهٔ کاله وروستو یعني شپږ سوه کاله دارالخلافه پاتې شوې ده. د کنشکا په وخت کښې دارالخلافه تر پېښوره لاړه او پنځهٔ سوه کاله پېښور چې په هغه وخت ئې ورته کنکشن پور وئیل د دې نه وروستو څلور سوه کاله دربمه دارالخلافه هونډ (هنډ) وه، د هونډ نه راواخله تر تخت بهائي پورې اثرات موجود دي. په ټول هندوستان کښې بلکې په ټوله ایشیا کښې چې د اوبو لارې ورته معلومې دي او په دغه وختونو کښې ابادۍ هم د سیندونو په غاړو وې نو بدهـ مت ئې په دغو علاقو کښې خور کړو او چې کله مسلمانان شول نو په دغو ځایونو کښې ئې اسلام خور کړو. هم دغه وجه ده چې په ټوله ایشیا کښې او په کوم ځاے کښې چې بدهـ مت والاوي نو هلته به ورسره مسلمان هم وي او کهٔ د ایشیا زړې نقشې وګورو او د اوبو هغه لارې معلومې کړو نو ثابته به شي چې دا دواړه مذهبونه د یو قسم خلقو د لاسه راغلي دي، فقط دومره ده چرته کښې بدهـ مت والا کم دي، مسلمانان زیات دي، چرته کښې بدهـ مت والا زیات دي مسلمانان کم دي. زمونږه مذهبي مشران او عالمان نهٔ د دې تاریخونو

نه خبر دي او نۀ ئې کتلي دي او نۀ پرې ځان پوهوي. حالانکې انګرېزانو به وئيل کۀ چرې دا خلق مونږه عيسايان کړل، په زور يا په رضا نو په ټول هندوستان کښې او په ټوله ايشيا کښې زمونږه مذهب خورېدے شي. هم د دغې په حواله روس افغانستان ته راننوتو، خيال ئې دا وۀ کۀ زمونږه نظريه دوي قبوله کړي ټولې دنيا ته به ئې هم دوي ورسوي. حالانکې نورو ملکونو ورله دا پېغورونه ورکول چې چرته روس او چرته افغانستان غوندې وروستو پاتې ملک؟ هم دغه ارمان د امريکې هم دے چې د هغوي په پاليسئ کښې دا يو اخري خنډ دے. کوم درېم جنګ عظيم چې هغوي د افغانستان نه د مسلمان خلاف شورو کړے دے د هغې مقصد هم دا دے. هرکله کۀ مونږه دلته ګټه ور شو دا لکه چې مونږه د ټولې دنيا د مسلمانانو ګټه وکړه.

## لارډ ماؤنټ بېټن:

لارډ ماؤنټ بېټن د هندوستان وروستے وائسرائے وۀ. د هغۀ يو سېکرټري د هغه وخت د ياداشتونو په شکل کښې يو کتاب ليکلے وۀ هغه ليکي چې: انګرېزانو دوېم جنګ عظيم ګټلے وۀ خو د دغه جنګ ترمخه د برطانيې ملا ماته وه، خو کوشش ئې دا وۀ چې مونږه دې زر تر زره د هندوستان نه وځو او د هندوستان تقسيم په سياسي پارټو او د هغې په مشرانو باندې پرېږدو، بيا ئې خپله خوښه ده چې څۀ ترې نه جوړوي. په دغه وخت کښې امريکې ته هم د ځان پته لګېدلې وه چې زۀ هم يو طاقت يم، يو قوت يم او په راتلونکي وخت کښې به زمونږه د روس او چين سره مسئلې ترمخه کېږي. د انرېګزانو د مشرانو نه ئې پوښتنه وکړه هر کله چې تاسو هندوستان ازاد کړئ ايا د هندوستان مشران به سبا له زمونږ سره د روس او چين خلاف ودرېږي؟ هغوي

ورته واضحه کړه دا تپوس تري نه په خپله وکړئ. د امریکې ځنې مشرانو د نهرو سره په دې باره کښې ولیدل او خپله رائې ئې ورته په ګوته کړه. نهرو ورته ووئیل مونږه ډېر په مشکله ځان د یوې غلامۍ نه خلاص کړو. زمونږ عوام به چرې هم دې ته تیار نۀ شي چې ځان دې په بله غلامۍ کښې بوخت کړي. دې د هندوستان مشرانو او نهرو امریکنیانو ته ووئیل چې مونږ به هر هغه کار کوو چې د هندوستان او د هندوستان د عوامو په کښې فائده وي.

د دې خبرو سره امریکنیان بد ذهنه شول، د انګرېزانو مشرانو ته ئې په ګوته کړل چې د هندوستان په ماتولو کښې زمونږ فائده ده. هغه دا چې نوے پاکستان چې جوړېږي د دوي به د حکومت د چلولو د پاره ډېر ضرورتونه وي. کۀ د دغه ضرورتونو د پوره کولو ورسره مونږه وعده وکړو بیا خو زمونږ سره په هره معامله کښې څنګ په څنګ ولاړ وي. خو پکار دي چې د هغه پاکستان د چین سره بارډر وي. دغه شان د هغه وخت نه د ګلګت او چترال اړخونه د چین سره په بارډر پراتۀ دي. دا لیکونکے یوه بله خبره هم کوي هغه دا چې د انګرېزانو په دې زړۀ نۀ وۀ چې هندوستان دې مات شي خو چې هر کله د هندوستان د ماتولو فیصله وشوه د انګرېزانو دا خیال وۀ چې د پښتنو مشران به هم د خپلې صوبې او د نوي ملک د ازادۍ خبره وکړي. د ماونټ بېټن د ایلچي په حواله چې پېښور کښې د کمشنر په کور کښې ئې مشران بېل بېل سره ولیدل او دا خبره ئې ورته ترمخه کړه چې هندوستان ماتېږي او پاکستان جوړېږي نو تاسو په کښې د خپل ازاد وطن خبره نۀ کوئ؟ د دې صوبې نور مشران هم د مسلم لیګ سره تړلي دي، د دوي دا خیال وۀ چې باچاخان به زمونږه سره په دې خبره کښې ملګرتیا وکړي. هر کله چې د ډاکټر خانصاحب او د باچا خان سره ئې لیدل کتل وشول، هغۀ

ورسره هم دا خبره ونهٔ منله. باچاخان ووئیل ګاندهي زماسره وعده کړې ده چې هندوستان به نهٔ ماتېږي. د انګرېزانو ایلچي په دې باره کښې ووئیل چې مونږه خو د هندوستان د ماتېدو تاریخ مقرر کړے دے. عنقریب ده چې په هغه تاریخ د دې ملکونو د ازادۍ اعلان وکړو. ډاکټر خانصاحب ووئیل نهرو زما د سبق ملګرے دے او زمونږه د کورنۍ سره ئې نزدې تعلق هم دے، کهٔ داسې څهٔ خبره وه نو هغهٔ به خامخا ماته کړې وه. دغه شان وائسرائے د دې صوبې د مشرانو نه د ملاقاتونو پوښتنه وکړه، فقط په دوو الفاظو کښې ئې د قهره دا خبره ختمه کړه: They are anogantand stupied یعني د انګرېزانو دا خیال وۀ چې مسلمانانو په هندوستان زر کاله بادشاهي کړې ده دا مسلمانان بادشاهان د پښتنو په مرسته بادشاهان جوړ شوي دي، نو دا خلق په هندوستان کښې پائېدے نهٔ شي او نهٔ په پاکستان کښې پائېدے شي. د دوي عادتونه، د دوي رسمونه رواجونه هرڅهٔ د هندوستان د خلقو نه بدل دي. انګرېزانو چې د دې علاقې تاریخ ښهٔ مطالعه کړے وۀ نو دې خلقو ته ئې د اباسین د هغې غاړې خلق ووئیل او باقي خلق د هندوستان ئې د دې غاړې ګڼل.

د چین یو لیکوال او تاریخ دان او د یونان یو لیکوال دواړه د ګندهارا په باره کښې لیکي د اباسین مغرب ته، شمال مغرب ته او جنوب مغرب ته تر بامیانه پورې ګندهارا پرته ده. دغه شان انګرېزانو هم د اباسین د دې غاړې خلقو ته د ګندهارا ترمخه په هغې زړو سترګو کتلي دي، ځکه د انګرېزانو زمونږه سره دا همدردي وه چې په هندوستان کښې به نور واړهٔ واړهٔ قومونه ازاد پرې نو کهٔ دوي ځان له یو ازاد وړوکے ملک جوړ کړي نو په دوي زمونږه د تېرو سلو یونیم سلو

کالو د ظلمونو ازاله به وشي یعني هغه چې مخکښې مونږه کوم ظلمونه د دې ځاے په خلقو کړي دي.

په ۱۹۴۷ء کښې پاکستان په وجود کښې راغے. مخکښې چې کومې اسمبلۍ جوړې شوې وې هغه وخت په صوبه سرحد کښې د ډاکټر خانصاحب حکومت وۀ او په مرکز کښې باچا خان د قومي اسمبلۍ ممبر وۀ. د پاکستان په وړومبي قانون ساز اسمبلۍ کښې باچاخان وئیلي وو چې مونږه تراوسه پورې پاکستان نۀ منلو، مونږه وئیل دا د هندوانو تقسیم نۀ دے، البته دا د مسلمان تقسیم دے، خو چې پاکستان جوړ شو او زمونږه علاقه په کښې راغله، نو اوس ئې منو. بله دا چې هرې صوبې ته خودمختاري ورکړئ نو د هرې صوبې خپل خپل مشر به د خپلې صوبې د ښۀ کولو د پاره محنت او هلې ځلې شورو کړي، چې هره صوبه ښه شي پاکستان به خود بخود ښۀ شي.

د ۱۹۴۰ء قرارداد پاکستان کښې په واضحوټکو کښې لیکلے شوي دي چې هرې صوبې ته به مکمل اختیار وي او کۀ هره یوه صوبه د خفګان په توګه بېلېدل غواړي نو بېلېدې شي. هرکله چې د باچاخان د خُلې نه دا خبره په اسمبلۍ کښې ووته نو د ټولوپه غوږونو باندې بده ولګېده، ټولو ووئیل دا د ګاندهي جي ملګرے دے، پاکستان ماتول غواړي. څۀ رنګ چې په دې کتاب کښې مخکښې واضحه شوي دي چې دا د هغې خلقو ایجاد دے چې د هندوستان نه راغلي وو او په هغه ځاے کښې نوابۍ او جاګیرونه ئې ورته پرېښودلي وو، دغې خلقو دلته د مضبوط مرکز خبره کوله یعني هغې خلقو چې د پاکستان د یوې صوبې هم وسېدونکي نۀ وو او په پاکستان کښې ئې چرته هم مرکز نۀ وۀ نو د خپل مرکز د مضبوطولو د پاره او ځان له د مرکز جوړولو په ځاے د مضبوط پاکستان د مرکز خبره وړاندې کړه خو د پاکستان په

اسمبلۍ کښې د جاګیردارو، نوابانو اکثریت وۀ، ټولې خبرې ئې په انګرېزۍ ژبه کښې کولې. د باچا خان دا ماحول خوښ نۀ شو، د دغه اسمبلۍ د رکنیت نه ئې استعفٰی ورکړه. بیا د باچا خان په دغه سیټ غني خان تر اسمبلۍ لاړۀ. بقول غني خان په مونږه پسې په دې صوبه کښې د پښتونستان د ازادۍ خبره ګرمه وه او قیوم خان هم په مونږه راوتپله. لیاقت علي خان یوه ورځ زما نه پوښتنه وکړه چې د پښتونستان دا خبره څۀ رنګه ده او څوک ئې کوي؟ ما جواب ورکړو چې مونږ د دې ملک نه د انګرېزانو نامه ختمول غوښتله، هغه نامه ختمه شوه. اوس کۀ زمونږه د دې صوبې پښتونستان نامه ږدي یا څۀ بل څۀ نامه ورله ږدي خو چې کم از کم دې صوبې له خپله نامه ورکړي او دوېمه صوبائي خودمختاري ورکړي نو دا به ډېره ښه وي. مونږه د پاکستان په چوکاټ کښې دننه وسپدل غواړو. لیاقت علي خان په دې باره کښې ووئیل دا خو جائزې مطالبې دي البته ستاسو په صوبه کښې خو د مسلم لیګ حکومت دے. ما وئیل هم د هغوي د پاره صوبائي خودمختاري غواړو. لیاقت علي خان واضحه کړه چې د راتلونکې اسمبلۍ په اجلاس کښې دا مطالبې وړاندې کړه، مونږه ئې درسره ضرور منو. په دې دوران کښې د لیاقت علي خان پي اے او د اسمبلۍ یو ممبر جدا شول، سره بېله خبره ئې وکړه. د هغې نه پس ماته رامخامخ شول، وئیل دا مطالبې مونږ تاسره د اسمبلۍ په اجلاس کښې منو، خو د باچاخان د لاس یو تحریري خط هم د ځان سره راوړه چې مونږه پښتونستان د پاکستان په چوکاټ کښې دننه غواړو.

غني خان: د باچا خان لیکلے خط خو به راوړم خو زمونږه په صوبه کښې د قیوم خان حکومت دے، ما هغه د دې خط راوړلو ته نۀ پرېږدي، ما به تنګوي.

لیاقت علي خان: دا زما سېکرټري دے د دهٔ نامه هم لیاقت علي ده، دې په لاهور کښې وي چې تاته څهٔ مشکلات وي، دې به ستا امداد کوي. د اسمبلۍ اجلاس په هغه ورځو کښې په کراچۍ کښې کېدهٔ. لیاقت علي خان دوباره واضحه کړه چې د باچاخان تحریري خط راوړے نو زما دې سېکرټري ته ئې حواله کړه. هرکله چې د اسمبلۍ اجلاس کېږي مونږه ستاسره دا مطالبې ضرور منو.

غني خان: د دې خبرو نه پس ډېر په خوشحالۍ تر کلي راغلم او زړهٔ کښې مې وئیل چې دا خو به د پښتنو دوه غټې مطالبې حل شي. بیا مې باچاخان ته دا خبره تر غوږو کړه.

باچاخان: د دې د پاره به د پارټۍ د جنرل کونسل اجلاس راغواړو. د هغوي نه به پوښتنه کوو چې آیا دا خط ورکړو او کهٔ نا؟ د پارټۍ په دې خبرو درې اجلاسونه ترسره شول. د ډېر بحث مباحثې نه پس دا فېصله وشوه چې خط ورکول پکار دي. چا به وئیل دا لیکل پکار دي، چا به وئیل هغه لیکل پکار دي او ډېرو کسانو لا زما په خُلهٔ باندې اعتبار هم نهٔ کوهٔ چې لیاقت علي خان به په رښتیا داسې وئیلي وي؟

د خط په الفاظو چې څهٔ وخت اختلاف راغے زهٔ په غصه کښې پاڅېدم، په هغه ورځو کښې خط کتابت په انګرېزۍ ژبه کښې کېدهٔ، وئیل مې کهٔ زما نه علاوه څوک په انګرېزۍ ژبه ښهٔ پوهېږي هغه دې دا خط ولیکي او کهٔ ستاسو خوښه وي نو زهٔ به دا خط ولیکم او تاسو ته به ئې ترمخه کړم چې تاسو ئې منظور کړئ بیا به پرې باچاخان دستخط وکړي، زهٔ به ئې بیا ورسوم. په ساده ساده الفاظو کښې مې ولیکل چې صوبائي خودمختاري غواړو او د دې صوبې په وسائلو خپل اختیار غواړو. څلور څیزونه دې د مرکز ترلاسه وي: دفاع،

کرنسي، فارن پالیسي او کمیونیکېشن. د دې نه علاوه نور هرڅۀ به د صوبې سره وي او دا هرڅۀ به د پاکستان په چوکاټ کښې دننه وي.

د خط لیکلو په وخت کښې دا فېصله وشوه چې دا خط به یواځې غني خان نۀ اوړي، قاضي صاحب او امیراحمد خان به ورسره هم ځي. دغې په سباله مونږ درې واړه سره د باچاخان د خط لاهور ته روان شو. یوځل پولیس په نوښار کښې ونیولو، لس ګېنټې ئې ایسار کړو، بیا ئې په اټک کښې ونیولو او دا تپوسونه ئې زمونږ نه کول چرته روان یئ؟ څۀ د پاره ځئ؟ ستاسو ترمېنځه څۀ خبره شوې ده او دا چا سره شوې ده؟

ماته لیاقت علي خان هسې هم وئیلي وو کۀ د پولیس نه درته شکایت وي نو زما دغه سېکرټري چې په لاهور کښې دے پولیس ته هم د دۀ نامه اخله ورته وایه د هغۀ سره مې کار دے چې هغۀ ته پته لګي ضرور به ستا امداد کوي. دغسې د لسو ګېنټو په ځاے مونږ تر لاهوره په دوو ورځو کښې ورسېدو. مونږ درې واړه ملګري چې د ماښامي اشنایان هم وو، د دوي هرڅۀ ته زړۀ کېدلو خو شومان هم وو، تاوان ته شوي نۀ وو، هسې هم په ټوله لاره ئې زما مازغۀ خراب کړي وو، هم دا ئې وئیل سوال نۀ پېدا کېږي چې پنجابیان زمونږ سره دا مطالبې ومني. چې څۀ وخت د لیاقت علي خان پي اے لیاقت علي له تر لاهوره ورسېدو هغۀ ډېر په روڼ تندي زمونږ سره سترې مشي وکړل. زمونږ د پاره ئې چائې ووئیله خو زما د دې ملګرو خُلې نۀ ودرېدلې او د هغۀ سره ئې بحث مباحثې شورو کړې وې. په پنجابیانو پسې ئې خبرې شورو کړې وې هغۀ ورته په ډېره خوږه لهجه کښې ووئیل تاسو زمونږه مېلمانۀ راغلي یئ او زمونږه وروڼه یئ، سرکاري مېلمانۀ هم

یئ او تاسو به ستومانه هم یئ ستاسو د پاره مونږ په هوټل کښې انتظام کړے دے، هلته کښې لاړ شئ سبا له سحر به ماله راشئ.

ما د لیاقت علي خان سکېرټري په دفتر کښې قصداً سیګرټ پرېښودل. هر کله چې مونږه د دفتر نه بهر راووتو څۀ مېنځه پورې لاړو ملګروته مې ووئیل زۀ واپس تر هغې دفتره ورځم، زما نه سیګرټ پاتې شوي دي. یواځې ورغلم هغه سېکرټري ته مې واضحه کړه مونږ به سباله تردفتره راځوخو زماد دغو ملګرو مازغۀ خراب دي، د دوي سره بحث مباحثې مۀ کوه فقط دومره ورته ووایه چې د باچاخان خط چې د چاسره وي هغه راکړئ او بیا د هغې رسید ورکړه چې دا خط ماته ملاؤ شو. بیا مونږ ته ووایئ چې تاسو زمونږ مېلمانۀ یئ چې څو ورځې ستاسو خوښه وي هم په دغه هوټل کښې تېرې کړئ. اوس زما ضروري کار دے چرته روان یم، هر کله چې فارغ شم بیا به هوټل ته درشم.

مونږ د هغه وېنا په حواله تر هوټله راغلو، زما ملګرو ټوله شپه په خبرو باندې روڼه کړه دا ئې وئیل دا خو پنجابے سېکرټري دے دۀ ته به سبا له دا وایو کۀ د دې جواب ئې راکړو بیا به ورته دا وایو ماته خو علم وۀ چې هغه ما په هرڅۀ پوهه کړے دے. زۀ ښۀ په ارام اودۀ شوم دوي ته مې ووئیل سبا له به ګورو.

غرض دا چې شپه تېره شوه سحر سبا له ورغلو لیاقت علي سېکرټري هم هغسې وکړل چې څۀ رنګ ورته ما وئیلي وو دغه شان زما ملګرو ټوله شپه په خبرو کولو روڼه کړې وه هغه خبرې ئې په زړۀ پاتې شوې. هم دغه وجه وه چې غصه ئې نوره هم سېوا شوه. دا عادت زمونږ په ټولو ملګرو کښې موجود وۀ چې فضول او بې مطلبه خبرو باندې خپل وخت ضائع کوي. دغه شان اصلي لاره او مطلبي خبرې ترې نه په ځاے پاتې شي. هرکله چې زما دې ملګرو کلي ته د تلو د واپسۍ

خبره وکړه ما ورته ووئیل زما ښځه په دهلي کښې ده زۀ به د لاهور نه دهلي ته لاړ شم چې د اسمبلۍ سېشن کله شورو کېږي هغه ورځې له به واپس راشم.

تقریباً یوه میاشت پس چې تر خپل کلي راتلم په نوښار کښې ګرفتار شوم چې تر جېله پورې لاړم زمونږه ملګري په جېل کښې پراتۀ وو. ما د هغوي نه تپوس وکړو ولې خبر خو دے بیا څۀ چل شوے دے؟ هغوي ووئیل چې قاضي صاحب او امیرمحمد خټکه د لاهور نه واپس راغلل د پارټۍ ټول مشران ئې په دې اګاه کړل چې په لاهور کښې زمونږه ډېره بې عزتي شوې ده، د باچاخان خط ئې زمونږ نه په زور ترلاسه کړو، د دفتره ئې په بې عزتۍ رابهر کړو، هډو د خبرو کولو موقعه ئې رانۀ کړه. زمونږه د دې دومره بې عزتۍ نه دا ثابتېږي چې دا پنجابیان مونږه په دوکه کښې ساتي، مونږه هسې شرموي. سوال نۀ پیدا کېږي چې زمونږه دا مطالبې دوي حل کړي. په دغه خبرو ئې ځاے په ځاے جلسې جلوسونه شورو کړي وو. چې هغې د هنګامو شکل اختیار کړو. دغه شان د پښتنو دا دوه اهمې مطالبې چې لیاقت علي خان زما سره منلې وې او د اسمبلۍ په راتلونکي اجلاس کښې ئې د ترسره کولو وعده کړې وه، د دې دوو کسانو د زیاتي او د انا په وجه پاتې شوې.

پاکستان وړومبے لس کاله د یوملک په حېثیت په تاریخ کښې ډېر بېروني امداد ته حاجتمند وۀ او هندوستان هم دې پروپېګنډو له زور ورکړے وۀ چې دا ملک پاتې کېدے نۀ شي. دا د شکو ډېرۍ ده، په یوه لته ختمېږي. زمونږه د دې صوبې مشر یعني باچاخان هم د دې سره متفق وۀ چې دا ملک ختمېدو والا دے بیا به دا یو هندوستان وي. په هغه وخت کښې زمونږه دا صوبه تر کوئټې پورې وه، د دوي

دغه خبرو او پروپیګنډو بې اعتمادي پیدا کړه او هغه بې اعتمادۍ
زمونږ په دې صوبه کښې په ګټلو ووټونو حکومتونه بدل کړل. په دغه
دوران کښې د روس او امریکې او چین اوکمیونسټانو ملکونو د
خطرې د خپل طرف د مضبوطولو د پاره سېنټو او سیټو جوړول شول.
په دې کښې اول د هندوستان مشرانو سره خبرې اترې وشوې دا ئې
کوشش وۀ چې هندوستان دې په دې کښې شامل کړې ځکه چې
هندوستان یو لوے ملک وۀ او دغه کمیونسټو ملکونو سره ئې پولې
هم شریکې وې. دلته د پاکستان د مشرانو سره نوره خطره هم پیدا
شوه، کۀ چرې په دغه معاهدو کښې هندوستان راغے نو هندوستان ته
به د پاکستان ماتول نور هم اسان شي.

په دغه وخت کښې نهرو امریکې ته په صفا واضحو الفاظو
کښې انکار وکړو، هغۀ ووئیل دا زمونږه ګاونډي ملکونه دي، زۀ په
دې کښې امریکې سره شرکت نۀ کوم او خپل نان الائینمنټ تحریک
ئې شورو کړو. په دې کښې ئې د ایشیا هغه ملکونه د ځان سره شامل
کړل کومو چې وئیل مونږه به د ورورولۍ تعلق د هر چا سره ساتو خو د
جنګ په حالاتو کښې به د چاسره امداد نۀ کوو. د دې باوجود هم د
امریکې دا کوشش وۀ چې د پاکستان په مقابله کښې دې د هندوستان
سره ښۀ تعلق وساتي. په دغه دوران کښې پاکستان امریکې ته بې
شماره دورې شورو کړې وې، سرکاري خلق ئې لیږل. په دې غرض چې
امریکه دې پاکستان ته مخ راواړوي او په ټولو معاهدو کښې ورسره
شامل شي خو امریکې بیا هم نۀ منله تر دې حده پورې چې لیاقت علي
خان په خپل تقریر کښې امریکې له دمکي ورکړله او تاریخ ئې ورته په
ګوته کړو کۀ چرې تاسو په دغه تاریخ زمونږ سره خبرې ونۀ کړې بیا به
ارو مرو مونږه د روس سره خبرې شورو کړو. دا هم د تاریخ یو تریخ

حقیقت دے چې د هغې تاریخ نه دوه ورځې مخکښې لیاقت علي خان قتل شولو د هغهٔ د مرګ نه پس چې د دغه تحقیقاتو د پاره کوم کمېشن ټاکلے شوے وهٔ هغوي د هغې تحقیقاتو په هر اړخ مخ کړځولے دے خو په دې خبره ئې غور نهٔ دے کړے.

د لیاقت علي خان نه پس آئیني بحران پېدا شو، حکومتونه جوړېدل، ماتېدل، آئینونه جوړېدل ماتېدل، تر دې حده پورې چې په ۱۹۵۸ء کښې مارشل لاء راغله او ایوب خان اقتدار تر لاسه کړو. د پاکستان دغه لسو یولسو کالو په ژوند کښې نهٔ خو سیاسي اداري مضبوطې شوې وې او نهٔ جمهوریت ته څهٔ فائده ورسېده. البته سیاسي مشران عوامو ته ښهٔ په ګوته شول. د ټولو سیاسي پارټو مشران جاګیردارو او نوابانو د هغوي ټولې هلې ځلې د خپلو جاګیرونو د مضبوطولو او د تحفظ د پاره وې. دغه شان د یو فوجي جرنېل په راتلو عوام خوشحاله وو.

هرکله چې په پاکستان کښې مارشل لاء راغلې ده او فوجي جرنېل راغلے دے نو سیاسي مشرانو او عوامو ورته ډېر ښهٔ وئیلي دي یعني د قوم د نجات لاره ئې نمانځلې ده. بیا د دغه جرنېلانو نه دوي خپل ځان په جلسو جلوسونو د قوم او ملک په ډېرو قربانو او تحریکونو خلاص کړے دے بلکې ایوب خان هم د ډېرو ښو ښو کارونو بنیادونه اېښودي وو. اول ئې په پاکستان کښې پلاننګ کمېشن جوړ کړو چې پنځهٔ کاله کښې به دا کار کوو. په پاکستان کښې ئې د غټو سرمایه دارو نشاندهي وکړه چې دویشت خاندانونه ئې عوامو ته په ګوته کړل چې په هغې کښې اوولس خاندانه د هندوستان مهاجر راغلي وو او پنځهٔ د دې وطن نوابان چې کارخانې ئې هم لرلې، زرعي اصلاحات ئې وکړل یعني هر یو سړي سره به د درې

سوو جریبو نه زیاته اوبۀ خوري زمکه نۀ وي. د بنیادي جمهوریت ترمخه ئې کلي په کلي الیکشن وکړل، د ممبرانو چېرمېنانو په شکل کښې ئې نوي قومي نمائندګان راپیدا کړل. په دغه ممبرانو باندې ئې هم د قومي اسمبلۍ ممبران خوښ کړل او جوړ کړل او هم ئې پرې صدارتي الیکشن وکړلو.

د مشرقي پاکستان لیډرانو او عوامو د خپل حق غوښتنه وکړه. هغوي وئیل مونږه درې شپېتۀ فیصده یو او نور پاکستان اوۀ دېرش فیصده دے، دغه شان د پاکستان امدن او مشري مونږ ته په دغه بنیاد راکړئ. دا خیال ئې هم ښکاره کړلو چې د پاکستان زیاته ګټه په درامداتو کښې د وریژو او د پټ سن (سڼ) ده چې دا زمونږه د مشرقي پاکستان پېداوار دے. دغه شان د پاکستان په صدارتي کرسۍ کښې، رېلوے کښې، په جهازونو کښې، په فوج کښې، په پولیس کښې دې د درې شپېتو په بنیاد مونږ ته حصې راکړې شي.

ایوب خان څلور واړه صوبې ختمې کړې او یوه صوبه ئې جوړه کړه او د برابرۍ په بنیاد ئې په پنځوس پنځوس د هغې صوبې مشران رضا کړل او یو ته ئې مشرقي پاکستان ووئیل او بل ته ئې مغربي پاکستان ووئیل. د ۱۹۷۰ء پورې هغوي ته په یو شي کښې لس فیصده حصه هم نۀ ده ورکړې شوې. ایوب خان سره د دې ښو ښو کارونو ښو ښو پلاننګونو او ښو ښو ادارو څکه ناکام شو چې حکومت چلولو والا، ادارو چلولو والا د دۀ دا پروګرامونه په خپلو پښو نۀ ودرول. د دغې ادارو سي ایس پي افسران وو او کۀ جرنېلان وو څۀ د هندوستان د شاهي کورنو خلق وو، څۀ د پاکستان د نوابانو او جاګیردارانو بچي وو. دې خلقو د ځانه څنګه زمکې اخستې او بل له ئې ورکړې وې. درې درې سوه جریبه زمکې ئې د یو یو بچي په نامه ولیکله او درې درې

سوه جریبه زمکې ئې د ښځو په نامه ولیکلې. د هغې نه پس ئې د خپلو ناظرانو او د هغوي د بچو په نامو ولیکلې، دغسې د ډېرې زمکې ئې په فرضي نامو باندې ولیکلې، د کارخانو د پاره چې څوک د بېنک نه قرضې اخلي نو د هغې ګارنټي ورکوي او خپلې زمکې ورسره ضمانت کښې جمع کوي. دا دومره زیات رقم وۀ چې په پاکستان کښې صرف پنځو کورنو سره وۀ او د هغوي دومره زمکې وې چې هغوي د هغې رقم په عوض کښې ورکړې او د مهاجرو د پاره دا قانون جوړ شو چې دا د هندوستان نه راغلي خلق دي او د دوي زمکې هلته پاتې شوې دي نو دوي ته چې کومې قرضې ملاوېږي دوي به هم هغه کارخانې په ګارنټۍ کښې ورکوي. دغه شان هر مهاجر چې د څۀ کار د پاره څومره پېسې د بېنک نه اخلي او څومره ئې اخستې دي، هغه تراوسه پورې په دغه پېسو چلېږي یعني د دې پاره څۀ لیکلے قانون نشته. چونکې بېنکنګ کونسل ټول عمر د مهاجرو ترلاسه پاتې شوے دے او د مختلفو بېنکونو قرضې ورکولو ادارو مشران ټول مهاجر دي څکه دوي ته په دې قرضو اخستو کښې څۀ تکلیف نۀ وي. په نورو ملکونو کښې چې د پاکستان سفارتخانې دي په دغه سفارتخانو کښې پنځۀ نوي فیصده مهاجر دي. د ټولو نه غټ سټاک اېکسچېنج په کراچۍ کښې دے یعني چې مهاجرو سره حصه دار نۀ شي نو د ملک نه بهر څۀ شے ویستے شي او نۀ دې ملک ته راوړے شي یعني په درامدات او برامدات دواړو باندې د دوي قبضه ده.

دا د ایوب د دور هغه ښۀ پلاننګونه وو چې د مهاجرو افسرانو ترلاسه شو اوتیجې ئې خرابې اوختې. دمضبوط مرکز په نامه باندې د صوبوحق غوښتووالا کله دا برداشت کولے شو چې مشرقي پاکستان ته دې خپل حق ورکړي. د برابرۍ په بنیاد خو د هغوي سره وعده شوې وه

چې پنځوس فیصده به ضرور درکوو خو په نوکرو کښې بلکې په یوه اداره کښې هم د هغوي د لس فیصدو نه زیات خلق نۀ وو. دغه شان د هغوي ګیلې نورې هم زیاتې شوې د غدارۍ او د سازش په کېس کښې شیخ مجیب هم ونیوے شو او د ملک په دواړو حصو کښې هنګامې، جلسې جلوسونه د ایوب خان خلاف شورو شول، چې د ایوب خان په یوه جلسه کښې په ایوب خان ګولۍ هم وچلېدې. اخر ایوب خان دې ته مجبور شو چې یحیٰ خان ته ئې اقتدار حواله کړو. یحیٰ خان صوبې بیا بحال کړې او د الېکشن کولو وعده ئې هم وکړه او سیاسي بندیان ئې ازاد کړل خوچې زمونږ صوبه په ون یونټ کښې د شاملېدو نه مخکښې د چتراله تر بولانه پورې وه چې کوئټه په کښې هم شامله وه. بیا هم په دغه موجوده حالت کښې پاتې شوه یعني کوئټه او بولان بلوچستان صوبه کښې شامل شول. د یحیٰ خان په ټولو کارونو کښې د ټولو نه ښه او غټه کارنامه په پاکستان کښې صفا او ازاد الېکشن کول وو.

په ۱۹۷۰ء کښې داسې ازادانه او پاک الېکشن نۀ د دغې نه مخکښې چرته شوے دے او نۀ بیا شوے دے. د دغه الېکشن په نتیجه کښې د درې شپېتو دابادۍ په بنیاد باندې په درې سوو سیټونو کښې د یو سل اویاؤ نه لږه زیاته کېده چې صرف دوه سیټونه د عوامي لیګ نه بهر وو. دغه شان د ۹۹ فیصد نه زیات ووټونه عوامي لیګ واخستل. عوامي لیګ ټول الېکشن په شپږ پوائنټ ایجنډه باندې کړے وۀ. په شپږ پوائنټ ایجنډه کښې مکمل صوبائي خودمختاري وه. د دغې نه شل کاله مخکښې چې کومې زیاتۍ د هغوي سره شوې وې په شپږ پوائنټ ایجنډه کښې د هغې ازاله هم وه. زمونږ د صوبې او د بلوچستان د سیاسي پارټو مشران هم د هغوي په ګټه باندې خوشحاله وو. د پاکستان په تاریخ کښې ورته په اول ځل د خپل حق د

ملاوېدو رېا ترمخه شوې وه. په هغه وخت مهاجرو خپله پارټي نۀ وه جوړه کړې خو په پیپلز پارټۍ کښې ډېر زیات مهاجر وو لکه معراج محمد خان، مبشرحسن وغېره بیوروکرېسي ټوله د مهاجرو وه. فوج د پنجابیانو وۀ، په جرنېلانو کښې د بنګالیانو هیڅوک نۀ وو. دغه شان فوج او بیوروکرېسي نۀ صوبوته خپل اختیار ورکولو اونۀ د پاکستان د اقتدار واګې داسې خلقو له ورکولو ته تیار وو چې هغه دخلقو په خوښه راغلي وو. ولې چې بیا به د دوي سره د ډېرشو کالو حساب وکړي او د پاکستان د حقیقي وسېدونکو حق به ترې نه غواړي.

په صوبو کښې چې کوم حکومتونه د دغې الېکشن تر مخه راتلل د هغې اکثریت د دغې صوبو خلق وو او د خپلې صوبې حق ئې خامخا غوښتو. دغه افسران او جرنېلان ټول په ډاګه پاتې کېدل. بټهو خپله هم د سندهـ وسېدونکے وۀ خو د سندهـ په لویو لویو ښارونو ئې مهاجر ودرولي وو. دغه شان په پنډۍ کښې او په لاهور کښې په ټول پنجاب کښې ئې مهاجرو ته کافي نمائندګي ورکړې وه. یحٰی خان ئې هم په دې قائل کړو کۀ هرکله مونږ اقتدار شیخ مجیب ته حواله کړو نو پاکستان به پنځۀ ټکړې شي. یعني هره صوبه به په خپله خاوره خپل اختیار لري دغه شان د مضبوط مرکز خبره چې فوج او بیوروکرېسي روانه کړې ده دا به ختمه شي. دغه شان مشرقي پاکستان ته ئې فوج ولېږلو. شیخ مجیب د اسلام اباد په ځاے په ډهاکه کښې د وړومبي اجلاس کولو خواهشمند وۀ او چې تر اسلام اباده راتلو په ډهاکه کښې ګرفتار شو. د اسلام اباد نه ئې تر جېله پورې راوستو. بیا د فوج خلاف په مشرقي پاکستان کښې عوام راپاڅېدل او د شلو لکو عوامو د قربانو په نتیجه کښې هغه خلق د مغربي پاکستان نه جدا شول چاچې پاکستان جوړ کړے وۀ.

د شیخ مجیب د ګرفتارۍ په وخت کښې د یو جرنیل خبرې په
اخبارونو کښې شائع کېدې. د هغهٔ نه تپوس وشو چې شیخ مجیب له
۹۹ فیصده ووټونه عوامو ورکړي دي هغه تاسو ګرفتار کړلو، اوس
دغه عوامو سره به څهٔ کوئ؟ آیا دوي به په جېلونو ننباسئ کهٔ وژل به
غواړي؟ هغهٔ جواب ورکړلو زمونږ په عوامو څهٔ کار نشته دے په زور
وي او کهٔ په رضا وي دا خاوره به زمونږ سره وي. نن په دې باقي
پاکستان کښې هم داسې ښکاري چې د دوي دې خاورې ته حاجت
دے، ځکه چې د دوي خو خپله خاوره نشته دے نو د دې خاورې خلق
به یا وژني یا به ئې هجرت کولو ته تیاروي. په امریکه کښې هم د
امریکې خلق د یو شي حقدار نهٔ دي نن امریکه د مختلفو ځایونو نه
راغلي مهاجرو ترلاسه ده. دغه شان د پاکستان نه هم مهاجرستان جوړ
دے. مهاجرو سره زمونږ څهٔ دشمني نشته دے یو انسان دے چې د
خراب نه خراب کور کښې وسېږي او تهٔ ئې ترې نه په زور وباسې، په
هغه کور پسې به ضرور هغه خفه وي.

په دې ملک کښې په لکهونو مهاجر کوم چې بې کوره شوي او
کړې په سر پاکستان ته راتلل په لارو کښې بې تعداده ووژلي شول.
زمونږ د هغوي سره همدردي ده خو چې د کومو خلقو د لاسه قتل شول
او کومو خلقو چې د دوي په سر تجارت درلود د خپل ځان د پاره د یو
مارکیټ جوړولو د پاره ئې په لکونو خلق بې کوره او بې ځایه قتل
کړل. د پاکستان د جوړېدو نه پس په دې فکر کښې وو چې پاکستان به
پاتې شي او کهٔ پاتې به نهٔ شي؟ د دې ملک د وسېدونکي په حېث دا
خبره ذهن ته راغې چې پاکستان به ښهٔ شي او کهٔ ښهٔ به نهٔ شي او په څهٔ
به ښهٔ کېږي، آیا دا به د نورو ملکونو په شان ترقي وکړي او کهٔ نه؟ آیا
د ترقۍ په لاره ګامزن دے او کهٔ نه؟ او د دې وجوهات څهٔ دي؟ هر

پاکستاني له پکار دي چې د ځانه دا سوال وکړي.

مونږه چې د دې کتاب په لیکلو وئیلو باندې دومره وخت ضائع کوو د دې هم فقط دغه مقصد دے خو زما په خیال چې یو مریض تر ډاکټره لاړ شي اول ئې ډاکټر معائنه کوي یعني چې د دهٔ څهٔ مرض دے، چې د مرض صحیح پته ئې ولګي نو د هغه مرض علاج اسان شي، بیا د دغه مرض علاج هر ډاکټر کولے شي. تر اوسه پورې مونږه ته د دې مرض علاج یو ډاکټر په ګوته نهٔ کړو، زمونږه تاریخ دانو هم د دروغو نه کار اخستے دے، نهٔ پوهېږم چې د دغه مشرانو په غلطو فیصلو ئې پرده ولې اچولې ده؟ آیا دغه خلق زمونږ د دشمنانو ملګري دي، د خپلې صوبې په حواله چې زمونږه څومره تاریخي شخصیات دي، چې انګرېزانو به ورته غداران وئیل، هغه د پاکستان په کتابونو کښې تراوسه پورې غداران دي. د مثال په توګه حاجي صاحب ترنګزئي، ملا پاوند، فقیر ایپي، عجب خان افریدے، ایمل خان وغېره. تر دې حده پورې چې باچاخان او غني خان د دې خبرې تصدیق کوي چې زمونږه ملک لاازاد شوے نهٔ دے، ملکونه چې ازاد شي او د کومو خلقو نه ازاد شي، د هغوي ملګرو له خلق سزا ورکوي، په دار ئې خېژوي، په کورونو ورله اور لګوي. زمونږه په ملک کښې چې انګرېزانو چاله خانۍ او نوابۍ ورکړې دي، د هغوي بچي تر اوسه پورې په مونږه حکومتونه کوي او په اهمو کرسو تعینات دي ځکه زهٔ دا وایم چې د دې مرض تحقیق پکار دے چې آیا دا مرض څهٔ دے، زما نه وړاندې هم ډېر خلق په دې مرض پوهه وو او اوس هم داسې ډېر خلق شته چې زما نه پرې ښهٔ پوهه دي او زما سره په دې تحقیقاتو کښې امداد هم کوي خو د ویرې نه رښتیا نهٔ شي وئیلے. ما ته په دې باندې د دوي خاموش پاتې کېدل هم لویه ګناه ښکاري. په دې مزید چپ پاتې کېدل

ارشدخان

د قوم او ملک سره دوکه ده. یوه ورځ مې یو جج ملګري ته وئیل د هغې فلاني فېصله دې غلطه کړې ده، د خر په ځاے دې کولال داغلے دے، دا خو زما د کلي مسئله ده دواړه فریقه زۀ ډېر ښۀ پېژنم، جج وئیل کۀ زما په ځاے په دې کرسۍ تۀ چرې ناست وے تا به هم داسې فېصله کړې وه، ځکه چې ستا د قول په حواله په دې سړي دعوه د دروغو شوې ده، بیا دوه کسان چې د موقعې ګواهان دي هغوي ګواهي کړې ده، هغوي هم دروغژن شول، بیا اووۀ کسانو چې کوم شهادت کړے وۀ چې دوي عېن په موقعه موجود وو، مونږه لیدلي دي او دا دوه ګواهان ورسره ولاړ وو نو دغه هم دروغژن شول یعني د مړي فریقېنو دا دعوه د دروغو کړې ده. هر کله چې دعوه هم د دروغو شي، شهادتونه هم د دروغو شي، ضروري ده چې زما قیصه به د دروغو وي. ثابته شوه چې په پاکستان کښې تاریخ د دروغو ښودلے شي یعني رښتیا تاریخ نۀ ښائي. په زرګونو مدحه خوانان په دغې شهادت کوي او د ګواهانو نامې د دروغو اخلي. کۀ زمونږه موجوده نسل په تعلیمي ادارو کښې دغه د دروغو تاریخ ګوري سبا به دوي څۀ رنګ رښتیا فېصلې وکړي. دا ډېره ضروري ده چې مونږه دې د خپل تاریخ د هرې واقعې صحیح تحقیقات وکړو او د رښتیاؤ نه رښتیا خپل راتلونکي نسل ته پرېږدو، کم از کم د دې جوګه خو به شي چې صحیح فېصله به وکړي یعني دا خو به نۀ وائي چې مونږه ته صحیح فېصله او تاریخ مخکښې مشرانو تر مخه کړے نۀ دے.

په مشرقي پاکستان کښې خاورې نیولو والا جرنېل سره د یو لکھ فوجي ملګرو وسله وغورزوله او د هندوستان په جېل کښې بندیان شو. یحیٰ خان ته فوجي جرنېلانو مشوره ورکړه چې مزید په نور جنګ کولو کښې خرابېږو، د دې نه به ښه دا وي چې اقتدار بتهو ته

حواله کړو. دغه شان د پاکستان په تاریخ کښې په اول ځل یو سول چیف مارشل ایډمنسټر مقرر شو او هغه مسئلې چې فوجي جرنېلانو نۀ شوې حل کولې هغه سیاستدانانو حل کړې یعني شمله معاهده وشوه، یو لاکھ فوج واپس راغے او د هندوستان سره پاتې مسئلې سره د کشمیر د خبرو اترو کولو په ذریعه د حل کولو وعدې وشوې. په دغه دوران کښې بنګله دېش هم جوړ شو، څۀ وخت پس پاکستان هم په رسمي توګه ومنلو. بټهو وئیل زۀ نوے پاکستان جوړوم، دې ملک ته ئې یو متفقه آئین ورکړو چې د پاکستان د ټولو پارټو د مشرانو یعني د بلوچو او د پښتنو دستخطونه پرې هم موجود دي. قوم پرستو لیډرانو په آئین کښې راوستل چې لس کاله پس به صوبائي خودمختاري ته لاره جوړوي. دا هم په آئین کښې راغلل کۀ بیا د پاره یو فوجي جرنېل د فوج په ذریعه په اقتدار قابض کېدلو نو هغۀ له به د پانسۍ سزا ورکولے شي. دا بېله خبره ده چې قوم له داسې متفقه آئین چا ورکړو هغه یو فوجي جرنېل پانسي کړو.

د بټهو صاحب سره زما په مختلفو ځایونو کښې ملاقاتونه شوي وو چې په ۶۷، ۶۸ کښې د ایوب خان د کابینې نه ووتو، په پنډۍ کښې په انټرکانټیننټل هوټل کښې ډېره وۀ. د مختلفو کالجونو د یونینونو صدرانو پسې، سېکټرانو پسې ئې دعوت نامې ولېږلې چې نن شپه خوراک څښاک به ستاسو زما سره وي. زمونږه د کالج صدر جهانګیر مغل ماته تر غوږ کړل چې بټهو صاحب له اردو ژبه سمه نۀ ورځي او مونږه ته انګرېزي ژبه سمه نۀ راځي، تاته په انګرېزۍ ژبه کښې ښۀ عبور حاصل دے، زمونږه سره د ترجمان په حېث لاړ شه.

چې څۀ وخت ورغلو هغه وخت بټهو د تاشقند د معاهدې په نامه باندې خبرې راخستې وې، زۀ او زما ملګري موجود وو او د بټهو

په ملګرو کښې ممتاز بټهو، مصطفی کهر او حیات محمدخان شېرپاؤ موجود وو، ما د بټهو سره د خپلو ملګرو تعارف وکړو، بټهو صاحب راته ووې تاخو زما سره خپل تعارف ونۀ کړلو، زما ملګرو ورته زما په ځائے ووئیل چې دې په ګارډن کالج کښې د پښتنو د یونین جرنل سېکرټري دے. بټهو صاحب ووئیل زما دا شوق وۀ چې کالجونو ته درشم چې ستاسو خبرې واورم او زۀ درته هم د خپل زړۀ حال ووایم خو په ما پابندي ده ځکه مجبور شوم چې تاسو دلته کښې راوغواړم. ما خو پیپل پارټي جوړه کړې ده او غواړم چې په سټوډنټانو کښې هم د دې یو تنظیم وي. تاسو ته په پیپل سټوډنټس فېډرېشن کښې د شاملېدو دعوت درکوم.

سټوډنټانو ورته ووئیل زمونږه خو نور ډېر ملګري دي، د هغوي سره به په دې باره کښې صلاح مشوره کوو کۀ راضي شول د هغې نه پس به تاسو له دعوت درکړو. بټهو صاحب ووئیل کۀ تاسو چرې دعوت راکړئ زۀ بیا هم درتلے نۀ شم. البته ښه به دا وي چې تاسو او ستاسو ملګري زما په حواله څۀ تپوسونه کول غواړي نو هغه په کاغذ باندې لیکلي راولېږئ، زما کمره په دې هوټل کښې په وړومبي چهت کښې بهر اړخ ته ده، زۀ به اول د وړومبي چهت د کمرې نه ووځم او ستاسو د سوالونو جوابونه به تاسو ته په شریکه درکړم.

واپس چې سټوډنټان تر کالجه راغلل خپلو کښې ئې صلاح مشوره وکړه چې سبا له به دغه ځائے ته ورځو ځکه چې بټهو صاحب مونږ ته د خپلو سوالونو جوابونه راکوي. په سباله چې ورغلل هلکانو ترې نه د تاشقند په باره کښې او ایوب خان سره د اختلاف په باره کښې تپوسونه وکړل. ځنې هلکانو ترې نه د ذاتي سوالونو جوابونه وغوښتل او ما ورته د هغې ترجمه کوله. د پولي ټیکنیک د یونین

صدر پرویز رشید څنې نورو هلکانو ورسره په هغه وخت په پیپل پارټۍ کښې اعلان وکړو بیا ئې زما طرف ته مخ راستون کړلو ماته ئې ووئیل ته په پیپل سټوډنټس فیډریشن کښې د شاملېدو اعلان ولې نۀ کوے؟ ما جواب ورکړو چې زما سیاست سره شوق نشته، زۀ لا تعلیم کوم هرکله چې ایم اے وکړم، هغۀ وئیل چې د تعلیم نه خو منع نشته دے، ورسره سیاست هم کوه او خپل تنظیم هم چلوه. ما ورته دوباره ووئیل په سیاست کښې مې باچاخان ډېر خوښ دے چې تعلیم پوره کړم او تر خپل کلي لاړ شم، د هغې نه پس به د سیاست زدکړه کوم. هغۀ ووئیل د کوم ځاے وسېدونکے یې؟ ما ووئیل د چارسدې وسېدونکے یم، هغۀ حیات خان ته وکتل ورته ئې ووئیل دا خو ستا کلي والا دے.

حیات خان: په چارسده کښې د کوم ځاے یې؟

ما ووئیل: د پړانګو یم، هغۀ ووئیل د پړانګو وصال خان پېژنې؟ ما ووئیل هغه زما مشر ورور دے، هغه پاڅېدلو راترغاړه وتو وئیل ئې، وصال خان، سکندرخان، محمداعظم خان مونږه په یو ځاے کښې سبق وئیلے دے.

حیات خان: باچا خان دې ولې دومره خوښ دے؟

ما وئیل د پښتون قام د پرمختګ خبرې کوي. بټهو صاحب په دغه دوران کښې د بل چا سره په خبرو اترو وۀ خو زمونږه خبرو ته ئې هم خیال وۀ یو دم ئې ووئیل زۀ خو هم سندهے یم، زما هم خپل قوم خوښ دے ما ډېر څۀ د باچاخان په باره کښې د خلقو نه اورېدلي دي، هم هغې اورېدلو ته مې خیال دے چې عملي جامه ورواغوندم او په څۀ مې عمل هم کړے دے. د مثال په توګه په ۱۹۴۰ء کښې پښتون رساله چاپ کېده په هغې کښې لیکلي وو چې مونږه د کانګرس سره ملګري یو خو ځان ته خدائي خدمتګار وایو. هر کله چې په دې نامه پابندي

راوسته مونږ وئیل هغې عائد شوه او مونږه خپله پارټي په وجود کښې راوسته مونږ وئیل هغې ته خلق نامه ږدو. خلق په پښتو ژبه کښې څهٔ ته وائي؟ ما جواب له به خلق نامه ږدو. خلق په پښتو ژبه کښې څهٔ ته وائي؟ ما جواب ورکړلو عوامو ته، په انګرېزۍ ژبه کښې ورته څهٔ وائي؟ ما ووئیل "پیپل" بټهو صاحب ووئیل ځکه ما د خپلې پارټۍ پیپل نامه کښېښوده.

بټهو: تاته داپته شته چې د پښتونستان د جنډې رنګ څنګه دے؟ ما وئیل نه.

بټهو: د پښتونستان د جنډې درې رنګونه دي، سور، تور او شین. د دغې رنګونو نه ما خپلې پارټۍ له جنډه جوړه کړه. د باچاخان د پارټۍ د جنډې رنګ سور دے او د کانګرس د پارټۍ د جنډې رنګ هم سور دے. باچاخان د ګاندهي نقل کوي او د هندوستان پروګرامونه سرته رسول غواړي. کۀ هغه د پښتنو په مسئلو حل کولو کښې مخلص وۀ، نو د پښتونستان د رنګ جنډه ئې ولې نۀ لګوله؟ البته زۀ سندهي نېشنلسټ یم. هرکله چې زۀ تر اقتداره راغلم نو دا به درته ثابت کړم چې سندهیانوته به ټول خپل حقونه تر لاسه کوم. باچاخان د یوې صوبې د اقتدار خواهشمند دے او زۀ د ټول پاکستان کرسۍ ته ځان رسول غواړم او د پاکستان کرسۍ د پنجابي فوج او بېوروکرېسي تر لاسه ده او عوام ئې د هندوستاني خلقو نه نفرت او په کشمیر باندې د جنګ کولو خواهشمند دي. هرکله چې زۀ د پاکستان تر کرسۍ ورسم نو د سندهـ سره به زۀ نور څۀ ښۀ وکړم.

ماته د هغۀ دا خبرې یادې دي په ۱۹۷۳ء کښې چې آئین جوړ شو او د سندهـ صوبائي اسمبلۍ اعلان وکړو چې په سندهـ کښې به سرکاري ژبه سندهي وي په سندهۍ ژبه کښې رسالې او اخبارونه بې تپوسه چاپ کېدل او زمونږه په صوبه کښې د باچاخان د پارټۍ وارثانو

اردو ژبه سرکاري وګرځوله. دغه شان بقول مرحوم سید الیاس باچه چې جي ایم سید په نیپ کبنې زمونږه د ډېر وخت ملګرے پاتې شوے وۀ، زما همځولتیا کبنې هم وۀ بلکې زما سره ئې ډېره ازادي وه. په ۱۹۷۲ء کبنې زمونږه حجرې ته راغے، دا خبره ئې زما تر غوږه کړه چې بټهو زۀ اسلام اباد ته راغوښتلے وم، په دې غرض چې تاله پکار دي چې تۀ د سندهو دېش اواز اوچت کړے او هم ئې بلېنک چک راکړلو. ما ترې نه انکار وکړلو، ما جواب ورکړلو چې زۀ به پرې لږه صلاح کوم. الیاس باچه وائي هغۀ ووئیل چې تر کراچۍ واپس تلے نۀ شم د دې صلاح د پاره تاله راغلم ځکه چې بټهو هم بې اعتباره غوندې دے زما پرې ډېر باور نشته دے. ما ورته ووې داسې مطالبې ورته تر مخې کړه چې تاته څۀ څۀ ښکاري د دې سره سره ورته ووایه چې تر سندهـ ئې راواستوه کۀ تر سندهـ ئې راستولے بیا خو بټهو باوري دے، رښتیا به وائي او کۀ سندهـ ته ئې رانۀ وستے بیا خو دروغژن دے، بې اعتباره به وي. الیاس باچه وائي تر اسلام اباد پورې ورسره زۀ هم لاړم، چې دې بټهو ته مخامخ شو د پنځوسو ټیوټا جیپانو او د پنځوسو لاکهو روپو مطالبه ئې ورته وړاندې کړه. بټهو ورته واضحه کړه چې تۀ تر کراچۍ څۀ رنګ رسې، ستا په ځاے کبنې به پنځوس جیپان ولاړ وي او د پنځوسو لاکهو روپو دا بلېنک چِک هم واخله او کۀ د دې نه علاوه نور رقم ته ضرورت وي هغه رقم هم په دې کبنې ولیکه او خپله ئې د بېنک نه وصول کړه.

بټهو صاحب چې کومې خبرې زما سره په پنډۍ کبنې په هوټل کبنې کړې وې چې زۀ تر کرسۍ ورسم نو زۀ سندهے یم، زۀ به سندهیانو ته خپل حق ورکوم، رښتیا ئې وئیلي وو د هغې خبرو سرته د رسولو کوشش ئې کړے دے.

# د بټهو صاحب سره دویم ملاقات

په ۱۹۷۱ء کښې ما د پنډۍ د ګارډن کالج نه بي اے وکړه. تر لاهوره پورې لاړم، په یونیورسټۍ کښې مې په فلسفه ډیپارټمنټ کښې داخله واخسته. زما خپله هم دا شوق وۀ چې زۀ دې په نفسیاتو کښې داخله واخلم. زما د ګارډن کالج نه تلے ملګرے خاص کر راجه انور ماته واضحه کړه چې ما په خپله هم په فلسفه ډیپارټمنټ کښې داخله اخستې ده. تاله هم پکار دي چې په فلسفه ډیپارټمنټ کښې داخله واخلې، ځکه چې د ټولې دنیا د سیاستونو نه به هم خبر شو او کۀ بیا سیاسي مېدان ته وځو نو د دغې فلسفې پوهه به مونږ له فائده راکوي. په هغه وخت کښې په سټوډنټانو کښې د اسلامي جمعیت طلبه چې د جومات اسلامي د طالبانو یوه ډله وه یو فعال تنظیم وۀ او د پنجاب په یونیورسټۍ کښې ئې ټول عمر الېکشن ګټلے وۀ. دغه شان چې د ټولو ډیپارټمنټونو الېکشن به کېدۀ نو په اکثریت سره به الېکشن هم دوي ګټلو. زمونږه اکثریتي ملګري ازاد خیاله وو او سوشلسټ نظریې سره تړلي وو او نېشنل فېډرېشن سره ئې تعلق درلود. دا فېډرېشن هم نوے نوے جوړ شوے وۀ. د مصطفٰی کهر او د پیپل پارټۍ د نورو مشرانو د امدادونو باوجود د اهمیت جوګه نۀ وۀ. په دغه وختونو کښې مونږه هم د وړو وړو تنظیمونو نه خلق راغونډ کړل او وائي پي اېف پیپل فرنټ مونږه جوړ کړلو.

عزیزالحق اټامک انرجي کمېشن کښې نوکر وۀ چې په کنېډا کښې ئې په فزکس کښې پي اېچ ډي ډائرېکټرېټ کړے وۀ. دې به هلته کښې د دوو ورځو د پاره راتللو او مونږ له ئې درس و تدریس راکولو او د سوالونو جوابونه به ئې راکول. دغه شان د مزدورانو تنظیمونو ته ئې

هم درس و تدریس ورکولو او د کسانانو تنظیمونه ئې هم جوړ کړل. د دوي د دغې تعلق ترمخه د هغې مزدورانو ورونه عزیزان چا چې زمونږه سره په یونیورسټۍ کښې تعلیم کولو هغه هم په وائي پي ایف کښې داخلو جینکو سره تعلق جوړ کړلو. دغه شان په یوڅو میاشتو کښې وائي پي ایف د جمیعت طلبه د مقابلې جوګه شو. د یونیورسټۍ د الیکشن نه مخکښې به د مختلفو ډیپارټمنټونو الیکشن کېدلو. په دغه ډیپارټمنټونو کښې ۶۰ فیصده الیکشن مونږه وګټلو.

جاوېد هاشمي چې د جمیعت طلبه کنډیډېټ وۀ په فلسفه ډیپارټمنټ کښې زمونږه سره یو ځاے پاتې شوے هم وۀ د فلسفې ډیپارټمنټ الیکشن ترې نه زمونږه یوې ملګرې امتیاز بانو وګټۀ. یو خوا ته جمیعت طلبه دا خطره محسوسه کړه چې وائي پي ایف مخ په وړاندې روان دے بل خوا ته پیپل فیډرېشن وئیل زمونږه حکومت دے دوي دې زمونږه سره شامل شي او زمونږه د ملګرو دا خواهش وۀ چې مونږه دې یواځې او ازاد پاتې شو ځکه چې په دغه دوران کښې د یونیورسټۍ الیکشن شورو شوے وۀ او زۀ ئې د وائي پي ایف د لوري د ټول کمپشن مشر ارګنائزر وټاکلم. په دغه الیکشن کښې د جمیعت طلبه سره څو وارې زمونږه جنګونه هم وشول چې نوبت ئې تر ګولو چلېدو پورې هم تلے وۀ.

بل خوا ته د پیپل پارټۍ دا مدعا وه چې زمونږه دا ملګري د ځان سره ملګري کړئ نو مونږه به تاسو سره هر قسمه امداد کوو ځکه چې مونږه به د دغې دواړو طرفو مخالفت کوۀ. بیا زمونږه جلوسونه ډېر زیات لوے شول ځکه چې بې تعداده ښځې هم زمونږه سره ملګرې شولې. سرې جامې به ئې اغوستې وې او سرې لوپټې به ئې د سرونو نه تاؤ کړې وې او نعرې ئې وهلې، تقریرونه ئې هم کول. زمونږه دا مید

پیدا شو چې دا الیکشن به ضرور ګټو په دغه دوران کښې به مونږه هره ورځ نوے نوے یو پمفلټ ویستو او د شپې به مونږه د دغې کالج د هلکانو بېلې بېلې کمرې ته رسولو. د الیکشن نه دوه ورځې مخکښې چې ما دغه پمفلټ د هلکانو تر کمرو رسولو هم په دغه دولس نیمې بجې پولیس ګرفتار کړم او سمدستي ئې تر مصطفٰی کهر بوتلم. په یوه ځان له کمره کښې ناست وم، په دې کښې کهر راغے او په ډېره سخته لهجه کښې ئې ووئیل: ته ولې نۀ سمېږې؟ ما جواب ورکړلو زۀ خو سم یم، اخر دا چې زما د کمرې نه بهر ووتو د هغې نه نیمه ګېنټه پس بټهو صاحب واپس راغلو. بټهو زما سره په ډېر روڼ تندي سترې مشي وکړل. دا ئې ووئیل ته هغه زلمے نۀ یې چې په هوټل کښې زما سره ملاو شوے وے او د باچاخان په حواله دې زما سره خبرې اترې کړې وې؟ ما وئیل هم هغه یم. هغۀ وئیل بیا خو دې ماته دروغ وئیلي وو. ما وئیل څۀ دروغ؟ هغۀ وئیل دا چې زما د سیاست سره شوق نشته بل دا چې زۀ لا تعلیم کوم چې تعلیم پوره کړم کلي ته به ځم هلته به د باچا خان سیاست کوم. اوس د پنجاب یونیورسټۍ ته راغلے یې خپله پارټي دې جوړه کړه، دا راته ووایه چې ولې دا سیاست نۀ دے او دلته په پنجاب کښې باچاخان څۀ کوي او په پنجاب کښې ئې څۀ کار دے؟ ما وئیل لاهور خو د پاکستان زړۀ دے، ما په فلسفه کښې اېډمشن د زدکړې د پاره اخستے دے او پارټي جوړول د هغې سیاست یوه حصه ده. بټهو صاحب واضحه کړه چې زمونږ سره څۀ امداد کولے شې؟ ما وئیل اوس خو الیکشن ته دوه ورځې پاتې دي اوس خو هیڅ نۀ کېږي بله دا چې زما نور ډېر ملګري دي د هغوي سره به صلاح مشوره هم کول غواړي. کۀ د الیکشن کولو نه پس دے دا خیال وۀ او په دې باره کښې خبرې اترې کول غواړې ما سره د خپلو ملګرو راوغواړه په دې باره کښې به

خبرې اترې وکړو خو په دې طريقه نا لکه دا تا چې نن زۀ په څۀ طريقه راغوښتلے يم.

کهر په دې دوران کښې وئيل ستا څۀ مسئلې دي چې مونږه درته هغه حل کړو؟ ووايه کۀ نور هم څۀ غواړې؟ زما د جواب ورکولو نه مخکښې ورته بټهو ووئيل دا رنګ خلق نۀ خرڅېږي او نۀ د چا نه ويرېږي. ماته ئې ووئيل چې هرکله ستا خواهش پېدا شو نېغ په نېغه ماله راځه ځکه چې زما هم ستا په شان خلق خوښ دي چې نۀ د چا نه ويرېږي او نۀ د چا نه شرمېږي او هر چا ته مخامخ خبره کوي او کهر ته ئې مخ ستون کړلو وې وئيل دې چې چا دلته کښې راوستلے دے هغوي ته ئې حواله کړه چې تر خپل ځايه ئې ورسوي.

## د بټهو صاحب سره دريم ملاقات:

په ۱۹۷۲ء کښې مونږه درې ملګري وو او درې واړو دا صلاح وکړه چې پنډۍ کښې څۀ کاروبار شورو کوو. خو د هغې کاروبار د پاره به د ځاے ضرورت وي. مونږه درې واړه ملګري لونډان وو چې چاته به معلومه شوه چې لونډان دي، ښځې بچې ورسره نشته نو په کرايه راله چا ځاے او کور هم نۀ راکولو. په دغه دوران کښې څلورم ملګرے هم زمونږه سره شريک شولو چې هغه د چرګانو ډاکټر هم وۀ. هغۀ وئيل د پنډۍ او اسلام اباد ترمېنځه فوجيانو د چرګانو فارمونه جوړ کړي دي، ښۀ مزېدار کورونه په کښې هم شته دے. د اوبو د پاره ټيوب ويلونه په کښې هم شته او ورسره لس لس جريبه زمکه هم شته دے، چې په يو جريب کښې کور او د چرګانو فارم دے او اتۀ نهۀ جريبه زمکه خالي پرته ده او د يو يو ځاے درې زره روپۍ کرايه ده. کۀ ستاسو چرې خوښه وي دا کرائې به شريکه ورکوو او هم به د چرګانو کاروبار په

ساتنه چې یوه میاشت اټه انې د ے قیمت کېږي چرګوټي یو د کوو. سره کبنې فارم دغه په وي. شوے جوړ چرګ غټ نه ترې بیا وشي ئې پالنه او
د ے. شته ګنجائش پالنې او ساتنې د چرګانو زرو پنځوسو د کبنې
زره شل مو شریکه په شو راغونډ ملګري واړه څلور مونږ
د چې شولو پیدا هم شوق دا زمونږ ورسره ورسره واخستل، چرګوټي
ابادي کچه کبنې خوا سره فارمونو دغه د کړو. شورو هم کار کرکیلې
دولس په ئې زامنو چې وۀ دېره کبنې په بوډا یو صوابۍ د چې وه،
زمیدارۍ په کۀ ووې ورته ما ورغلم له بوډا هغه زۀ کوو. کاروبار خرونو
به کبنې دې په ده. پرته خالي زمکه جریبه اټۀ سره زمونږه پوهېږې چرې
خپله په پټي دا به مونږه ښایه طریقه صرف راته تۀ او وکړو خبرې
سړے ښۀ ډېر د بوډا هغه کوو. ساتنه ئې به هم او کړُو ئې به هم او جوړوو
زیات نه حد د خو وو افیمیان دواړه خاوند او ښځه نه بدقسمتۍ د وۀ،
ښۀ کاروبار ټول په زمیدارۍ د ئې وئیل راغے سره زما خوړل. ئې افیم
زما او یم سره تاسو به زۀ کوم، ګوته په درته به کار کرکیلې د پوهېږم
لاسونه زما دي، خوشحاله ښۀ کوي مزدوري خپله خرونو خپلو په زامن
د یم نۀ دې کبنې خور اوبۀ په خو شم کولے درله کار هر دي سم پښې او
ده. ستاسو واري ذمه خور اوبۀ

نۀ مونږه وو، ولاړ کبنې په بوټي ځنګلي وکتل سره مو پټي
وئیل مونږه دي. بوټي ښۀ ډېر او دي بوټي بنګو د دا وئیل بوډا پېژندل.
ورکړے، جوش اور په کبنې اوبو په چې له دې ده؟ څۀ فائده دي د
نه ګرمۍ د کوه، نوش ماښام او سحر شربت هغه کړه جوړ نه ترې شربت
مونږه په او کړو جوړ شرنت نه بنګو د ئې ورځ یوه چې دا اخر یې. بچ به
کړو. نوش ئې ملګرو واړو څلور

هر کله چې مونږه په ټریکټر باندې دغه زمکه سموله، بوډا
ووئیل دا پولې به لویې لویې پرېږدو چې د بنګو دا بوټي بچ پاتې شي
او په نوره زمکه چې ستاسو څۀ خوښ وي هغه به پرې وکړو. غرض دا
چې پټي کرلو ته جوړ شو. اوس د بوډا بابا سره صلاح مشوره کوو چې
داسې د کرلو شے راته وښايه چې فائده ئې زياته وي. بوډا وئيل افيم
ډېره ګټه کوي پکار دي چې افيم پرې وکرو او د نورو سبزو د کرلو
وخت هم نۀ دے. اخر دا چې د پنډۍ او اسلام تر مېنځه په اتۀ جريبه
زمکه باندې د چرګانو فارم سره مونږه افيم وکرل. زمونږ دغه ځاے د
لونډانو په ډېره مشهور شو. څۀ رنګ چې زۀ د ستار او رباب وهلو
شوقي وم دغه شان زما پنجابيانو ملګرو له د پنجاب شاعران ملنګان
راتلل، ډول سُرنا به هم ورسره وو، يوه شپه به د وارث شاه بهلے شاه
کلامونه د ستار او رباب سره وئيلے کېدل او په بله شپه به د خوشحال
بابا او رحمان بابا کلامونه د ستار او رباب سره وئيلے کېدل.

د سندهـ، پنجاب او سرحد درې ملنګان داسې وو چې هغوي
زمونږ سره ډېره شول، چرس خو به هر وخت څښلے شول او ډېر به هم
وو، د پښتنو ټرکونو والا چې به په پنډۍ اسلام کښې شپه راغله نو
مونږ له به ډېرې ته راتلل، زمونږ په ځاے کښې نۀ کټونه وو او نۀ
کرسۍ وې البته کمرې به مونږه ښۀ صفا سوترا ساتلې وې او ښۀ ډېر
بالښتونه مونږ اخستي وو او چې هر يو کس به راتلو نو د ځان سره به
ئې په خپله خوښه سبزي او غوښه راوړل او چرګان زمونږ سره ښۀ ډېر
وو، زمونږ محفل به اکثر د شپې يوولس بجې شورو کېدلو او د سحر
تر بانګ پورې به روان وۀ. دغه شان زمونږ پروګرام د شپې شورو دے
څۀ ګورو چې د پوليس درې ګاډي راغلل او مونږ څوارلس کسان ئې
ګاډي ته وخېژولو چې د چا په پښو څپلۍ وې او څوک پښې ابلې پښې

وو. مونږه وئیل چې تر جېله به مونږه بوځي، چې دا ګاډي د ټولو جېلونو نه ورتېر شول نو زمونږه یو ملګري ووئیل چې جېلونه خو پاتې شو، زمونږ د پاره ئې جوړې څۀ سپېشل جېل خوښ کړے دے، دا خبرې سره کوو چې په دې کښې په صدارتي محل ورننوتو. بټهو صاحب ویښ وۀ، د خوب په جامو کښې په چمن کښې ګرځېدۀ، په دې کښې اېس پي ورغے بټهو ته ئې ووئیل پټهانے خان مې درله راوستلو.

پټهانے خان زمونږ سره یو خوش اواز ملنګ وۀ په میاشتو میاشتو به زمونږ سره دېره وۀ. هرکله چې بټهوته مخامخ شولو نو بټهو د هغۀ دواړه لاسونه ښکل کړل، په سندهي ژبه کښې ورته لګیاوۀ، ما خو په تاپسې ټول پاکستان وکتلوسندهـ او پنجاب یعني په ټولو تاڼو کښې مې ستا په حواله خبره کړې ده چې پټهانے خان زما د پاره راپېدا کړئ او تاته مې هم وئیلي دي چې پنډۍ او اسلام اباد ته راځې نو ماله راځه.

پټهانے خان ووئیل زۀ ملنګ سړے یم، د ملنګانو په محفلونو کښې خوشحاله یم او تۀ خو زمونږ بادشاه یې وایه ستا څۀ حکم دے؟

بټهو صیب تاو راتاو شو پټهانے خان ته ئې وئیل دا خو دې ماته کنځل وکړل، خبر دے چې تۀ کوم ځاے ته راځې ماته اطلاع راکوه هلته کښې به زۀ درځم.

پټهانے خان ووئیل: زۀ چې چاسره وم هغه ستا پولیس والا نن په زور راوستلي دي او دلته کښې ولاړ دي. بټهو صاحب هغه د لاسه ونیولو او دواړه تر زمونږه راغلل، بټهو صاحب زمونږ د ټولو ملګرو نه معافي وغوښتله، وئیل ئې زۀ پټهانے خان پسې ګرځېدم، خو پولیس تاسو په غلطۍ کښې راوستلي یئ. اوس زۀ پټهانے خان اورم کۀ تاسو په خوشحالۍ پاتې کېږئ نو ټول به ئې په شریکه واورو او کۀ تر خپل

ځایه مو زړهٔ کېږي نو پولیس والا به تاسو تر خپل ځایه ورسوي. په دې کېنې زهٔ ورمخامخ شوم، پټهانړے خان مونړ په خپل ځا ے کېنې اوږېدلو خو ستا پولیس زمونړ ټول پروګرام خراب تراب کړو. بټهو صاحب چې ماته وکتل وې زما خو دا سوېم ځل دے چې تاسره کتل کېږي، تهٔ خو عجیبه سړے یې او په عجیبه عجیبه ځایونو کېنې زما او ستا ملاقاتونه کېږي. زهٔ ئې د لاسه ونیولم او په بل لاس ئې پټهانړے ونیولو وئیل ئې راځئ پټهانړے خان به نن په شریکه اورو او زمونړ تولو ملګرو ته ئې واضحه کړه چې دلته کېنې هر قسم نشه موجوده ده، د چا چې څهٔ قسم نشه لګي هغه به ورته ملاوېږي ځکه چې نن په ښهٔ موډ کېنې پټهانړے خان واورو.

پټهانړے خان کېښناستو، بټهو ته ئې ووئیل بغېر د چرسو څښنو نه خو زهٔ وېنا کولے نهٔ شم، هغهٔ پولیس والا ته غږ کړو اېس پي په یوه منډه راغے اول ورته بټهو کنځل وکړل بیا ئې ورته ووئیل چې زما غوندې سړے په ټول پاکستان کېنې پټهانړے خان پسې ګرځي او منتونه ورته کوي چې ترما راشه او بیا هم نهٔ راځي او د دغه خلقو سره پاتې کېږي نو دغه به هم څهٔ خلق وي. د دوي نه زر تر زره معافي وغواړه او بیا لاړ شه د پټهانړے خان د پاره چرس راپېدا کړه.

پټهانړے خان ووئیل د دوي چرس به زما کار ونهٔ کړي زمونړ په هغې فارم کېنې یو ټرک والا نوي چرس راوړي دي، زما د پاره دې د هغې ټرک والا نه چرس راوړي. پولیس والا سره زمونړ د درې څلورو ملګرو تر هغې فارم لاړل، هغه چرس ئې راوړل په دغه دوران کېنې مونړ ته د خبرو کولو موقعه هم تر لاسه راغله، خو د بټهو صاحب ذهن ته حېران وم زما ټولې خبرې ئې یادې وې. په ډېر طنزیه انداز کېنې راته وائي دا جوړ ستا د نوې قسم زدکړې کلاس دے یعني په دې

کلاس کښې دې هم داخله اخستې ده. ما جواب ورکړو په دې کلاس کښې خو زما پوره شپږ میاشتې وشوې، دا راته ووایه تاسو څومره جوماتونه په دې کلاس کښې پاس کړي دي؟ ډېر وخت ئې په خړت خړت خندل هغه ناست خلق ورته هم متوجهٔ شول او ښهٔ په ډوبه نشه کښې هم وهٔ. یوه لطیفه ئې بیان کړه چې ما په انګلینډ کښې تعلیم کولو هلته کښې زما سره یو هندو ملګرے وهٔ هغهٔ به په یو مضمون کښې پوره کورس وکړلو او د هغې نه پس به پاس شولو دوباره به ئې په بل مضمون کښې داخله واخسته. لس شل کاله ئې په هغې کلاس کښې تېر کړل. یوه ورځ ترې نه ما پوښتنه وکړه چې دلته کښې ستا د ټول عمر د سبق وئیلو اراده ده؟ هغهٔ جواب راکړو علم دریاب دے چې څومره ډېرې غوپې په کښې وهې، هومره خوند کوي. تا هم په هغې نمونه دا خبره وکړه چې زما خو په دې کلاس کښې شپږ میاشتې وشوې خو تا په کښې څومره غوپې وهلې دي؟ خو د شاعرۍ او موسیقۍ علم یو داسې دریاب دے چې یو عاشق سړے په دې پوهېږي او لږه ډېره نشه ورسره هم وکړي نو د موسیقۍ هر اواز او د شاعر هر لفظ د سړي په زړهٔ داسې لګي لکه چې دا هغه لګیا وي. د ژوند په هره لحظه کښې د عشق د محبت په ازمېښتونو کښې ځان اچول پکار دي. د دغه درد محسوسولو د پاره پکار دي چې سړے لوبغاړے وي نه چې فقط تماشګیر وي. د ژوند نه خوند اخستو د پاره په عشق کښې ځان مبتلا کول پکار دي خو د دې غوپې څوک شمارلې نهٔ شي.

ماته ئې ووئیل تهٔ د پټهانے خان په ژبه پوهېږې؟ ځکه چې دې خو په سندهۍ او سرائیکۍ ژبه کښې وېنا کوي، ما ورته وئیل زما ملګري شته دے هغوي ماته د دې ژبو ترجمه کوي البته د پټهانے خان

په اواز کښې چې کوم سوز دے او هغه سوز له چې ئې کوم ملنګي طرزونه ورکړي دي هغه چې په هره ژبه کښې وېنا کوي نو خوند کوي.

پټهانړے خان چې څۀ وخت چرس وڅښل بټهو ته ئې ووئيل څۀ درته ووايم، هغۀ ورته ووئيل دا ووايه:

"میرا عشق بھی تو، میرا یار بھی تو"

د دغې نه ئې شورو وکړه، دغه شان د نورو کلامونو د وئيلو په مېنځ مېنځ کښې اواز ورکولو چې دغه بيا ووايه، چې د سحر اذان وشولو، پوليس ته ئې ووئيل دوي تر خپل ځايه ورسوه او پټهانړے خان به زما سره پاتې شي، پټهانړے خان ووئيل زۀ دلته کښې خفه يم زۀ د دوي سره ځم او اوس خو زما ځاے تاسو ته معلوم شولو، هرکله چې ستا ضرورت وي پوليس رالېږه زۀ به ورسره راځم.

## د بټهو صاحب دور حکومت او د هغۀ کارنامې:

د ۱۹۶۹ء متفقه آئين (شمله معاهده) د هغې په نتيجه کښې يو لکهه فوج د هندوستان نه راتلل او د هندوستان سره سره د کشمير ټولې مسئلې په خبرو اترو حل کول، اسلامي سربراه کانفرنس، اېټمي پلانټ، قاديانړے اقليت کښې ګرځول. کۀ د دغې آئين په حواله د دۀ دې ښو کارونو ته د يو پښتون په نظر وکتلے شي د مثال په توګه د ۱۹۷۳ء آئين کښې چې لس کاله پس به صوبائي خودمختاري ورکوو، د يو لکهه فوج په هندوستان کښې بندېز، دلته په پاکستان کښې د بېورو کرېسي خُلې چپ کړې وې، بټهو ته دا موقعه تر لاسه شوه چې ازاده خارجه پاليسي او د دې ملک د جوړولو په حق کښې د ترقۍ او د عوامو په خوښه فېصلې وکړي، اسلامي سربراه کانفرنس رابلل، روس، امريکې او چين ته جواب وۀ چې دا يو نوے پاکستان

جوړېږي او د ټولې دنیا مسلم امه یو کېږي او په خپلو پښو ودرېږي.
چونکې ټول اسلامي سربراهان بټهو صاحب راغونډ کړل، د دې سره
سره د هر لوري نه د بټهو د ختمېدو سازشونه هم شورو شول. په دې
کښې د بټهو خپلې غلطۍ هم شاملې دي. د مثال په توګه پښتانهٔ او
بلوچ دوه داسې قومونه دي چې په رضا درسره تر دوزخه پورې ځي خو
په زور درسره جنت ته هم نهٔ ځي. بټهو صاحب چې کومې فېصلې د
دوي د ښو د پاره کړې وې هغه ئې کله په زور منلې، په دغه دوران
کښې فوج هم واپس راغلے وهٔ او بېوروکرېسي هم خپل زاړهٔ کرتبونه
شورو کړل. بټهو ته ئې دا خبره هم ترمخه کړه چې هرکله کهٔ مونږ دوي
ته صوبائي خودمختاري ورکړو او د دغې صوبو مشران خودداره
فېصلې وکړي نو مرکز به کمزورے شي. تهٔ به فقط د دوو صوبو
وزیراعظم پاتې شې. د هغې نه پس ئې په یوه صوبه کښې د نېشنل
عوامي پارټۍ حکومت ختم کړلو او دوېمې صوبې احتجاجاً
استعفاګانې ورکړې.

د پاکستان د ماتولو او د پښتونستان د جوړولو په سازش
کښې ټول مشران ګرفتار شول. په فوجي عدالت کښې پرې کېسونه
شورو شول. بلوچستان ته ئې فوج ولېږلو او په دې صوبه کښې د بمونو
خلاصولو سلسله شورو شوه. په فوجي عدالت کښې یو مشر کرنېل
عدالتي کاروائي شورو کړه. د ملزمانو نه ئې لیکلي جوابونه
وغوښتل. د عطاء الله مېنګل د خُلې وېنا ده چې اول خو عدالت د
نېشنل عوامي پارټۍ د ولي خان مشري قبوله کړه.

ولي خان چې د نېشنل عوامي پارټۍ د لوري نه کوم بیان
لیکلے وهٔ په هغې کښې دا لیک وو چې نهٔ ما او نهٔ زما پلار د پښتنو د
ازادۍ خبره کړې ده او نهٔ دا پښتونستان الفاظ زمونږه دي.

پښتونستان خو په اول ځل د قیوم خان په کتاب "ګولډا پنډ ګن" کښې لیکلے شوے دے خو چې هرکله قیوم خان د کانګرس نه راووتلو او په مسلم لیګ کښې شامل شو او د دې صوبې وزیر اعلی شو، نو د وزیر اعلی په حېث اولنے سرکاري کار ئې دا وۀ چې خپل کتاب ئې بند کړو او د دوکانونو نه ئې خپل کتابونه اخستل او سېزل ئې او پښتونستان نامه ئې په مونږه راوتپله. زما پلار ټول عمر کانګرس سره د یو هندوستان خبره کړې وه او انګرېزانو چې کله په هندوستان کښې د صوبو د خودمختارۍ خبره کړې ده زما پلار او کانګرس د هغې مخالفت کړے دے.

په ۱۹۴۵ء او ۱۹۴۶ء کښې چې د کابل د حکومت او د انګرېزانو ترمېنځه چې خط او کتابت شوے وۀ، د افغانستان بادشاهانو د انګرېزانو نه مطالبه کړې وه کۀ چرې تاسو هندوستان له ازادي ورکوئ نو مونږ له په کښې خپله حصه واپس راکړئ، دغې خبرو انګرېزانو او کانګرس دواړو مخالفت کړے وۀ او ډېر په سختۍ ئې د کابل بادشاه ته ووئیل چې د دې خبرو نه ګرېز وکړه. عطاء الله مېنګل ووئیل چې مونږ ټولو بلوچیانو ولي خان ته ووئیل کۀ ستا دا خبرې د عدالت نه د خلاصولو د پاره وې بیا خو سمه ده، خو مونږ بلوچیان خو ځکه په نېشنل پارټۍ کښې شامل شوي یو چې مونږ د پاکستان نه بلوچ ازادول غواړو او ستاسو پښتانۀ ازادول غواړو نو ځکه زمونږ او ستاسو لارې یو دي.

ولي خان واضحه کړه، چې نۀ زما پلار د پښتنو د ازادولو خبره کړې ده او نۀ ما کړې ده، دا خبره ما د ځان د خلاصولو د پاره کړې نۀ ده دا حقیقت دے، مونږ په پاکستان کښې د صوبائي خودمختارۍ خبره کړې ده او بیا ئې هم کوو.

مېنګل ووئیل زمونږ د بلوچو ملګري په دې خبره خفه شول، وئیل ئې بیا خو زمونږ لارې جدا دي.

هرکله چې عدالت ته دا ثابته شوه چې بلوچو او ولي خان په جېل کښې خپلې لارې جدا کړې دي نو د بلوچو نه ئې جدا بیان وغوښتلو. زمونږه ټولو ملګرو سره فکر شولو چې بلوچ خو دروغ نهٔ وائي او دا وخت او حالات داسې دي چې رښتیا وېنا هم کولې نهٔ شي. مونږ د خپل لوري نه په دغه باره کښې د بلوچو یو سردار ور ولېږلو چې دې به د ټولو ملګرو د لوري نه جواب ورکړي. زمونږه دغه ملګري د عدالت نه سوال وکړلو چې مونږ تاسو د کومې ګناه تر مخه په جېل کښې اچولي یُو؟ د عدالت کرنېل واضحه کړه تاسو د پاکستان د نظریې مخالفت کړے دے. زمونږ هغې سردار ووئیل چې مونږ ته خو علم نشته دے چې د نظریه پاکستان مطلب څهٔ دے؟

کهٔ تاسو لږه مهرباني وکړه او زمونږه په علم کښې مو راوستل چې نظریه پاکستان دې ته وائي، د عدالت کرنېل ووئیل د دې خبرې علم خو ماته هم نشته دے البته اوس د چائیو څښلو وقفه کېدونکې ده، زهٔ به هم د دې خبرو تپوس د مشرانو نه وکړم چې په دې باره کښې هغوي څهٔ وائي؟

هرکله چې د چائیو څښلو د وقفې نه پس عدالت کښې هغه کرنېل په کرسۍ کښېناستلو، زمونږه د بلوچو هغه سردار ډېر په ادب او احترام ورمخکښې شو او تپوس ئې وکړو، ستاسو مشران په دغې باره کښې څهٔ وائي؟ کرنېل صاحب وئیل چې مونږ ته هم دا علم نشته چې نظریه پاکستان څهٔ شے دے او څهٔ ته وائي؟ زمونږ د بلوچو هغه سردار عدالت ته واضحه کړه چې ډېره ښه ده چې هرکله تاسو ته پته ولګي د هغې نه پس مونږ ته تر جېل تحریري راولېږئ بیا به مونږ تاسو

ته تحريري جواب درکړو. دغه شان د جېل يوه سخته مرحله په خېر خېريت ترسره شوه او عدالت تر اخره وخته پورې تحريري جواب رانهٔ کړو چې نظريه پاکستان څهٔ شے دے؟ او څهٔ ته وائي؟.

بټهو پسې په سندهـ او پنجاب کښې عوام راپاڅېدل او د شرعي نظام د نافذ کولو د پاره د امريکې ملګرې هم ورسره ملګري شو. د قاديانانو کورونه عوامو سېزل، په دغه باره کښې بټهو دا فېصله وکړه چې قاديانان ئې په اقليت کښې وګرځول، د هفتې اتوار په ځاے ئې د جمعې په ورځ چُټي مقرر کړه، څهٔ رنګ چې په اسلامي ملکونو کښې ورکولے شي، په شرابو او کلبونو ئې پابندي عائد کړه.

د ولي خان د خُلې وېنا ده چې په روژه کښې د مخالفو ډلو د ورځې لس بجې يو شريک اجلاس په لاهور کښې رابللے شوے وهٔ چې کوم ليډر به خپل بيان ختم کړو نو نوابزاده نصرالله خان به د سګار نه ټک هم ويستلو او اواز ئې کولو نظام مصطفٰى کا کيا بنے ګا؟ يعني سېوا د يوځو مذهبي مشرانو نه د هيچا روژه نهٔ وه.

د بټهو صاحب په حکم کلبونه بندول، په شرابو څښلو پابندي عائد کول، د جمعې په ورځ چُټي مقررول، قاديانے اقليت کښې ګرځول مخالفو ډلو کمزوري وګڼله، د شريعت په نامه مزاحمت زياتول او د الېکشن کولو اواز ئې وکړو. د ۱۹۷۷ء الېکشن ته ئې د دهاندلو الېکشن ووئيلو، حالات ئې دومره خراب کړل چې د ډېر وخت نه اوږې ناست فوج او بېوروکرېسي د پاره بانه جوړه شوه او ضياالحق په درېو مياشتو کښې دننه دننه د انتخاباتو او د احتساب کولو وعده وکړه.

سياسي ليډرانو ته علم وهٔ کهٔ دوباره صحيح الېکشن وشي نو بيا هم پيپل پارټي الېکشن ګټي ځکه ضياالحق له سياسي ليډرانو دا مشوره ورکړه چې درې مياشتې وخت د احتساب کولو د پاره کم دے،

چې ترکومې د ټولو احتساب ترسره شوے نۀ وي تر هغې پورې انتخاباتو ته غاړه مۀ ږده او د احتساب په بانه په بټهو باندې د مرګ مقدمه هم دائر شوه چې په ایف ائي ار کښې ئې نامه ټاکل شوې وه. بټهو صاحب څۀ وخت په جېل کښې په خپل تقریر کښې وئیلي وو چې زۀ ډېر کمزورے یم، خو دا کرسۍ ډېره مضبوطه ده. هرکله چې ضیاالحق ترې نه کرسۍ ترلاسه کړه، ضیاالحق بیا مضبوط شو. د پاکستان داسې کرسۍ ده چې په چا کښېږي ئې حیا پرېښې نۀ ده چې څۀ وخت ترې نه ځي، په بې عزتۍ ترې نه رخصت اخلي. په پېښور کښې نثارخان ایډوکیټ چې د پیپل پارټۍ باني رکن وۀ او په کور کلي کښې ئې د پیپل پارټۍ د سنټرل کمېټۍ اجلاس رابللے وۀ، په دې غرض چې په هغې کښې د بټهو د جېل نه په راخلاصولو او تحریک شورو کولو خبرې اترې وشي، په دغه دوران کښې د پیپل پارټۍ په مشرانو باندې پابندي هم وه او څۀ مشران خو د ویرې نه هډو راغلي هم نۀ وو او چې کوم راغلي وو هغوي کښې اکثریت د داسې مشرانو وۀ چې هغوي د اقتدار د پاره تر هرې پارټۍ زغلېدل او څۀ په کښې سرکاري هغه خلق وو چې وروستو د ضیاالحق په کابینه کښې څۀ په صوبه کښې وزیران شول او د چا خبرو د سرکار سره سمون ونۀ خوړۀ، هغه ټول تر ډې ائي خان جېل ولړلي شول، څۀ اهم او صحیح ملګري نثارخان سره شپې تېه پاتې شول او څۀ ملګرو ورله په پټه ځان د شپې د پاره ور رسولے وۀ.

نثارخان زما د ترۀ زوے وۀ او ساندو مې هم وۀ، په دغه وجه د خوراک څښاک انتظام زما ترلاسه وۀ. دغې راغلو مېلمنو په ما باندې سوال وکړلو چې تۀ خو هم د بټهو په باره کښې خپل خیال څرګند کړه، ما ورته صفا ووئیل بټهو صاحب له پانسي ورکوي. هغوي وئیل زمونږ او ستا خیال سره یو دے، خو بټهو په دې خبره څوک مطمئن کولے نۀ

شي، هغه بالکل دا خبره نۀ مني، فقط دا وائي ضیاالحق ماله پانسي راکولے نۀ شي. ما وئیل ضیاالحق پانسي نۀ ورکوي، امریکه به پانسي ورکوي خو بټهو دا هم نۀ منل. اخر هغې ملګرو وئیل ضیاالحق خو ورته هم وئیلي دي چې معافي وغواړه فرانس یا امریکې ته به دې ولیږو هغه بیا هم انکاري وۀ، لب لباب دا چې دې ملګرو خپلو کښې دا فیصله وکړه چې په دې باره کښې بټهو صاحب له ملاقات د پاره ورځو، خپله غاړه به پرې خلاصه کړو، په ډاګه به ورته ووایو چې زمونږه سل فیصده دا یقین دے چې تاته پانسي درکوي کۀ د دې ملک نه چرې بهر لاړے، نو ښه به وي ځکه چې دا تحریکونه د بهر ملکونو نه هم ډېر ښۀ چلیدے شي، خو زما په خیال دغه مېلمانۀ ملګري د بټهو صاحب د ملاقات نه مخکښې د ډي ائي خان جېل ته ولیږلي شول. د هغې نه پس ضیاالحق ټولو سیاستدانانو ته هرکلے ووې او جومات اسلامي ورسره ځان په هر کار کښې ترغاړه کړلو. رحمان بابا وائي:

عقل مۀ غواړه رحمانه بخت ترې ښۀ دے
عقل مند د بختورو غلامان دي

ضیاالحق په ۱۹۷۷ء کښې راغے او په ۱۹۷۸ء کښې ئې د احتساب عمل جاري کړو. د نظام زکواة او نظام صلواة خبره ئې هم شورو کړې وه. په دې هم په ۱۹۷۸ء کښې په افغانستان کښې انقلابي تبدیلي راغله. د روسیانو ملګرو په اقتدار قبضه وکړه چې هغوي ترسره نۀ کړه نو یو کال پس فوجیان سره د روس راغلل. کوم سیاستدانو چې د بټهو خلاف په یو پلیټ فارم پارټۍ راغونډې کړې او د جمهوریت د بحال کولو تحریک ئې شورو کړو، په لاهور کښې یو میټنګ وۀ زۀ په کښې موجود وم چې د سندھ یو قوم پرست لیډر په تقریر کښې ووئیل

زهٔ په خپله هم څهٔ ښهٔ مسلمان نهٔ یم خو زما موجوده لس ښځې دي چې ځلور په کښې مهاجرې دي. هم دغه وجه ده چې زهٔ د مهاجرو نه زیات واقف یم او مهاجر ډېر ښهٔ پېژنم. دا داسې خلق دي چې ضرورت ئې درته پېښ وي په منتونو او په زارو په درته سر وي، ټول دوستان به تاله په سفارش کښې راولي چې په دې هم کار ونهٔ شي بیا به خپل خپلوان درله په سفارش کښې راولي، چې په دې هم کار ونهٔ شي بیا به ښځه او بچي تر کوره در ولي، ژاړي به هم او منتونه به درته هم کوي. اخر چې مجبوره دې کړي او هغه کار ورله ترسره کړې. د هغې نه پس په یو بل لاس واچوي، وائي "سالے کو اُلّو بنایا" یعني ګوره بې وقوف مې ترې نه جوړ کړو. ضیاالحق مهاجر دے کهٔ تاسو ټول دلته کښې راغونډ شئ او بیا هم یو خدائے پاک به ترې نه تاسو خلاصوي.

یو بل فوجي ریټائرډ ملګرے چې فوجي نمائنده هم وهٔ د ضیاالحق تر څنګه پاتې شوے وهٔ. هغهٔ وئیل چې ضیاالحق په اردن کښې د پاکستان په سفارتخانه کښې ملټري اتاشي وهٔ، په دغه وخت کښې د فلسطینیانو او شاه حسېن ترمېنځه جنګونه کېدل. ضیاالحق د شاه حسېن تر غوږ تېره کړه چې زما د پاره د پاکستان فوج یو ډویژن راطلب کړه، زهٔ به دې د دے غمه خلاص کړم. هغه رښتیا وه چې پاکستاني فوج تر اردن لاړلو، شاه حسېن ئې د غمه خلاص کړلو، د هغې نه پس شاه حسېن بټهو صاحب ته د دهٔ په باره کښې سفارش وکړو چې دهٔ له وخت زیات ورکړه او جرنېل ئې کړه. بټهو صاحب د شاه حسېن دغه خبرې ومنلې. دلته کښې جرنل ګل حسن او داسې نور جرنېلان چې خودداره وو او چاپلوس هم نهٔ وو، ضیاالحق ئې جرنېل خوښ کړلو ځکه چې دې بې انتها چاپلوس وهٔ.

بتهو صاحب چې به کوم ځاے ته په دوره تللو ضیاالحق ته به مخکښې علم وۀ، هلته کښې به ئې د دۀ د پاره ټول د عیاشۍ سامان برابر کړے وۀ. یوه ورځ په اخبار کښې د بتهو د خاندان ټول تصویرونه موجود وو چې زامن ئې سره د بې نظیرې په هغې کښې موجود وو، ضیاالحق په هغې تصویر کښې د کمانډر ان چیف په یونیفارم کښې په زمکه ناست دے، بتهو هم دا ګڼل چې دا یو مهاجر سړے دے او انتهائي کمزورے او بې ځوکه دے، دې ماته نقصان راکولے نۀ شي خو مهاجر سړے چاپلوسي عار نۀ ګڼي، دغه شان یو بل ته ډغرې ورکوي. د پښتنو یو مشهور متل دے "خر پلار کړه مطلب پرې بار کړه" عابدالله جان د صوابۍ یو ډېر ښۀ لیکوال دے، په امریکه او په کنېډا کښې ئې تعلیم کړے دے. په "سټېس مېن" کښې ئې هفته واري مضمون راتلو. هغۀ د ضیاالحق په باره کښې وئیل چې ضیاالحق ډېر ښۀ مسلمان وۀ، د اسلام د پاره ئې ډېر ښۀ کارونه کړي دي او مشرف ډېر خراب سړے دے. دۀ د هغۀ ټول کارونه ختم کړل. ما ورته ووئیل په هغه وخت کښې د امریکې یو مسلمان جرنېل ته ضرورت وۀ چې په افغانستان کښې د روس خلاف جهاد وکړي او د پاکستان عوام ورسره هم امداد وکړي. د هغې نه پس د امریکې یو بل جرنېل ته ضرورت وۀ چې په پاکستان او افغانستان کښې د هغه وخت پاتې شوے خلق ختم کړي او هغه ادارې هم ختمې کړي کومې چې په هغه وخت کښې جوړې شوې وې. نن سبا چې سیاسي لیډران ځان تر کرسۍ رسوي، د امریکې په رضا به وي کۀ پلار ئې ورله ولې نۀ وي وژلے.

ضیاالحق د امریکې مسلمان وۀ او ځکه چې په هغه وخت هغې ته د مسلمان ضرورت وۀ او کېدے شي چې مشرف د ضیاالحق نه ښۀ مسلمان وي نو دې وخت کښې امریکې ته د یو لبرل او ازاد خیاله سړي ضرورت دے چې د ضیا الحق باقیات ختم کړي.

# د ضیاالحق دور حکومت:

د ضیاالحق په دور حکومت کښې د پښتنو د دوو سوو کلونو خوبونه او ارمانونه د دغه وخت په دوو درېو برخو کښې پراته پښتانه د دوي د یو ځاے کېدو خوبونه، د دوي د خاورې د یو ځاے کېدو خوبونه، په وینو او زوو او په نفرتونو باندې بدل کړل. د امریکې د پاره په افغانستان کښې جهاد کول او د امریکې بین الاقوامي غوښتنې سر ته رسولو د پاره د یو تاریخ، د یو کلچر، د یوې ژبې او د یو خاندان دوه ورونه په خپلو کښې د مذهب په نامه وجنګول. د وینو او کلاشنکوف کلچر او ثقافت ئې په وراثت کښې ور وسپارلو او د افغانانو په نامه ئې خپله کرسۍ مضبوطه کړه او د ډالرو د امداد لاندې ئې پاکستاني فوج ته د امریکې ایجنډه ور وسپارله.

د پنجاب یو لیکوال احمد رشید چې په طالبانو ئې یو کتاب لیکلے دے چې د افغانستان په نامه باندې اول امداد د ډالرو په شکل کښې یا د خوراک په شکل کښې یا د نورو امدادونو په شکل کښې راغلے دے. نوي فیصده پاکستاني فوج هضم کړے دے او لس فیصده تر افغانستانه رسېدلے دے. د افغانستان ځوارلس ډلې او د هغې جنګي مشران په کلونو باندې په پېښور کښې پراته وو او په افغانستان کښې د دماکو او د نورو تخریب کارۍ کارونه ئې شورو کړي وو. د هغې په بدل کښې د افغانستان حکومت د روس په امداد باندې په پېښور کښې بمونه خلاصول شورو کړل. دغه شان امریکې د کابل پښتانهٔ وژل او روس د پېښور پښتانهٔ وژل. د امریکې خلقو په فخر وئیل چې دا جنګ به تر اخري افغانه پورې جاري وي.

هر جرنیل چې په پاکستان کښې تر اقتداره راغلے دے نو پاکستاني عوام له ئې دا تاثر ورکړے دے کۀ زۀ نۀ یم نو پاکستان به

هم نۀ وي او بېوروکرېسي د پخوا نه هم دې خبرې له هوا ورکوي. د جرنېل صاحب اقتدار مضبوطولو سره امداد کوي، امریکه یواځې په پاکستان کښې نه بلکې په ټولو اسلامي ملکونو کښې ننوته، بې جنګه بې جدله ئې ډېر اسلامي ملکونه قبضه کړل ځکه چې امریکې د مسلمانانو د پاره جهاد کولو. روس چې هرکله د افغانستان نه خپل فوج وویستلو نو ضیاالحق په پاکستان کښې خوشحالئ شورو کړې او دا ئې ووئیل روس مونږه د افغانستان نه وویستلو او چې ترکومه پورې د روسیانو دا ملګري په افغانستان کښې موجود وي، نو جنګ به جاري وي. په دغه دوران کښې د ډیورنډ لائن د پولې نه دې خوا ته وسېدونکو افغانانو او د هغوي د مشرانو ډېر عجیبه کردار پاتې شوے دے. زمونږ په صوبه کښې د پښتون په نامه سیاست کولو والا په اخباري بیانونو او په تقریرونو د وېناګانو تر حده پورې د افغان ورور سره امداد کړے دے.

څۀ وخت چې افغانستان ته د افغانستان په نامه نورمحمد ترکئ راغلو، څۀ موده پس ورپسې حفیظ الله امین احمدزے راغلو، یو غلجے پښتون وۀ او بل محمدزے پښتون وۀ. په هغه وخت کښې قوم پرستو مشرانو به دې ته خانه جنګي وئیله او ورسره ئې دا هم وئیل چې مونږ د کمیونستهانو سره ملګرتیا نۀ کوو. هرکله چې ببرک تاجک راغلو، نو ببرک ولي بهائي بهائي نعرې ئې شورو کړې ځکه چې هغه د روس په امداد راغلے وۀ او نورمحمد ترکئ او حفیظ الله امین روس ته وئیلي وو چې مونږ خپله دفاع په خپله کولے شو.

دغه شان د دغه جنګ په دوران کښې د افغانستان نه راغلے مهاجرو پښتنو مونږ ته ډېرې ګیلې وکړې، هغه دا چې د دغه کورنئ خلق چې کله هم تر افغانستان راغلي دي نو مونږ ئې ډېر دارومدار او

خاطر کړے دے او د خپلو بادشاهانو نه زیات مو ورته د عزت په سترګو کتلي دي، دوي کۀ دلته کښې زمونږ څۀ امداد کولے نۀ شو نو دومره خو پکار وو چې زمونږ په سر ئې لاس راښکلے وے چې کم از کم دي زياتي ته ئې زياتے وئيلے وے نو نۀ دوي زمونږ تر کېمپونو راغلل او نۀ ئې زمونږ سره د همدردۍ اظهار وکړو. البته په مونږ پورې ئې خندا او مذاق وکړل، وائي تاسو په تېښته راغلي يئ واپس تر خپل وطن لاړ شئ.

په پېښور کښې چې د جهادي ډلو کوم پښتانۀ مشران وو د مثال په توګه ګلبدين، محمدي، سياف زمونږ د مشرانو د دوي سره نۀ لګېده، اکثر ئې د دوي خلاف خبرې کولې. رباني، مجددي او مسعود غوندې خلقو ته ئې ښۀ وئيل. دې خبرو اترو په پښتنو کښې دا تاثر پېدا کړو چې د دې صوبې پښتانۀ مشران په مسلمانۍ او په کميونستۍ نۀ دي خو هسې د پښتون مخالفت کوي. د نورمحمد تره کي او حفيظ الله امين مخالفت او د ببرک کارمل سره ياري، دې خبرو اترو د دوي خپل ايمان ښکاره کړو او هغه تاريخي حقيقتونه چې زمونږ غوندې خلقو نۀ منل چې د دوي ټول عمر پښتون دشمن خلقو سره تعلق پاتې شوے دے. تاريخي حقيقتونه ئې دې خبرو اترو رابرسېره کړل. د افغانستان په باره کښې دا فېصله وشوه چې مجددي به د لږ وخت د پاره مشر کړو، د هغې نه پس به رباني ته دا مشري حواله کړو. هر کله چې رباني اقتدار ترلاسه کړو او وخت ئې پوره شو بيا ئې اقتدار نۀ پرېښودۀ. دغه شان په افغانستان کښې د شلو لکهو پښتنو په قربانو يو تاجک د افغانستان صدر وټاکلے شو. د رباني او مسعود د طالبانو تر راتلو پورې پاتې شولو. په دغه وخت کښې په پاکستان کښې هم ډېره تبديلي راغله. د روس د ماتېدو اثر په هغې اتحادي ملکونو

باندې هم پرېوتو ځکه چې هلته کښې هم اتحادي تنظیمونه جوړ شوي وو لکه ازبکستان کښې، تاجکستان کښې، ترکمانستان کښې، د دې نوي ملکونو د روس نه د راېېل شوې مشرانوهم دا خطره محسوسه کړه چې دوي د جهاد په نامه باندې زمونږ په ملکونو کښې هم حکومتونه راوستے شي. پاکستان هم دا جهادي قوتونه ځایولے نۀ شول خو د دوي ترمخه کشمیراوچیچنیاغوندې ملکونو کښې جهادونه شورو شول. نو روسي ملکونو دوباره روس ته اپیل وکړو چې زمونږ سره امداد وکړئ او د دې سره ئې د امریکې نه ګیله وکړه چې ستاسو د لاس جوړ شوي جهادیان زمونږ لوري ته راوړي.

امریکې دا خبره د ضیاالحق تر غوږه کړه چې زمونږ مقصد خو اوس ترسره شوے دے. د دغې ملکونو نه دا جهادیان منع کړه، ضیاالحق د لسو کالونو د جنګ نه پس چې د پاکستاني فوج په کښې هرقسمه تاوان شوے وۀ او د افغان مشري رباني ته ترلاسه شوه، چې تاجکو او هندوستان سره ئې ښۀ تعلق درلود. پاکستان د هر قسمه تاوانونو نه پس هیروئین او کلاشنکوف کلچر او په خپله خاوره باندې دېرش لکهه مهاجر ساتل او د رباني غوندې سړے ئې په افغانستان کښې په دې غرض راوست چې د هندوستان سره ښۀ تعلق ساتي، ضیاالحق ځکه د امریکې دغه خبرو ته تیار نۀ شو چې په پاکستان کښې د وزیرانو تحقیقاتونه چرې هم په صحیح معنو کښې ترسره شوي نۀ دي. ضیاالحق هم په یوه هوائي حادثه کښې سره د ښو ښو فوځي جرنېلانو سره د امریکې د سفیره په حق ورسېدل.

هم په دغه کال په پاکستان کښې الیکشن وشو، د بې نظیر پیپل پارټۍ چې مسلسل ئې د ضیاالحق مخالفت کړے وۀ په اقتدار کښې راغله د امریکې سره ئې د هغې خبرو د سر ته رسولو وعدې

وکړي کومې وعدې چې ضیاالحق تر سره کړې نه وې. د ضیاالحق د لسو کلونو په دور کښې مولیانو د اسلام په نامه باندې ځا ے په ځا ے اډې جوړې کړې وې. دوي داخبره برداشت کولے نهٔ شوه چې دضیاالحق دلسوکلونو د دور نه پس دې د پاکستان یوه ښځه وزیراعظمه وټاکلې شي او بیا بیوروکریسي کښې د پخوا نه د سیاسي خلقو مخالفت کولو او د بې نظیرې په اقتدار هم خفه وو او د دوو کالو دغه اقتدار ئې د کرپشن په تورونو باندې ختم کړو. دوباره الیکشن وشو اسلامي جمهوري اتحاد باندې نواز شریف اقتدار ترلاسه کړو.

نواز شریف ډېر ښهٔ تاجر وهٔ بل د ضیاالحق په لاسو کښې لویېدلے سړے وهٔ او ډېر ښهٔ پښتانهٔ ئې په ډېر لړ لړ امداد د ځان سره ملګري کړل. نواز شریف هم سیاسي لیډر وهٔ، په سیاسي بنیادونو باندې د بیوروکریسي خوښ نهٔ وهٔ هغه هم په دغه الزاماتو د اقتداره برطرف کړے شو.

بې نظیرې دوباره اقتدار ترلاسه کړو په دغه دوران کښې د ډېرو کوششونو باوجود د افغانستان په سیاست کښې د پاکستان عمل دخل کمزورے وهٔ. د پاکستان د لورې چې به چا ټرک کښې سامان تر افغانستانه اوړلو په لاره کښې به ترې نه مختلفو لسو تنظیمونو پیسې اخستلې. دې خوا ته دېرش لکهه افغانان هم په پاکستان کښې وسېدل خو د افغانستان حکومت د پاکستان نه زیات هندوستان ته مائل وهٔ. د روس نه نوي ازاد شوي ملکونو کښې د تېلو او ګېسونو ډېرې ذخیرې پرتې وې چې یونیکال او نورو کمپنو د هغې ملکونو سره معاهدې وکړلې. چې د تېلو ذخیرې به د افغانستان په لاره پاکستان ته او بیا د پاکستان نه تر ګرمو اوبو ورسوي ځکه چې پاکستان ته هم په دې کښې ډېره فائده وه. نصیرالله بابر صاحب په هغه

وخت کښې وزیر داخله وه، د لارې د صفا کولو په غرض هغه کارتیې هم وکړه چې په اخره کښې دا خبره تر طالبانو ورسېده. یونیکال چې کوم رقم د اېډورټائز منټ د پاره مختص کړے وه هغه رقم ئې د طالبانو ترلاسه کړلو او په افغانستان کښې د یو مضبوط حکومت جوړولو په غرض د پاکستان د فوج په شریکه باندې د طالبانو سره امداد شورو شو. طالبانو په یو کال کښې دننه درې حصې افغانستان تر لاسه کړو، اخر داسې وخت راغلو چې سېوا د پنجشېر نه د افغانستان ټوله علاقه د طالبانو تر لاسه شوه او د روس نه ازاد شوي ملکونه کوم چې د دوي نه مخکښې هم په خطره کښې وو نور هم په خطره کښې شول. سره د روس ئې احمدشاه مسعود سره ښکاره باره امداد شورو کړلو دلته په پاکستان کښې هم حکومت بدل شولو.

نوازشریف په دوتهائي اکثریت ترمخه راغلو او په ائین کښې ئې ترمیم وکړلو. د صدر نه ئې اختیارات ترلاسه کړل، په کومو اختیاراتو به چې وزیراعظم ماتېدلو، څه رنګ چې وړاندې لیکلي شوي دي چې نواز شریف د ضیاالحق د ګوتو جوړ سیاستدان وه او د مذهبي جوماتونو مرسته هم ورسره وه او بل لوري ته د پاکستان په لویو لویو شخصیاتو باندې د امریکې څه کار نشته دے او دا درې خبرې ئې ټولو ملکونو ته ترمخه کړې دي کۀ دا درې خبرې په تاسو کښې چرې موجود وي نو مونږ به تاسو سره ملګرتیا ته تیار نۀ یو. بنیاد پرستي، منشیات او اېټمي ټېکنالوژي. دا هغوي ته پته وه چې نواز شریف سره د مذهبي پارټو ملګرتیا شته دے نو هغۀ د ایټم بم د جوړولو کامیابې تجربې هم وکړې.

په افغانستان کښې د اسامه بن لادن د دهشت ګردۍ کارونه تر نورو ملکونو ورسېدل. دې خوا ته د پاکستان په افغانستان کښې د

طالبانو نه علاوه نور ملګري پاتې نۀ شول. پاکستان تر اخره وخته دا کوشش وکړو چې طالبان دې د امریکې نه بچ پاتې شي. د پاکستان ډېر وفدونه د طالبانو سره په دې غرض ملاو شو او مذهبي حوالې ئې هم ورکړې چې امریکې ته د اسامه بن لادن په ورکولو کښې زمونږ او ستاسو کامیابي ده. طالبانو د دې خبرې نه بیخي انکار وکړو هغوي وئیل په دې کښې شک نشته دے چې مونږه مسلمانان یُو خو پښتانۀ هم یُو چې زمونږ په ځاے کښې څوک پناه واخلي هغه په یو قیمت دشمن ته واپس ورکولو ته تیار نۀ یُو.

په پاکستان کښې نواز شریف سره د دوتهائي اکثریت او سره د ترمیمه برطرف شو او جرنېل مشرف د پاکستان د بچ کولو او د امریکې نه د ساتلو په بانه باندې د طالبانو ختمولو اراده وکړه چې تراوسه پورې لګیا دي چې د پاکستان ټولې قوم پرستې پارټۍ په دغه جنګ کښې د امریکې په لوري ولاړې دي. د پاکستان فوج چې د طالبانو په جوړولو او ساتلو کښې پوره برخه اخستې وه، نن لګیا دي دوي د هغه خلقو مخالفت کوي حالانکې دا هم مني چې په افغانستان کښې د طالبانونه علاوه زمونږ بل ملګرے نشته او امریکه په دې شک هم کوي او یوه مجبوري ئې هم ګڼي. ټولې قوم پرستې پارټۍ چې نن امریکې سره ولاړې دي چې د پښتو کولو وخت راغلو نو پښتو ئې په ډاګه پرېښوده چې په کومو خلقو پورې ئې ټول عمر خندا او ټوقې کولې چې دا مولیان دي دوي په څۀ پوهېږي نه او په پښتو کولو هم نۀ پوهېږي هم د هغې خلقو د لاسه یوه داسې کارنامه وشوه چې پښتون قوم به ئې نسل تر نسل یاد ساتي یعني خپل حکومت ئې پرې ختم کړلو خو د پښتون روایات ئې ژوندي وساتل. پښتانۀ کۀ په سیاست پوهېږي کۀ نۀ پوهېږي خو په پره جمبه ډېر ښۀ پوهېږي. دا درېم عالمي

جنګ دے چې زما په کور کښې سره کېږي او د هرش کاله ئې سره پوره کېږي. هر پښتون په دې مجبوروي کهٔ سبا زما څهٔ ذاتي خبره راشي نو په دې جنګ کښې به د چا سره ولاړ یم. امریکې خو ټولو ملکونو ته ښکاره جاره وئیلي دي چې په دې جنګ کښې کوم ملکونه زما سره ولاړ دي هغه زما دوستان دي او چې کوم ملکونه زما سره ولاړ نهٔ دي هغه زما دشمنان دي.

هرکله چې زمونږ جرنېلان هره فېصله کوي هغه به د پاکستان په فائده کښې او کهٔ په نقصان کښې وي خو زمونږه به د پښتون په حېث په کښې څهٔ کردار وي، آیا زمونږه قوم پرستې پارټۍ به چرته د خپل قوم د ترقۍ خبره وکړي او کهٔ نه زمونږه د قوم د تقدیر فېصله نن زمونږه په لاس کښې نهٔ ده او نهٔ جنګ زمونږه په لاس کښې دے او نهٔ امن راوستے شو. د پښتویومشهور متل دے چې "بې غېرته مري او زارۍ ئې پاتې کېږي" د پخوانو مشرانو د حجرو یوه خبره مې تر خیاله راځي، هغوي به وئیل چې نر سړے د جنګ په وخت کښې اواز کوي زما ملګري څوک دي او بې غېرته وائي زهٔ د چا ملګرے یم؟

د پاکستان په شپېتهٔ کاله ژوند کښې د جناح نه راواخله تر مشرفه پورې په ټولو اعلی حکامو باندې مونږه لړه لړه تبصره وکړه ځکه چې زما په نظر کښې د پاکستان د جوړېدو نه پس تر اوسه پورې د یو میاشتې د پاره د اقتدار تبدیلي نهٔ ده راغلې، البته د شکلونو بدلون شوے دے. په سرنامه کښې لیکلي شوي دي چې د هندوستان نوابانو، جاګیردارانو او سرمایه دارانو د هندو سرمایه دارو سره په کولاؤ منډۍ کښې مقابله کولې نهٔ شوه. د یو بېل مارکیټ د جوړولو ضرورت وهٔ چې په هغې کښې مسلمان سرمایه دار په خپلو کښې د خپلې سرمایې وېش کوي. بل خوا ته د کانګرس پارټۍ نوابانو په خپل

منشور کښې دا خبره واضحه کړې وه. چونکې نهرو په خپله هم د ډېر مال حال خاوند وۀ خو د ټولو نه سختې خبرې به په دې باره کښې هم هغۀ کولے. هغۀ وئیل کۀ مونږه ازاد هندوستان غواړو نو نوابۍ او جاګیرونه به مخکښې ختمول غواړي چې کوم کارونه د هندوستان او عوامو په فائده کښې نۀ وي هغه ختمول پکار دي. دا خلق د سازشونو جرړې دي، دا خلق د کلبونو بلد دي، د انګرېزانو وفادار دي او سازشونه ټول عمر په محلونو کښې کېږي چې ترڅو پورې دا نوابۍ ختمې شوې نۀ وي نو په هندوستان کښې به ټول عمر د سازشونو خطره وي. هم دغه نوابانو په هندوستان کښې اخري سازش د پاکستان د جوړولو په شکل کښې وکړلو، پاکستان هم دغه خلقو جوړ کړو کۀ په هندوستان کښې ئې نوابۍ ختمې شوې نو په پاکستان کښې هغوي يو په لس د نغدو په شکل کښې واخستې.

د نوابو او جاګيرونو تقسيم د اقتدار په شکل کښې د دوي ترلاسه راغلو، دغه شان د يورپ نه چې انګرېزان راغلي خلق وو خپل ځان ئې د دوي نه ازاد کړو يعني د هندوستان راغلي سل يو نيم سل کاله د انګرېزانو غلامان پاتې شول او چې ځان ئې ازاد کړلو هر کله چې د هندوستان نه راغلل نو د دغې جاګيردارو او نوابانو ترلاسه ورغلل شپېتۀ کاله د دوي غلامان پاتې شول، انګرېزانو د هندوستان د پاره داسې قانونونه تيار کړي وو چې په کوم قانون باندې غلامان په ښه طريقه باندې ساتلے شي. چونکې دوي هم د بهر نه راغلي خلق وو، پنجابي، سندهي په غلامۍ کښې د ساتلو د پاره هم دغه قانون د ټولو نه غوره ښکارېدلو. حالانکې د پاکستان په ۱۹۴۰ء قرارداد پاکستان کښې په لاهور کښې په واضحو الفاظو کښې ليکلي شوي دي چې مونږ د هندوستان شمال مغرب ته مسلمان اکثريتي صوبو کښې او

بنګال دې ټولو صوبو ته مکمله ازادي غواړو یعني ازاد ملکونه ترې جوړول غواړو. په دې ټول قرار داد کښې د سره د پاکستان ټکے نشته یعني تر دغه وخته پورې د پاکستان جواز نۀ وۀ ځکه چې ۳۷ـ ۱۹۳۶ کښې د الیکشن بائللو په وجه مسلم لیګ د پاکستان نوم نۀ شو اخستے. دغسې د ۱۹۴۶ء الیکشن بیا په دې درېو صوبو کښې بائلو او په بنګال کښې په دو تهائي اکثریت مسلم لیګ وګټلو ځکه چې بنګالیانو صرف د بنګال د ازادۍ یعني ازاد ملک د پاره مسلم لیګ له ووټ ورکړے وۀ ځکه چې دوي وئیل مونږ بنګال یو ازاد ملک جوړوو. د ۱۹۴۶ء د الیکشن نه پس جناح صېب وئیل چې دا خلق پاکستان نۀ غواړي نو زۀ ئې پرې په زور نۀ شم جوړولے ځکه نو هغه دومره خفه وۀ چې خپل بیګ ئې اخستے وۀ او لندن ته خپل د وکالت پریکټس له تللو خو د سنټرل انډیا نوابونو کومو چې ځان د پاره یوه بېله منډۍ پاکستان جوړولو نو هغوي جناح صېب لندن ته د تللو نه پاتې کړۀ او جناح صېب ته ئې دا هم ووې چې تا په ووټونو پاکستان غوښتلو نو د بنګال ابادي د دې درېواړو صوبو نه زیاته ده او په بنګال کښې مسلم لیګ نوي فیصده ووټ اخستے وۀ. دې درېو صوبو کښې ئې چرته لس فیصده او چرته دولس فیصده ووټ اخستے وۀ. د بنګال د مسلم لیګ ووټونه او د دې درېواړو صوبو ووټونه یو ځاے کړو نو دا د پنځۀ پنځوس فیصده نه زیات راځي نو دوي د ۱۹۴۶ء د الیکشن نه پس د مسلم لیګ اجلاس په دهلي کښې وکړۀ هغې ته ئې د بنګال د مسلم لیګ هغۀ ښۀ ښۀ مشران نۀ وو راغوښتي د چا چې د پاکستان د نوم سره اتفاق نۀ وۀ او هغې ته ئې د مسلم لیګ نمائنده اجلاس ووې ځکه چې د پارټۍ مشران ئې نۀ وو راغوښتي بلکې خاص نمائندګان ئې راغوښتي وو. د نبګال هغه نمائندګان هم دوي سره په دې رضا نۀ

وو چې د پاکستان د پاره دې مونږه خپله ازادئ بائلو خو دوي ورته واضحه کړه چې ستاسو او زمونږه ووټونه یو ځاے کړو نو دا د پنځوس فیصدو نه زیات دي نو مونږ به پرې ځان له پاکستان هم جوړ کړو تاسو به مونږ سره په دې پاکستان کښې شریک یئ کهٔ بیا هم یوه صوبه د دغې قانون ترمخه خوشحاله نهٔ وي نو خپل ځان بېلولې شي خو دا په هندوستان کښې د انګرېزانو وفادار غلامان پاتې شوې وو، دوي ته تراوسه پورې د انګرېزانو لباس، ژبه، کلچر د مسلمانانو د هر شي نه ښهٔ ښکاري او بیا بلوچي، سندهي او پنجابي پورې خو خندا او ټوقې کوي. حالانکې هم د دغې قومونو زمکې دي چې موجوده پاکستان پرې جوړ دے او دوي ئې بادشاهان دي. یوه اداره په پاکستان کښې داسې نشته دے چې په هغې کښې د ګرېډ ۱۸ نه په بره افسرانو کښې شپېتهٔ فیصده مهاجر نهٔ وي بلکې داسې ادارې شته دے چې په هغې کښې د نوي (۹۰) فیصد نه هم زیات مهاجر دي. کهٔ خداے مهٔ که چرته پنجابي یا پښتون په دغه منصب تعینات شي نو دوي ورپسې ولګي په ارام ئې هله پرېږدي چې هغه خپل قوم پرېږدي او د دوي ژبه او کلچر خپل کړي یعني چې د دوي په شان شي ځکه زهٔ وایم چې په پاکستان کښې د اقتدار تبدیلي راغلې نهٔ ده او نهٔ په پاکستان کښې د پاکستان وسېدونکي د ازادۍ په خوند پوه شوي دي خو یو بادشاه لاړ شي او د هغهٔ وفادار د هغهٔ په ځاے بادشاه شي.

مونږ نن ټول د هغې وفادارو غلامانو غلامان یو. پښتو کښې یو متل دے "خواره شي وینځې چې د وینځې پښې به وینځې" په پاکستان کښې د بټهو او ایوب خان په دور کښې حکومتونو کښې د دې دواړو په ورومبي څوکلونو کښې د پاکستان د خوشحالۍ او د ترقۍ څهٔ فېصلې شوې وې خو دې دواړه هم دغې مخکنو دورونو

کښې د مهاجرو ګرفت کمزورے کړے وۀ خو دا دواړه بیا هم دوي عملي کارونو ته پرېښودې نۀ دي. نن هم داسې یوه اداره نشته دے چې هغه به د دوي ترلاسه نۀ وي. په پاکستان کښې فقط دوي سوچه پاکستانیان دي، مونږ خپلو مشرانو د انګرېزانو او هندوانو نه ازاد کړو خو د سوچه پاکستانیانو نه به څۀ رنګ پاکستان ازاد شي؟ اکثر د دوي مشرانو به په ورکوټوالي زمونږ نه په سکول کښې تپوسونه کول چې تاسو پښتانۀ يئ او کۀ مسلمانان يئ؟ او کۀ چا به ووئیل چې زۀ پښتون یم نو دوي به ورپورې وخندل، کۀ چا به ورته ووئیل چې زۀ مسلمان یم نو هم دوي به ورپورې وخندل. مونږ ټول ملګري یوه ورځ راغونډ شو او د هغې استاذ په سر مونږه پرنسپل ته شکایت وکړو، پرنسپل هغه استاذان راوغوښتل ورته ئې ووئیل دا هلکان دي، ناپوه دي، تاسو له پوهې د پاره راځي چې دوي دا وائي نو تاسو ورپورې خندا کوئ او کۀ هغه وائي نو هم ورپورې خندا کوئ لهذا دوي په دې پوهه کړئ.

په دغه وخت کښې په دغه سکول کښې درې استاذان مهاجر وو هغوي وئیل د دې صحیح جواب دا دے چې نۀ پښتون یم او نۀ مسلمان یم، زۀ پاکستانے یم او د جناح صاحب په اسمبلۍ کښې د وړومبي تقریر حواله ئې راکړه. هندو هندو پاتې نۀ شو او مسلمان مسلمان پاتې نۀ شو اوس مونږ ټول پاکستانیان یُو.

مونږ په دې اوس پوه شو چې دوي به دا سوال ولې کولو؟ دوي خو په خپله نۀ پنجابیان دي، نۀ سندهیان دي او نۀ مسلمانان دي. د یونان یو زوړ فلسفي وئیلي وو چې زۀ هم کم عقل یم او تۀ هم کم عقل یې خو زۀ ستا نه ښۀ یم ځکه چې ماته دا علم دے چې زۀ کم عقل یم د هغې په حواله زۀ هم وایم چې زۀ هم غلام یم، پنجابے هم غلام دے،

سندھے ھم غلام دے، خو زۀ د دوي نه ښۀ یم ځکه چې ماته دا پته ده چې مونږ غلامان یو.

د مسلمانانو او عیسایانو د جنګونو تاریخ خو ډېر زیات اوږد دے خو چې اسلام کله تر سپېن پورې ورسېدلو نو د یورپ بادشاهانو سره خطره پېدا شوه چې دا خلق یواځې د بادشاهۍ اوږے نۀ دي، د دوي د بادشاهۍ شاته یوه نظریه پرته ده او هغه نظریه د مذهب په بنیادونو باندې ښه مضبوطه ولاړه ده. په کوم رفتار باندې چې دا مذهب خلق خوښوي هرکله کۀ دغه مذهب په یورپ کښې خور شو نو زمونږ بادشاهي به خود بخود ختمه شي. دغه شان عیسایانو د صلیبي جنګونو اغاز وکړو. د جنګونو نه پس ئې مشوره وکړه چې دا مسلمانان د تورې په زور مونږ ختمولے نۀ شو او کۀ چرې مسلمانان ختم کړو نو مذهب ئې ختمولے نۀ شو البته په دوستانه ماحول کښې ختمېدے شي. په مزه مزه چې په دوي کښې نفاق پېدا کړو او فرقې په کښې جوړې کړو او د دوي بادشاهان په نشو عیاشو تماشو باندې اموخته کړو، دا یوه طریقه ده چې دوي به پرې ختمېږي. د دغې صلیبي جنګونو وروستو د مسلمانانو د بادشاهانو په تعلق کښې چې مسلمانانو ته کوم نقصان رسېدلے دے دغه نقصانونه په ټولو صلیبي جنګونو کښې ور رسېدلي نۀ دي. د تجارت او تعلقاتو زیاتولو په نتیجه کښې ئې خپل فوجونه عربي او ایشیائي ملکونو ته واستول. د عربي بادشاهانو د عیاشو او تماشو نه یعني د دې کمزورو نه ئې دا فائدې واخستې چې د نولسمې صدۍ په شورو کښې تقریباً ټول ملکونه د دوي تر لاسه راغلل.

یو فرانسوي لیکوال چې وروستو مسلمان هم شو او په ځان ئې داود نامه کښېښوده د عیسایانو بادشاهانو د یوې غونډې په باره

کښې لیکي چې دوي دا فېصله وکړه چې مکه او مدینه تر کومه پورې زمونږ ترلاسه شوې نهٔ وي تر هغې پورې دا وئیلے نهٔ شو چې زمونږه او د دوي جنګ ختم شو. د انګرېزانو یو مشر په دې باره کښې ووئیل د عربیانو یو سرتېز او ډاکو چې د عربو بادشاهان ترې نه خوف زده وي هغه زمونږه خاص ملګرے دے، د مکې مدینې دا زمکې به د عربو نه بېلې کړو او دغې خپل ملګري ته به ئې ترلاسه کړو. چونکې په دغه وخت کښې د عربو ملکونه د دوي سره وو نو د مکې مدینې او د دې خواوشا د نورو پاکو علاقو نه ئې یو بېل ملک جوړ کړو او خپل ملګري شاه سعود ته ئې ترلاسه کړو ځکه نن واړه سعودي عرب وائي چې تراوسه پورې د شاه سعود ټول خاندان د عیسایانو او انګرېزانو وفادار دے، چې امریکه ورله هم ملک ساتي او هم د هغوي بادشاهان ساتي. اسلامي ملکونو د ځان د پاره په شریکه یو خلیفه ساتلے وهٔ چې په ترکو کښې د هغهٔ د ختمولو فېصله په دې وجه وشوه چې د هغهٔ نه دوي ته خطره وه، هسې نه چې دې د جهاد اعلان وکړي بیا خو به د ټولې دنیا مسلمانان په مونږ پسې یو شان راپاځي. د هغې خلیفه د ختمېدو نه پس دغې انګرېزانو د ټولو اسلامي ملکونو بادشاهان ترلاسه کړل، سېوا د ایران نه په ټولو اسلامي ملکونو کښې د دوي هغه خلق نن هم ناست دي.

د دوي لا د خلافت د ختمېدو خوشحالۍ ختمې شوې نهٔ وې چې په ۱۹۱۷ء کښې په روس کښې انقلاب راغے او کمیونسټان په اقتدار کښې راغلل. د روس یو سر په یورپ او بل په ایشیا کښې وهٔ، کمیونسټو د کارګرانو د بادشاهۍ خبره کوله، دوي وئیل د کارخانې مزدور یو منظم قوت دے، د دوي په لاسونو به په مختلفو ملکونو کښې انقلابونه راځي. د یورپ په ملکونو کښې په هغه وخت کښې د

روس نه کارخانې زیاتې وې چونکې د کمیونستېو د انقلابونو بنیاد د کارخانې د مزدور په سر وهٔ، یورپي ملکونو ته د کمیونستېو نه د خپلې بادشاهۍ د ختمېدو خطره شوه. په خپلو نظامونو کښې دوې تبدیلې راوستلې او سرمایه داري نظام سره ئې جمهوریت وتړلو. دوې وئیل دا نظام ښهٔ دے په دې نظام کښې به عوام په خپله خوښه خپل نمائندګان په جمهوري طریقه باندې راولي. دغه عوام به د ملک د اقتدار او د خلقو د طبعي فیصلې کوي، نو په یورپي ملکونو کښې په لاطیني امریکه کښې او په ایشیا کښې کمیونستې او سوشلستې پارټۍ جوړې شوې او ډېرې په ترقۍ رواني وې او ځني یورپي ملکونو کښې په جمهوري طریقه عوامو په اقتدار کښې راوستل دوباره د دوي د پاره عیسایان کښېناستل چې روس کښې به کمیونزم په څهٔ رنګ ختم کړو؟ دغې غونډې دا خیال ظاهر کړو چې دا کمیونزم فقط د مذهب په نامه ختمېدے شي، خو زمونږه مذهبونه زاړهٔ شوي دي او جنګ کولو د پاره کم عقل خلق هم پکار دي. هغه خلق چې د مذهب په نامه باندې سر ورکوي دا جنګ صرف مسلمانان کولے شي. انګرېزانو وئیل زمونږ دشمن کمیونسټ نهٔ دے بلکې زمونږ اصلي دشمن مسلمان دے. په دې جنګ کښې به مسلمان ختم شي او هم به د کمیونستېو نه خلاص شو خو چې اسلامي بادشاهان مکمل زمونږ ترلاسه وي نو عوام به ئې د جهاد په نامه باندې د روس په ضد رضا کړو او بادشاهان ئې هسې هم زمونږ ترلاسه دي او زمونږ منونکي ملګري دي. بل په دې کښې چې کوم خلق د اسلام په نامه سر ورکوي هغوي به په یو ځاے کښې راغونډ شي، زمونږ ترنظره به هم راشي او چې کوم خلق د دغې جنګ نه بچ پاتې شي او څهٔ لشه په کښې وي او زمونږ سره ملګرتیا نهٔ کوي نو هغوي به په خپله سره ختم کړو.

د امریکې یو سرکاري لیکوال توماس فریډمن په ۲۰۰۰ء کښې وائي چې دا دریم جنګ عظیم شورو دے، د مسلمان د دهشت ګردۍ په نامه باندې هر ځاے کښې جنګ جاري دے. افغانستان سل کاله وړاندې په ۱۸۹۳ء کښې چې د امیر عبدالرحمٰن چې څۀ وخت د ډیورنډ لائن فیصله کوله نو عوامو ته ئې غږ کړو ډیورنډلائن ما د سلو کالو په اجاره ورکړلو یعني داسې ئې وګڼله چې د پښتنو بادشاه مونږ د سلو کالو د پاره په اجاره باندې د انګرېزانو په غلامۍ کښې ورکړي یُو. په افغانستان کښې پنځۀ شپېتۀ فیصده پښتانۀ دي او ۳۵ فیصده تاجک، ترکمن، ازبک، هزاره او نور دي، ژبه ئې فارسي ده. مونږ ټول پښتانۀ دوي ته فارسي وان وایو. د دغې فارسي وانو دا ګیله وه چې ټول عمر پښتنو په مونږه بادشاهي کړې ده او د امیر عبدالرحمٰن نه واخله تر ظاهرشاه پورې ټول محمدزي پښتانۀ دي او زمونږ بادشاهان دي یعني عجیبه خبره دا ده چې د امیرعبدالرحمٰن نه راواخله تر ظاهر شاه پورې یو تن له پښتو ژبه نۀ ورځي او نۀ په پښتو ژبه خبرې کولې شي او د پښتون په نامه ورته ځان سپک ښکاري او ټولې رشتې ئې په تاجکو او ازبکو کښې کړې دي او د هغوي کلچر ئې خپل ګرځولے دے چې څۀ رنګ دغه فارسي وان پښتون ته "افغان غل" وائي. دغه شان دوي هم پښتنو ته په دغه نظر ګوري.

د دغې بادشاهانو دفتري او سرکاري ژبه فارسي ګرځول شوې دي چې دوي ورته "دري" وائي. په سرکاري دفترونو او په ټولو محکمو کښې مشري د دغې فارسي وانو ترلاسه ده، وزارتونه د فارسي وانو ترلاسه دي او دملک پالیسۍ هم د دوي ترلاسه پاتې شوې دي. کۀ هغه د محمدزو حکومت وۀ تر داود خانه پورې او کۀ هغه د ببرک کارمل او رباني حکومت وۀ. دکمیونستټواومسلمانانوترلاسه وو، په افغانستان

کښې د نور محمد تره کي، حفیظ الله امین ډاکټر نجیب الله او د طالبانو په حکومت کښې لیکل، وئیل او لوستل په پښتو ژبه کښې شورو شوي دي. دا عجیبه اتفاق دے او که سازش دے که دا زمونږه نصیب دے چې په ښکته پښتنو کښې انګرېزانو چاله زمکې او جائدادونه ورکړي وو ورسره ئې دا هم لیکلي وو چې درې نسله پښتون نۀ وي نو هغۀ له به زمکې ورکوو. د انګرېزانو په وخت کښې دوي هم زمونږ بادشاهان وو خو دوي د انګرېزانو وفادار غلامان هم وو او د پاکستان په ۷۱ کاله تاریخ کښې هم زمونږه شاهي کورنۍ پاتې شوې دي.

په بره افغانستان کښې د محمدزو د بادشاهانو نه راواخله تر امیر عبدالرحمٰن او تر داود خانه پورې پلار په نیکۀ نۀ پښتو ژبه ورتله، نۀ د پښتو د تاریخ او ثقافت نه خبر وو. د پښتنو قمیص او پرتوګ ته ئې سپک کتل چې کوم پښتون له به فارسي ژبه نۀ ورتله، هغه ئې د خپلو محلونو په شاوخوا کښې هم نۀ پرېښودلو، د فارسي وانو مشران لکه رباني غوندې سړے چې د حزب اسلامي مشر هم وۀ یوه ورځ ترې نه یو خپل ملګري تپوس وکړو چې د جنګ د پاره دې پښتانۀ لېږلي دي او د فېصلو کولو په وخت کښې دې د ځان سره فارسي وان کښېنولي وي، دا ولې؟ رباني ووئیل سپے د جنګ کولو د پاره وي او فېصلې زما د بیروني دنیا د مشرانو سره وي نو د هغې فېصلې کولو ترمېنځه خو سپے کښېنولے نۀ شم. دغه سپي ما د جنګ د پاره ساتلي دي دوي جنګ ښۀ کولے شي.

دې خوا ته انګرېزانو چې کوم پښتانۀ زمونږ مشران کړي وو تر اوسه پورې د مختلفو پارټو په شکل کښې هغوي ته هم انګرېزانو وئیلي دي چې پښتون درنه د ښې ورځې خاوند نۀ شي، تر دې حده ئې ورته وئیلي دي چې پښتون درته د ځانه دله جوړ کړي او ستا هره خبره هم

مني بیا هم ورسره ښېګړه ونهٔ کړې ځکه کهٔ په دهٔ کښې یوه ورځ پښتو او غېرت راغے نو ستا سر به د تنې پورې نهٔ وي. په افغانستان کښې هم د بهر نه راغلے قومونه تاجک او ازبک وغېره چې د افغانستان د پاره مهاجر دي، ټول عمر په اېوان اقتدار کښې پاتې شوي دي او پښتنو سره ئې د بغض او کینې او نفرت په بنیاد باندې د دوي د خرابولو فېصلې کړې دي. د سرکار او طاقت په ذریعه ئې خپله ژبه او خپل کلچر په دوي منلے دے او د دوي تاریخي شخصیاتو ته ئې د غلو او ډاکو نامې ورکړې دي. دغه شان د دې خوا ته پښتنو چې انګرېزانو ترې نه د خپله لاسه د بهر نه راغلي خلقو د پاره د دې ځاے د پښتنو زمکې ورکړې وې، خانی او نوابی ئې ورکړې وې، د دغې سیاسي پارټو مشرانو د مشرۍ په بنیاد باندې د خېر ښېګړې کار تراوسه پورې نهٔ دے کړے. په داسې حالاتو کښې نن هم دا مسئله ترمخه ده چې د دغه خانانو چاپلوسي وکړو چې په منت او زارۍ د پښتنو د خېر ښېګړې په لاره روان کړو او کهٔ په افغانستان کښې رباني ته او یا نورو فارسي وانو ته غپ غپ سره وکړو. پخوا اسلامي عالمانو وئیلي وو چې جنګ به د خېبر نه شورو کېږي، هغوي د عربو خېبر ته اشاره کړې وه خو زما په خیال دا جنګ زمونږه د خېبر نه شورو شوے دے. انګرېز خو وائي دا درېم جنګ عظیم شورو دے. جنګ د پښتنو په علاقه دے چې څهٔ پښتانهٔ په کښې د امریکې په ملګرتیا کښې مري او څهٔ به په کښې د مسلمانانو په ملګرتیا کښې مري او د دواړو اړخونو مشري به مهاجر کوي. مونږ به پرې ورځو او صرف غپ غپ به سره کوو.

هېمفرے اودهغهٔ خرافات پاکستان کښې ډېرو خلقو مطالعه کړې دي، اورم چې وهابیت دهغه وخت نه د عربو په زمکه شورو شوے دے، انګرېزانو چې هېمفرے د کوم مقصد د پاره لېږلے وهٔ، چې په

مسلمانانو کښې دې نورې فرقې جوړې شي او مسلمانان په زياتو ډلو کښې تقسيم شي او د وهابيت په نامه باندې د يوبل مرګونو ته تيار شي. يواځې همېمفرے نه بلکې بې شماره انګرېزان يهوديان انګرېزانو په ټولو اسلامي ملکونو کښې خوارۀ کړي وو. څۀ وخت چې د برطانيې حکومت په عروج کښې وۀ نو هر لس کاله پس ئې دغې لېږلو ايجنټانو پسې د انټلي جنټس ډيپارټمنټ نه افسران لېږل چې دوي دا ثابته کړي چې دا ايجنټان مونږ دڅۀ کاردپاره لېږلي دي آياهغه کار ترسره کوي کۀ نه. په همېمفرے پسې چې کوم کسان لېږلي شوي وو هغوي په واپسي رپورټ کښې وائي چې همېمفرے خو مسلمان شوے دے څکه چې د هغې علاقې بادشاهان، شهزادګان او عالمان ترې نه ګېر چاپېره ناست وي او په وهابي فقه باندې ورسره خبرې اترې کوي يعني هغه اوس زمونږ د کاره وتلے دے او مسلمان شوے هم دے رپورټ اورېدونکے وائي هغۀ چې کوم کار په کومه طريقه شورو کړے دے لس کاله پس به د هغۀ د هغې کار نتيجه ووځي او د هغې فائدې به يواځې برطانيې ته نه بلکې د دنيا عيسايانو او يهوديانو ته ترلاسه کېږي. خو د برطانيې د دوېم جنګ عظيم نه پس دغه ملکونو ته ازادي ورکولې او هم په دې مسلمانانو کښې ئې وفادار غلامان داسې پرېښودلي وو چې تر اوسه پورې د دوي د پاره د دغه ايجنسۍ کار کوي.

بل خوا ته په عربو کښې د يهوديانو د پاره يو بېل ملک جوړ شوے وۀ چې هغې ته اسرائيل وائي او د عربو په نورو اسلامي ملکونو کښې چې د عيسايانو او يهوديانو کوم مسلمانان وفادار ايجنټان پراتۀ دي هغوي په مختلفو حربو باندې په غلطه طريقه باندې جوړ شوي ملک ته فائده رسوي. په پاکستان کښې هم دغې وفادارو پاکستان جوړ کړے وۀ، د جوړېدو نه پس ئې تراوسه پورې د ملک

تولې فیصلې په لندن او په واشنګټن کښې کېږي. په پاکستان او په افغانستان کښې هم نن د پټو ایجنسو بې شماره ایجنټان مذهبي جنګونه په فرقو باندې د عالمانو ترمېنځه کېږي، په جوماتونو کښې کېږي او فرقو زیاتولو له جنګونو کښې هوا ورکوي. زمونږ پښتانهٔ کهٔ په افغانستان کښې دي او کهٔ زمونږه په صوبه کښې دي په جوماتونو کښې چې څوک هم ورته پردے ژبه کښې تقریر وکړي هغه کهٔ په عربۍ ژبه کښې وي، کهٔ فارسۍ ژبه کښې وي او کهٔ په اردو ژبه کښې وي، دوي خپلو کښې یو تربله وګوري وائي ډېر ښهٔ تقریر ئې وکړو او ډېر ښهٔ عالم وهٔ. دا د "را" ایجنټان په افغانستان کښې په فارسۍ ژبه کښې او پښتو ژبه کښې د عربۍ ترجمې کوي او په پاکستان کښې په پښتو ژبه کښې او په اردو ژبه کښې د عربۍ ترجمې کوي. افغانستان د جنګ د پاره د ټولې دنیا نه د جهان په نامه باندې مسلمانان راغلي دي چې د هندوستان نه په کښې هم راغلي دي او بیا په افغانستان کښې پاتې شوي دي، د داسې رنګ خلقو به څهٔ رنګ پته لګي چې دا د القاعده شریک ملګري دي او کهٔ آیا دا د طالبانو شریک ملګري دي او کهٔ د هندوستان د "را" ایجنټان دي حکه چې خودکشه حملې پښتون ذهن بالکل نهٔ اخلي وائي چې دا د بزدله قومونو نخښې دي او هر څوک چې بزدله وي، هغه به ظالم وي او بیا دا خودکشه حملې چې زمونږه په علاقو کښې زمونږه د مسلمانانو ماشومان بې ګناه سره مري داهم د داسې بزدله قومونو مشران زمونږ د اتلسو شلو کالو زلمي خودکشه حملو او غلطو کارونو ته تیاروي. هرکله کهٔ د دوي نیت چرې صفا وهٔ او په رښتیا مسلمانان وو آیا داسې زلمیان به ئې د عیسایانو او یهودیانو د جنګ د پاره تیار کړي وو او تر هغې وخته پورې به ئې ایسار کړي وو دا رنګ بندوبست به ئې ورلره کړے وهٔ، یهودیانو او

عیسایانو پسې به ئې هغې ملکونو ته لېږلي وو په کومو ملکونو کښې
چې د خودکشه حملو ضرورت دے.

د افغانستان او د روس په جنګ کښې په وړومبي ځل چې څهٔ رنګ برطانیې امریکې له مشوره ورکړې وه چې دا جنګ دې اوږد شي نو یوه فائده ئې دا ده چې د روس وسله به په افغانانو باندې ضائع شي دغه شان چې نن کوم خلق خودکشه حملو ته تیاروي، دا د مسلمانانو وسله به په مسلمانانو باندې ضائع شي په دې خیال باندې چې مونږه هرکله راځو نو دا وسله به ختمه شوې وي. د انګرېزانو خو د خبرو او د شکل نه پته لګي ځکه چې دوي په شریکه د هندوستان د "را" ایجنټان په پاکستان، افغانستان او په قبائیلي علاقو کښې خوارهٔ کړي دي چې د پاکستان سرکاري ژبه اردو ده او دغه خلق په اردو ژبه باندې ښهٔ پوهېږي او زمونږ ځوان کُول بې لارې کوي او زمونږه ښه وسله په غلطو خلقو باندې ازمائي.

په ۱۹۶۵ء کښې د پاکستان او هندوستان په جنګ کښې یوه افواه خوره شوه چې هندوستان دلته کښې خپل ایجنټان رالېږلي دي او ځاے په ځاے ئې خوارهٔ کړي دي. هرکله کهٔ چا وپېژندل یا د چا په داسې خلقو شک راغلو نو دستي دې ورله لاس تړي او پولیس ته دې حواله کوي.

په هغه وخت کښې د امد و رفت ذریعې هم ښې نهٔ وې چې په مېلمه باندې به چرته په بل کلي کښې شپه راغله چې تر حجرې او تر جوماته به تلو نو خلقو به پرې شک کولو په دې باره کښې خلقو د عالمانو نه پوښتنه وکړه چې مونږ ته به د داسې خلقو پته څهٔ رنګ لګي چې ایا دا هندو دے او کهٔ مسلمان دے؟ عالمانو د دې په جواب کښې ووئیل چې وهٔ ئې ګورئ چې "سنت" وي مسلمان به وي او چې

"سنت" نۀ وي هغه به هندو وي. اوس هم د افغانستان ورونړو له او قبائیلي ورونړو له او د دې ځاے ورونړو له پکار دي چې په مدرسو کښې داسې عالمان چې د بهر نه راغلي دي چې مشکوکه وي او ځوان کُول بې لارې کوي، پکار دي چې مشران ورمخکښې کړي او دغه عالمان وګوري چې آیا دا هندوان دي او کۀ مسلمانان دي؟

## په پیپل پارټۍ کښې د شمولیت دعوت:

د ۱۹۷۷ء په شورو کښې په ماپسې د پیپل پارټۍ دوه اهم کارکنان او د بتهوصاحب ډېرقریبي دوستان چې یو د بیګم نصرت بتهو سیکرټري راجه انور او بل نصرالله خان خټک چې څۀ وخت وزیراعلی وۀ، د هغۀ سره سیکرټري وۀ، پروېز رشید دا خبره ئې زما تر غوږه کړه چې بتهو صاحب ستا په حقله وائي چې دا سړے د ځان سره ملګرے کړئ او کۀ نۀ ملګرے کېږي بیا ئې ختم کړئ.

نۀ پوهېږم چې دا خبره ئې په ښۀ نیت کوله او کۀ زۀ ئې د خوف او وېرې په جال کښې راوستم. راجه انور او پروېز رشید پنډۍ کښې په ګارډن کالج کښې زما ملګري هم پاتې شوي وو او غوښتل ئې چې د حیات محمدخان کمے پوره شي. ما د دوي د دې خبرو په حواله واضحه کړله چې بې شکه چې ستاسو نیت روغ دے خو د حیات خان ورور د فوج نه استعفٰی ورکړې ده. پیپل پارټۍ ته به اوس د خپل ورور په ځاے هغه راځي او زۀ د پیپل پارټۍ د غریبانانو فلسفه د خانانو او نوابانو د فائدې د پاره په استعمال کښې راوستلے نۀ شم. هغوي وئیل هغه یو فوجي سړے دے په سیاست هم نۀ پوهېږي ما ورته دوباره ووئیل زما نور ملګري په افغانستان کښې دي، زۀ به د هغوي سره

صلاح مشوره کوم، زما د کلي وطن خلق هم ورسره دي، نۀ پوهېږم چې هلته کښې څۀ روان دي؟

د دې خبرو نه پس تر افغانستان پورې لاړم هلته کښې اجمل خټک سره ملاو شوم. د ګرمۍ موسم وۀ خټک صاحب د افغانستان په سیاست باندې ډېرې تفصیلي خبرې اترې وکړې. ما ورته د جلال اباد په کېمپونو کښې چې زمونږ د علاقې کوم خلق پراتۀ دي، د هغوي ګیلې معنې تر مخه کړې. ما ته دا علم نۀ وۀ چې د اجمل خټک سره په دغه وخت کښې ناست مېلمانۀ د خلق او پرچم پارټۍ مشران دي. خټک صاحب ووئیل چې د کېمپونو ملګرو څۀ وئیل ما ووئیل چې اوس تاسره مېلمانۀ دي بیا به سره دا خبرې وکړو. خټک صاحب ووئیل دا خو کورنانۀ دي، وایه هغوي څۀ وئیل؟ ما ورته تر غوږه کړه چې هغوي ځاے په ځاے په دېوالونو لیکلي شوي دي چې درې غلۀ اجمل، اعظم او هدایت او په دې کېمپونو کښې هغه کسان دي چې په پاکستان کښې پرې د بمونو خلاصولو دعوې شوې دي. چونکې تۀ مشر یې نو دغه خلق دا ګڼي چې دا هرڅۀ ستا په صلاح او مشوره باندې کېږي. په دې کښې د پرچم پارټۍ نور مشران هم راغلل، بیا وروستو ترې نه خبر شوم چې دا یو ببرک کارمل وۀ، بل عنایتا او بل امیراکبر خیبر وۀ. دوي وئیل مونږ د پښتونستان د ورځې د مبارکۍ د پاره راغلي یو چونکې په مونږه پابندي په هغه ورځ راتلل راته مشکل دي، ځکه دوه ورځې مخکښې راغلو. د جلال اباد د خلقو د ګیلو د ثبوت د پاره چې زۀ په دې کښې نۀ یم د اعظم هوتي لاسلیک راوښودلو چې په کښې اجمل خټک ته لیکلي وو، چې ځان بېمار کړه سبا له د پښتونستان د ورځې تقریر کولو د پاره مۀ راځه. هغه تقریر به زۀ په خپله کوم. په دې باره کښې خټک ماته ووئیل تۀ هسې هم د چارسدې نه راغلے یې تۀ

اعظم ته ووایه چې ولي خان وئيلي دي اجمل خټک ته ووايه چې د پښتونستان د ورځې تقرير به ته کوې. ما ووئيل زۀ دروغ نۀ شم وئيلے، البته زۀ به په خپله اعظم خان ته دا خبره وکړم چې د پښتونستان د ورځې تقرير به اجمل خټک وکړي شائد چې زما دا خبره ومني.

هرکله چې اعظم هوتي ته دا خبره ما ترمخه کړه هغۀ ووئيل بالکل دا تقرير دې اجمل خټک وکړي. هرکله چې اجمل خټک د پښتونستان د ورځې د تقرير د پاره تلو نو زۀ هم ورسره وم. د خټک د تقرير کولو نه پس مازيګر د ګډاګانو د ملي اتڼ او بيا د لوبو او سندرو د شپې تر ناوخته پورې پروګرامونه وو. زۀ د خټک صاحب سره په وړومبي سيټونو باندې ناست وم چې کومې سندرې غاړې به خپله سندره ختمه کړه، بيا به د اجمل خټک تر مخه حاضره شوه. د تاجکو د رواياتو په حواله باندې به اجمل خټک ښکل کړه. په وار وار به مونږه تولې ښکل کړې. خټک صاحب دوره درې ځله ماته ووئيل داسې ښکلول مۀ کوه او چکونه هم مۀ لګوه، ما وئيل په محفل کښې په اول ځل جينۍ ښکلوم. په دې کښې اعظم هوتي سره د ملګرو ماله دعوت راکړو چې زما سره زما ترځايه لاړ شه، دا سندر غاړې واړه ما تر خپل ځايه راغوښتلي دي. په دې خبره باندې اجمل خټک لا تندے هم ګونجې کړلو ځکه چې اجمل خټک ماته اول وئيلي وو تا له د ښکلولو چل نۀ درځي. په دې باره کښې اعظم ووئيل دا کابليان خلق دي د مينې په چل نۀ پوهېږي، تر کوره ئې بوځه خپل زړۀ خوشحاله وه.

د هغې شپې په سحر اجمل خټک د خوب نه راپاڅېدلو، وئيل ئې د خلقيانو مشران حفيظ الله امين سره د ملګرو راغلي دي، چونکې په چارسده کښې زما تعلق د مزدور کسان پارټۍ سره وۀ اجمل خټک د هغې په حواله زما تعارف د هغوي سره وکړو او خپلې نمبرې

ئې هم زیاتولې، چې یواځې نېشنل پارټي نه بلکې سوشلسټ او کمیونسټ هم ماله راځي. هغوي بیا زما نه دا تپوسونه کول چې ستا مخکښې څۀ اراده ده؟ د دې نه پس څۀ کول غواړې؟ ما ورته ووئیل د برطانیې او کنېډا کالجونو ته مې کاغذونه استولي دي، زړۀ مې غواړي چې هلته کښې داخله وکړم. هغوي سره د اجمل خټکه ماته واضحه کړه چې د افغانستان سټوډنټانو په جرمني کښې ډېر ښۀ تنظیمونه جوړ کړي دي، ستا په ورتلو باندې به هلته کښې دا تنظیمونه هم فعال شي او تۀ به هم د پښتنو د ازادۍ او خپلواکۍ په تحریکونو کښې برخه واخلې.

ما هم اراده وکړه، په جرمني کښې مې لیاقت نومے یو ملګرے وۀ چونکې دلته کښې خلقیان او پرچمیان یو ځاے شوي وو او یوه پارټي ئې وه، دوي ماته د هغې ځاے د مختلفو تنظیمونو په نامو خطونه راکړل. دوي وئیل د رسېدو سره سره هغوي ته دا هم ووایه چې تاسو هم دا جدا ګروپونه یو ځاے کړئ. چې په افغانستان کښې مې د ترکي په لاره باندې د جرمني ټکټ ترلاسه کړلو، په وروستۍ ورځ باندې د کابل په ښار کښې ګرځېدم، وېښتۀ مې هم لوے شوے وو، د یو نائي تر دوکانه ورغل په دې خیال چې وېښتۀ جوړ کړم. نائي وئیل څۀ رنګ وېښتۀ درله جوړ کړم؟ ما وئیل چې دلته کښې څۀ رنګ فېشن وي. اول ئې زما د سر په وېښتو سپرې وکړه، ډېره شیبه ئې زما سر مالش کړو، مالش ئې ډېر خوند راکړو، بیا ئې په شا لوري ګومنځه ووهله او د مخې د لوري نه ئې پرې چاړۀ راښکله. ما ورته وئیل دا خو دې ګنجے کړم! چې ستا د خُلې وینا ده چې دلته کښې څۀ رنګ فېشن وي، د هغې فېشن په حواله مې تاله وېښتۀ جوړ کړل. ما ورته وئیل دا لا څۀ رنګ فېشن دے؟ هغۀ وئیل بهر په شیشه کښې وګوره نو تاته به

ثابته شي چې دلته کښې دا فېشن دے او که نۀ دے. ما چې بهر په شیشه کښې وکتل په رښتیا باندې ماته ثابته شوه چې دلته کښې دا فېشن دے. ما د هغۀ نه پوښتنه وکړه دلته کښې دا فېشن ولې دے؟ هغۀ وئیل دلته کښې داود خان ګنجے دے، دلته کښې خلق د بادشاه په شان وېښتۀ جوړوي، چې د هغۀ څۀ رنګ فېشن وي، هغه فېشن دوي هم اختیاروي.

ډېره موده پس دربانې په دورحکومت کښې مې دغه کمیونسټ په لویو لویو ډېرو کښې ولیدل، چې طالبان راغلل نو ډېرې ئې سره اوړدې کړې وې او مسئلې ئې زمونږ د عالمانو نه ښې ښې کولې.

په ترکي کښې مې په وړه کښې دوه ورځې پاتې شوې وې په دغه ورځو کښې مې د ترکي د عیاشۍ او دکلبونو صفتونه اورېدلي وو، چې د ترکي د جهازونو د اډې نه بهر لاړم، زۀ د نورو خلقو په شان ټېکسي ته په نمبر کښې ولاړ وم زما په نصیب کښې یو زوړ ټېکسي ورسېدلو چې ډرائېور ئې ډېر ښۀ مسلمان وۀ. د یو بل په ژبه سره هم نۀ پوهېدو خو په تلو کښې ئې په لاره خبرې شورو کړلې. هغۀ وئیل پاکستان او پاکستان هغۀ وئیل مسلمان او مسلمان د هغې نه پس ئې په لاس کښې لاس راکړلو، ډېر خوشحاله شو، وئیل ئې د ټولې ترکي سبل به زۀ په تا کوم. په هوټل کښې ئې زما د پاره کمره ترلاسه کړه، هغۀ وئیل دمه وکړه زۀ به یوه ګېنټه پس په تاپسې راځم، چې تا د سبل د پاره بوځم چې کوم خوا ته دې خوښه وي په هغه لور باندې به دې بوځم. ما دمه وکړه، کپړې مې هم بدلې کړې، په یوه ګېنټه پس هم هغه ډرائېور راغے، زما دا خیال وۀ چې د عیاشو ټول ځایونه به دۀ ته معلوم وي. اول کښې ئې د ټول استنبول جوماتونه په ما وکتل، ورسره ورسره ئې د هغې تاریخونه تعریفونه هم بیانول او په ما ئې دوه دوه رکعته

نفلونه هم کول. په دغه وخت کښې زهٔ نهٔ پوهېږم چې دهٔ ته څهٔ رنګ
ووایم چې ما د عیاشو ځایونو ته بوځه، په اشارو باندې مې ډېر
کوشش وکړو ما اورېدلي وو چې ترکي قومونونه ډېر مشهور دي چې
ښځې په کښې سړو له مالش کوي، چې پوه شو د دې نه پس ئې یو
مشهور او زوړ حمام ته بوتلم چې په هغې د هرې ژبې یو لستې لګېدلے
وهٔ، چې په هر قسمه مالشونه ورسره په بړاس باندې لمبېدل، یو یوئې
ماته ښودلو، وئیل ئې چې ستا کوم یو خوښ وي، دا خو د بهر خبرې
وې چې سره تېرې شوې هرکله چې تر حمام ورد ننه شوم د ښځو د مالش
کولو په کښې هډو نامه نهٔ وه. دغه شوق مې هم ترسره نهٔ شولو. په
غصه کښې د هغې حمام نه بهر ووتم او دې ډرائېور ته مې په پوزه
ګوته کښېښودله، په لاسونو مې ورته د ګډاګانو اشارې وکړې چې
دغسې مقام ته مې بوځه. ډرائېور ووئیل اوس پوهه شوم په استنبول
کښې د ټولو هوټلونه یو اوچت هوټل وهٔ چې د هغې په اخري چهت
باندې یو لوے ګول هال وهٔ چې هم په کښې خوراکونه کېدل او هم په
کښې ګډاګانې کېدې. هغوی لویې لویې قومي ثقافتي محرارې
اغوستلې وې یعنې دغلته مې هم خواهش ترسره نهٔ شو، ډرائېور ته
مې ووئیل ما تر خپل ځایه ورسوه چې اوده شم او ارام وکړم، چې
ډرائېور تر خپله ځایه بوتل، هغهٔ وئیل سبا له څهٔ وخت راشم؟ ما وئیل
سبا له مهٔ راځه ځکه چې زهٔ روان یم. هغهٔ بار بار زما نه تپوسونه کول،
چې تهٔ جوړ خفه یې؟ ما وئیل خفه نهٔ یم البته خوب پوره کوم، سباله به
جهاز ته خېژم، جرمني ته به ځم، چې کرائې مې ورکوله هغهٔ انکار
وکړو، هغهٔ وئیل زما ورور یې. غرض دا چې ډرائېور لاړلو زهٔ اوده شوم
چې سحر لس لس نیمې بجې د خوب نه پاڅېدم ما ناشته کوله چې په
دې کښې د هوټل نوکر راغلو وائې ستا یو مېلمه راغلے دے، دوه درې

کېنتې وشوې چې ستا په انتظار کښېږ ناست دے، ما اجازت ورکړو اواز ورته وکړه چې راشي، هرکله چې راښکاره شو هغه ډرائېور وۀ. ما ورته وئيل ما خو تاته پرون وئيلي وو چې سباله مۀ راځه ځکه چې زۀ روان يم. هغۀ ووئيل بالکل تاسو وئيلي وو، ژړغونے غوندې هم شو، وئيل ئې ما ستا د پاره نن په خپله اهل خانه د خوراک څښاک انتظام کړے دے، ټول بچي مې د سکول نه پاتې کړي دي، د دې پاره چې نن به يو مېلمه راځي چې سره په يو ځائے خوراک څښاک وکړو. د خوراک څښاک کولو نه پس مې ترې نه تپوس وکړو چې اخر تا څۀ محسوس کړل چې زۀ څوک يم؟ هغۀ وئيل چې څۀ وخت په راتلو کښې مې په نظر راغلے تا په سر باندې چاړۀ راښکلې وه، زما ترۀ او د هغۀ زوے د حج نه راغلي وو هغوي هم په سرونو چړې سره راښکلې وې. بلکې تا وئيل زۀ مسلمان يم زړۀ کښې مې وئيل تۀ جوړې هم د حج نه راغلے يې.

د هغې نه پس سره د ډرائېوره ټوله کورنۍ زما سره تر جهازونو اډې راغله او زۀ ئې رخصت کړم. چې تر جرمنه ورسېدم هلته کښې مې ټېکسي ډرائېور له د خپل ملګري لياقت پته ورکړه چې د هغۀ تر کوره لاړم، دروازه مې ووهله، د هغې کوره يو جرمنے راووتلو، ما ترې نه د لياقت پوښتنه وکړه، هغۀ وئيل لياقت خو نشته دے ما وئيل تۀ خو پښتون يې ځکه چې پښتو ژبه درځي، کۀ لياقت نشته دے تۀ خو موجود يې، هغه په خندا شو په خندا کښې وائي ستا په ژبه باندې نۀ پوهېږم. ډېرې ورځې وروستو ماته ثابته شوه چې جرمنيان نشته ته "نشدا" وائي. اخرپه سبا لياقت راپېدا کړو. اول مې ورته د ببرک کارمل او حفيظ الله امين خطونه وښودل چې د اجمل خټک لاس ليک په کښې هم وۀ. لياقت ووئيل اجمل خټک خو فقط ستا تعريفونه ليکلي دي، البته دوي ته ئې دا هم ليکلي دي چې دۀ سره امداد کوئ،

بیا ئې د رحیم ځدران سره ملاو کړم چې د خلق د پارټۍ د سټوډنټانو مشر وؤ، دوي ټول په فرانکفورټ ښار کښې وو خو رحیم ځدران ماته واضحه کړه چې د پرچم د سټوډنټانو مشر په بون کښې اوسي، د غه شان هغه بل خط ما او رحیم ځدران تر بون تر بریالي یوړو. د هغۀ سره د هغۀ په کور کښې مونږ داوړو شپه وکړه. بریالے فارسي وان وؤ د ببرک کارمل رشته دار هم وؤ، د یوې جرمنۍ یهودۍ سره ئې وادۀ کړے وؤ. د ایران او افغانستان سره ئې د قالینونو کاروبار کولو او په بون کښې په یو لوے کور کښې استوګن وؤ. رحیم ځدران د خلقیانو د لورې د سټوډنټانو مشر وؤ خو پښتون هم وؤ، په کېمسټرۍ کښې ئې پي اېچ ډي کړې وه، په کالج کښې ئې سټوډنټانو ته سبق ښودلو. د فرانکفورټ په ښار کښې په هاسټل کښې په یوه وړه کمره کښې وسېدلو. د میاشتې تنخوا ئې زمونږه په شان په خوارو بې روزګارو پښتنو خرچ کوله.

په فرانکفورټ کښې چې کوم ملګري وسېدل، تقریباً دېرش کسان په کښې افغانان ووا و تقریباً پنځۀ ویشت کسان زمونږه د صوبې پښتانۀ وو په کارخانو کښې ئې مزدورۍ کولې. دې ملګرو ماته د ډېر قدر اواحترام په نظر کتل، کۀ یوخواته د اجمل خټک د خط د تعریفونو وجه وه نو بل خوا ته د خلقیانو او د پرچمیانو د مشرانو د خطونو په نتیجه کښې د دوي یو والي زما قدر او عزت نور هم سېوا کړو.

یوه ورځ دا ملګري د نصیحت په توګه ماته وائي دا پاکستان یا افغانستان نۀ دے چې هر یو کار به په زور کوے، دلته په جرمنه کښې کۀ رېل ګاډي ته خېژې، کۀ بس ته خېژې یا د سنېما ټکټ اخلې، په لائن کښې به ودرېږې، د خپل نمبر انتظار به کوے، هرکله کۀ زور دې اختیار کړو نو دا جرمنیان ډېر خراب خلق دي، خفه به دې کړي، په

دې باره کښې ما جواب ورکړو چې جرمنيان خو ډېر ښۀ خلق دي څکه چې زما ډېر قدر او عزت کوي. هرکله چې د هرڅۀ د پاره په لائن کښې ودرېږم څوک نه څوک مې د لاسه ونيسي او د ټول لائن نه مې وړاندې کړي، چې په رېل ګاډي يا په بس کښې مې ولاړ ووينې څوک نه څوک پاڅي ماته خپل سيټ پرېږدي. د دې نه علاوه دوه درې ورځې مې په يو هوټل کښې خوراک څښاک وکړو، هغوي زما نه د هغې بل هم وصول نۀ کړو. ملګرو ووئيل دا د نۀ منلو خبره ده. کبير ستوري زما په سر لاس راښکلو، په نفسياتو کښې ئې پي ايچ ډي کړې وه او په خندا شو، هغۀ وئيل مونږه پاګلانو له چاړۀ په سر د دې د پاره راکاړو چې پېژندګلو ئې کېږي او انشورنس کمپنۍ والا د هغۀ په قميص، پرتوګ يا په پتلون خپل نمبر ليکلے وي چې په هر ځائے کښې دې خوراک څښاک وکړي، هغوي هغه نمبر د ځان سره وليکي د دۀ هغه بل بيا انشورنس کمپني ورکوي، تۀ خو هم ماته پاګل ښکارې، تا چاړۀ په سر باندې ولې راښکلې ده، څکه هوټل والاستا نه بل نۀ اخلي، څکه ستا عزت کوي او په لائن کښې دې هم نۀ ودروي.

په جرمني کښې په يونيورسټۍ کښې د نفسياتو په څانګه کښې سبق، د شپې په يوه پرائيوېټ اداره کښې د جرمنۍ ژبې د زدکړې په غرض سبق، دغه شان په پنځۀ کښې څلور کاله سبق، د لاهور په يونيورسټۍ کښې سبق او بيا ډپلومې حاصلولو په غرض د ځوانۍ په وخت کښې سبق او د زدکړې د پاره د خپل کلي وطن نه بهر راتلل. په پنجاب کښې تعليم حاصلولو سره پښتو او پښتونولي په ما کښې راغله، د پنجابيانو تعصب او خودغرضۍ خپلې پښتو او پښتونولۍ باندې کلک کړم. جرمني ته په تلو کښې زمونږه د صوبې او د افغانستان نه راغلي پښتنو د دنيا تاريخ او د دنيا په ملتونو باندې

د پښتنو موجوده مقام جوړول او د دې د پاره هلې ځلې مونږ شورو کړې. د عیسایانو او یهودیانو په سرمایه دارانه نظام کښې د وسېدلو سره زمونږه دین او ایمان په نورو مذهبونو باندې نور هم مضبوط شو یعنې په پنجاب کښې تعلیم حاصلولو او وسېدلو سره پښتون شوم او د جرمنې تعلیم حاصلولو او وسېدلو سره مسلمان شوم.

د افغانستان نه راغلي پښتنو مسلمانانو به زمونږه سره پښتو ژبه وئیله چې په کښې به ترې نه د فارسۍ او جرمنۍ ژبو الفاظ هم راتلل او زمونږ د پاکستان نه راغلي پښتنو چې به پښتو ژبه وئیله د هغوي نه به په کښې د اردو او انګرېزۍ ژبې الفاظ راتلل. مثلاً چې مونږ به هغوي ته وئیل: په ۱۹۳۰ء کښې دا معامله شوې ده نو هغوي به ۱۹۳۰ء لاڅۀ ته وائي مونږ به وئیل انګرېزي کال نولس سوه دېرشم، هغوي به وئیل اوس پښتو ژبه شوله. دغه شان هغوي به کله نه کله وئیل: متاسفانه، مونږ به وئیل څۀ ته وائي هغوي به وئیل د بده مرغه یا د بدقسمتۍ نه، دغه شان د هغوي د پښتو ژبې نه فارسي او جرمني ووته او زمونږ د پښتو ژبې نه اردو او انګرېزي ووته. دغه شان یوه سوچه پښتو ترمېنځه راغله چې دواړه سره ښۀ پرې پوهېدو او د دواړو مورنۍ ژبه هم وه. د دې سره زمونږه شریک دا سوچ راپېدا شولو چې زمونږ په مورنۍ ژبه کښې د اردو، فارسۍ او انګرېزۍ ژبو اثر ولې دے؟ دا ځکه چې مونږه د درېواړو ژبو د خاوندانو غلامان پاتې شوي یو او اوس هم غلامان یُو.

د روس یو پوهان وئیلي وو چې د غلامۍ نه ځان خلاصول اسان کار دے چې څوک د ازادۍ مبارزه کوي یوه ورځ به ضرور ازاد شي خو د ذهني غلامۍ نه ځان خلاصول ډېر ګران کار دے ځکه دې ازادۍ نه وړاندې ضروري ده چې سړے دې د ذهني غلامۍ نه ځان ازاد کړي. په ټول

جرمني کښې مې ټولو پښتنو له دعوت ورکړو، په هغه دعوت نامه باندې دوه پنځوس کسان راغلل. د بلوچو او پښتنو په نامه باندې مونږه د ملي ازادۍ یو تنظیم جوړ کړو او په دې پروګرام کښې دوه بلوچ هم زما سره ملګري وو. اول د خپلو علاقو د تاریخ معلوم‌ولو سلسله وه او بیا مونږه چې په کومو حالاتو کښې سره پراته یُو د هغې په باره کښې د معلوماتو د راغونډولو خبره وه. د دنیا په نورو ملکونو کښې د ازادۍ غږونه او د هغوي کوم تنظیمونه چې په جرمني کښې موجود وو د هغوي سره مونږ رابطې جوړې کړې. زمونږ دا کوشش وۀ چې د دې نه دې زدکړه وکړو. د فرانکفورټ په ښار کښې وسېدونکي پښتانۀ شل یا پنځوس کسان د هفتې په ورځ په یو باغ کښې سره راغونډېدلو ځکه چې د هیچا سره دومره لوے ځاے او کمره نۀ وه چې دا کسان په کښې راغونډ شوي وے. مونږ خپل تاریخ د ډېرو دشمنانو سره ترمخه کړي یُو خو ځوک هم په دې کښې تر اوسه پورې کامیاب شوي نۀ دي سېوا د انګرېزانو نه چې زمونږ ملک ئې درې ټکړې کړے دے.

په ۱۸۹۳ء کښې انګرېزانو په اول ځل افغانستان دوه ټکړې کړو چې یو لور ئې د کابلیانو په نامه باندې بللو او بل لور ئې په پېښوریانو باندې بللو او د دواړو تر مېنځه ئې سراسري قبائیلي علاقه جات کړل. دغه پښتانۀ ئې په درېم شکل کښې د پښتنو راوستل، چې دا قبائیل دي او د دوي به خپل قانون وي، چې نۀ به ورسره د کابل څۀ کار وي او نۀ به ورسره د پېښور څۀ کار وي. البته زمونږه د لاس د لاندې به وي. هرکله چې یحیٰ خان په ۱۹۶۸ء کښې ون یونټ مات کړو او صوبې ئې بحال کړې، نو زمونږ صوبه او د کوئټې طرف ئې د بلوچستان سره شامل کړل. دغه شان پاکستان د انګرېزانو د درېو ټکړو نه پښتون څلور ټکړې شو.

په جرمني کښې به په باغ کښې سره ناست وو او په دې به مو سوچ کولو چې دا څلور ټکړې به څهٔ رنګ یو وحدت شي؟ سل یونیم سل کاله د غلامۍ زمونږ پښتو ژبه کښې دومره بدلون راوستے دے چې د دې څلورو ټکړو پښتانهٔ د یو بل په پښتو ژبه نهٔ پوهېدل. چا به خپل تاریخ ثقافت او کلچر د هندوستان سره شریک ګڼهٔ او چا به د ایران سره. زمونږ دا محفلونه به د هفتې په ورځ د ګپ شپ نه شورو کېدل او د خپلو خپلو علاقو لطیفې او ټوقې ټقالې به مونږ د یو بل سره کولې او ازادې خنداګانې به وې. د هفتې په ورځ به یو دوه سټوډنټانې هم دغه باغ ته راتللې. دغه دواړو جینکو یو بل سره په مغلیاتو باندې کاغذونه کول. هرکله چې بلې هفتې له دغه باغ ته راغلې مونږ ته ئې ووئیل تاسو هره هفته دلته کښې دوه درې ګېنټې وخت ضائع کوے، خوشحالۍ او خنداګانې سره وکړے او بیا ځئ، د کوم ځاے یئ او دا څهٔ قسمه خلق یئ او کهٔ فقط د دې د پاره راځئ، ما ورته ووئیل تاسو په خپله وایئ چې مونږ ستاسو تر نظره څهٔ رنګ خلق ښکارو؟ هغوي وئیل جرمني کښې خو دومره وزګار خلق نشته او نهٔ دومره وخت د چاسره شته چې هغوي دې د تشې خندا د پاره راغونډېږي او درې څلور ګېنټې وخت دې ضائع کوي البته په یورپ کښې په مختلفو ملکونو کښې شاه کورنۍ دي، هغه خلقو ته حکومتونه هسې پېسې ورکوي، هغوي سره د داسې محفلونو او خنداګانو وخت وي او یا پاګلان وي چې وزګار هم وي او تنخواګانې حکومت ورکوي. زمونږ ذهن ته راغلل چې تاسو نه تپوس وکړو چې تاسو شهزادګان یئ او کهٔ پاګلان؟ ما هغوي ته ووئیل ټول پښتانهٔ یُو او هم شهزادګان یُو او هم پاګلان یُو. ځکه شهزادګان یو چې مونږ غلامي نهٔ پېژنو او د دغې تر مخه پاګلان هم یُو. هغوي وئیل د کوم ملک نه راغلي یئ؟ ما وئیل یو

قوم او یو خلق یُو خو انګرېزانو تقسیم کړي یُو څهٔ کسان د افغانستان په پاسپورټ دلته کښې راغلي دي او څهٔ د پاکستان. هغوي ووئیل تاسو خو د کردو په شان نهٔ ښکارے، کرد هم یو زورور قوم دے چې حکومتونو ته هر وخت مسئلې جوړوي نو هغوي په درې ځایه تقسیم شول ، چې نن څهٔ په عراق کښې پراتهٔ دي، څهٔ په ایران کښې پراتهٔ دي او ترکي کښې پراتهٔ دي او د یو ځاے کېدو امکان ئې نشته. ما ورته ووئیل مونږ د دوي نه هم زورور خلق یُو ځکه چې مونږه په څلورو ټکړو باندې تقسیم شوي یُو. ځکه مونږ دا فېصله وکړه چې اول دا څلور ټکړې یو ځاے کول پکار دي، چې مونږ یو قوم یُو، زمونږ یو تاریخ دے، یو کلچر، یو ثقافت دے، زمونږ تاریخي پُولې هم سره معلومې دي ځکه زمونږ د مبارزې اول قدم وحدت دے.

په جرمني کښې مې اول شل ورځې د لیاقت ملګري سره تېرې کړې. لیاقت په سوات کښې دګورتے وسېدونکے وهٔ. یوه پښه ئې لنډه ده ګوډ هم دے، ما به سیګرټ څښلو د سیګرټ ایره به کله یو پله پرېوته کله بل پله او هغهٔ به دغه ایرې صفا کولې. اکثر ایردان به ئې رامخې ته کړو وئیل به ئې دا ایره په دې کښې غورزوه، کله نه کله به د هغهٔ خبره زما د فکر نه ووتله د سیګرټ ایره به د ایره دان نه ښکته پرېوته. هغه به خپلې ډیوټۍ له سحر تلو او مازیګر به راتللو، په وېلډنګ کولو کښې ورته ښهٔ مهارت حاصل وه، د اوسپنې په کارخانه کښې وېلډر وهٔ. څلور ورځې پس ئې راته ووئیل دلته کښې ستا نوره مېلمستیا ترسره شوه. نن د دې کمرې صفائي وکړه او د خوراک څښاک انتظام هم ستا په غاړه دے. ما ترې نه تپوس وکړو چې غوښه به کوم ځاے کښې ملاوېږي؟ هغهٔ وئیل کچه غوښه خو ډېره لرې ملاوېږي او تهٔ په غوښه باندې نهٔ پوهېږې او خیال کوه هسې نه چرته د

سور غوښه راوړې. البته دلته په هر دوکان کښې پخه تیاره غوښه په ډبو کښې ملاوېږي. ما وئیل په جرمنۍ کښې د غوښې څۀ نامه ده؟ هغۀ ووئیل "فلش".

هر کله چې لیاقت ډیوټۍ له لاړو ما د کمرې صفائي وکړه، لوښي مې صفا کړل، د هغې نه پس غوښې پسې بازار ته لاړم، دوه ډبې مې د غوښې واخستل چې په ډبې د پاسه "غونډ فلش" لیکلي شوي وو. ټماټر، مصالحه وغېره مې ورته برابر کړل او پخه مې کړه. خپله حصه مې وخوړه د هغۀ حصه مې د هغۀ د پاره پرېښوده، چې هغه د ډیوټۍ نه واپس راغلو روټۍ مې ورته مخې ته کښېښوده چې هغۀ یوڅو نوړۍ تر ستوني تېرې کړې، هغۀ وئیل د څۀ غوښه دې راوړې ده؟ ما وئیل ډبې بند غوښه مې راوړې ده، د ډبې د پاسه "فلش" لیکلي شوي دي. هغۀ وئیل هغه ډبې ما ته ښکاره کړه، چې ډبې مې ورته وښودلو هغۀ وئیل په ډبې باندې خو "غونډ فلش" لیکلي شوي دي. په خپله دې هم د سپي غوښه وخوړه او په ما باندې دې هم د سپي غوښه وخوړه او سیګرټ ئې ولګولو. ما ورته ایره دان کښېښودلو لیاقت ایره دان د خپلې مې نه لرې کړو، هغۀ وئیل یوه ورځ دې د کمرې صفائي وکړه نو نن ایره دان زما مخې ته ږدې، البته د کمرې صفائي دې ډېره ښه کړې ده، د لوښو صفائي دې ښه نۀ ده کړې. ما وئیل لوښو وینځلو خو زما په لاس درد پېدا کړو. هغۀ وئیل دلته کښې د چا نوکر نۀ وي، هرڅوک خپل کار په خپله کوي او هر سړے د خپل کار د پاره خپل ذهن جوړوي او هغه کار ته لاس اچوي چې ترسره کولے ئې شي او د خان د پاره څۀ نوکري هم وګوره، ځکه چې دلته کښې وزګار سړي ته خلق ډېر په سپک نظر ګوري. دلته صرف یهودیان په پېسو باندې پېسې پېدا کوي، هغوي وزګار دي د جرمني خلق یهودیانو ته هم په سپک نظر ګوري.

دوي وائي موسیٰ علیه السلام خپل قوم ته وئیلي دي کۀ هرکله تاسو زما په خبرو باندې عمل وکړو نو ټوله دنیا به ستاسو خدمت کوي او تاسو به بادشاهي کوے او خلق به ستاسو لاس ته ناست وي. د هټلر په وخت کښې خو د یهودیانو نه د خلقو دومره نفرت وۀ چې ټول ئې وژل. زمونږ د وطن په خانانو کښې هم دا عادتونه موجود دي کۀ اوبۀ ئې خوا کښې پرتې وي بل چا ته وائي یا نوکر ته به وائي دا اوبۀ راکړه! په اوبو راخستلو ورته هم څان بد ښکاري. یهودیان د سرمایې نه سرمایه جوړوي چې نن د ټولې دنیا بېنکونه لکه ائي ایم ایف او ورلډ بېنک او داسې نورې ادارې چې تولو ملکونو له قرضې ورکوي، د یهودیانو ترلاسه دي، په کښې حصه دار هم دي. دغه شان ټوله دنیا ئې قرضدارې هم ده. زمونږه خانان د سرمایې په چل هم نۀ پوهېږي چې څۀ په پېسو باندې پېسې وګټو او د لاسو پښنو کار هم نۀ کوي، نو دا هم هغه بې غېرته یهودیان دي.

## په جرمني کښې د ولي خان سره ملاقات:

په دغه دوران کښې خبر شو چې ولي خان لندن ته راغلے او د ظهیر افریدي په ځاے کښې دېره دے. اول مې د ظهیر افریدي د ځاے د فون نمبر معلوم کړو او بیا مونږ د خپل لوري نه دوه کسان په دې غرض ور ولېږل چې د سوالونو دا فهرست یوسي. هرکله چې مونږ ورشو او د دې جوابونه راکړي.

مونږ چې د څۀ مقصد د پاره سوالونه لیکلي وو او هغۀ د هغې کوم جوابونه راکړل، په هغې ئې بې حده مایوسه کړو. زمونږ د هغې ځاے شپېتۀ پښتانۀ ملګري د نیمې نه زیات زمونږ نه خفه شو. د پښتونستان په باره کښې د یو سوال په جواب کښې ولي خان ووئیل:

بابا ناجوړه شوے وۀ چې د تپوس د پاره ورغلو په یو دعوت کښې مېوندوال چې د افغانستان وزیراعظم وۀ هغۀ وئیل چې د پښتونستان د جوړولو به څۀ کېږي؟ ما جواب ورکړو چې پښتونستان خو ستاسو خبره ده، البته ما په دې پوه کړه چې پښتونستان تاسو ترکومه پورې ورسولو ځکه چې زمونږه پارټي دا خبره کوي نۀ زۀ دا خبره کوم، نۀ زما پلار دا خبره کوي. کۀ چرې تاسو د پښتنو نه په دې خبره ځان خلاصول غواړئ او پښتنو ته د یوې حصې په نظر کښې نه بلکې د پاکستان په نظر ګورئ او دا ټکړه د ځان نه بېله ګڼئ، دغه خواهش خو ستاسو د پاره انګرېزانو پخوا پوره کړے دے. هغوي ترې نه مخکښې د هندوستان یوه ټکړه بېله کړه اوس هغه ځاے د پاکستان سره په تقسیم کښې راغے په تشه نامه باندې اوس څۀ د پاره جنګونه سره وکړو. مخکښې د انګرېزانو بچي وو، هغوي خپله نامه ورکړه اوس د پاکستان بچي شو، نو د هغوي خوښه ده کۀ زوړ نوم ورکوي او کۀ بله نامه ورله خوښوي او دوباره ئې واضحه کړه چې نۀ زما پلار د ازاد پښتونستان خبره کړې ده او نۀ زۀ دا خبره کوم.

مونږ د کوئټې د علاقې په بلوچستان کښې د شاملېدو تپوس ترې نه وکړو، چې په ۱۹۷۳ء کښې په ائین کښې د بلوچو او پښتنو دستخطونه دي چې بلوچستان د بلوچو په حېثیت ومنلے شو. دا خو دې د هغې ځاے د پښتنو حېثیت ختم کړلو، هغۀ ووئیل پاکستان مات شوے وۀ یو لاکھ فوج په هندوستان کښې بندي وۀ، زمونږ د دې خبرو کولو سره مزید د پاکستان د ماتېدو خطره پېدا کېده، ما نۀ غوښتل چې پاکستان دې مات شي. البته د ۱۹۷۳ء په ائین کښې بتهو زما سره منلي دي چې لس کاله پس به صوبائي خودمختاري ورکوو.

جوابونه ئې لنډ لنډ د متلونو په شکل کښې ورکړل، د برګې سپي او سپي مثال ئې ورکولو، د دې د پاره چې مونږه ته وائي چې تاسو مخکښې ځان خلاص کړئ، بیا به نورې خبرې سره کوو. زمونږه دا خیال وۀ چې ورته ووایو چې تۀ بیا زمونږه د څۀ مشر یې؟ خو مشر وۀ مونږ دا خبره مناسب ونۀ ګڼله او د ډېرې غصې نه مو ترې نور تپوسونه ونۀ کړل. هغۀ باربار وئیل د بل چا کۀ څۀ سوال وي؟ ټولو ملګرو په ما باندې سفارښتنه وکړه چې باقي تپوسونه ترې نه تۀ وکړه، ما د موضوع د بدلولو د پاره ترې نه ذاتي تپوسونه وکړل، چې د باچا خان او خدائي خدمتګارو نامې ترې نه لرې کړې، د پښتنو په سیاست کښې تا څۀ کړي دي؟

ولي خان وئیل: د ۱۹۷۰ء په الیکشن کښې د چارسدې نه کامیاب شوم، په قومي اسمبلۍ کښې د حزب اختلاف مشر وټاکلے شوم.

ما وئیل په چارسده کښې خدائي خدمتګار ډېر زیات دي او تۀ د باچا خان زوے یې ځکه خلقو ووټ در کړے دے. دوباره مې ووئیل تا د پښتنو د پاره ذاتي څۀ کړي دي؟

هغۀ ووئیل تۀ د کوم ځاے یې؟ ما وئیل د چارسدې یم، هغۀ ووئیل زۀ پوه شوم چې دا رنګ تپوسونه اکثر د چارسدې خلق کوي او دا خبره ئې د سپي په کوتې ختمه کړه.

جرمني په ټوله دنیا واحد داسې ملک دے چې په خپل قوم او قومیت فخر کوي. انګرېزان دوي ته جرمنیان وائي، لاطیني امریکې والا فارسي وان او فرانسیسیان ورته المان وائي او دوي خپل ځان ته "دوچ" او خپلې ژبې ته "دوچي" وائي. تعلیم په کښې تقریباً سل فیصده دے. زۀ چې هلته کښې موجود وم نو انګرېزي ژبه ضروري وه کۀ چا جرمني انګرېزي ژبه زده کړې هم وه کۀ چا به پرې سوال په انګرېزۍ ژبه

کښېږ وکړو نوجواب به ئې په خپله جرمنی ژبه کښې ورکولو چې چا به ورته وئیل انګرېزي ژبه درځي؟ هغهٔ به وئیل بالکل انګرېزي راځي خو دا به ئې هم وئیل چې څوک زمونږ ملک ته راشي نو زمونږ ژبه به زده کوي. مونږ سره به زمونږ په ژبه کښې خبرې کوي. مونږ چې د هغوي تر ملک لاړو نو د هغوي ژبه به زده کوو، د هغوي په ژبه کښې به د هغوي سره خبرې کوو نن څکه ټوله دنیا جرمنه ته ښهٔ قوم پرست وائي.

د دوو عالمي جنګونو شورو د دوي نه شوې وه، چې اټلي او جاپان ورسره بیا هم ملګرتیا کړې وه. ۱۹۳۵ء کښې هټلر خپل قوم ته د خطاب کولو په دوران کښې ووئیل چې د وړومبي جنګ عظیم فېصلې واضحه نهٔ دي، د وسلې بندېز یو طرفیزے پکار نهٔ دے، د یو طرفیزي بندېز سره امن راتلے نهٔ شي، کهٔ چرې د دوي دا مطلب وي چې په ټوله دنیا کښې دې یو شان امن راشي بیا پکار دي چې په ټوله دنیا کښې په ټولو ملکونو باندې یو شان وسله بنده شي او هغه مسئلې چې د ملکونو تر مېنځه پرتې دي چې ترڅو پورې حل شوې نهٔ وي نو امن نهٔ شي راتلے. لکه څهٔ رنګ چې زمونږ د فرانس سره په سار باندې کومه مسئله وه، په مونږ باندې د وسلو بندولو سره، د وسلو د کارخانو بندولو سره یونیم لاکهه جرمنیان بې روزګاره شو. د امن په معاهده کښې دا هم لیکلي شوي وو چې د امن د معاهدې ترمخه چې د کومو ملکونو نقصان شوے دے هغه به په شریکه ترسره کوو خو دا څوک وائي چې دا څوک وو. آیا د دې معاهدې د الفاظو نه به خپل خپل مطلب وباسي او کهٔ دا ئې مطلب وهٔ چې ټول ملکونه به امریکه ښه کوي، بیا خو پکار دي چې دا تپوس د ولسن نه وکړو چې د دې معاهدې کولو څهٔ مطلب وهٔ؟ کهٔ په معاهده باندې فقط دستخطونه کول وي زهٔ به پرې سل دستخطونه وکړم خو چې په عمل کښې ماته

ثابته شي چې دا فیصلې زمونږه ملک ته زمونږه قوم ته نقصان رسوي نو زما د زړهٔ فیصله به په هغه وخت کښې کېږي.

د جنګ کولو په دوران کښې څلور پنځهٔ کاله مخکښې خپل فوج ته په خپل تقریر کښې وائي چې د ایشیا او د افریقې ټول ملکونه د برطانیې او د فرانس غلامان دي، مونږه دا جنګ یواځې د خپلې ازادۍ د پاره نهٔ کوو چې ګنې مونږ ازاد شُو، چې دا جنګ وګټو نو دې خلقو ته به ثابته شي بلکې ټولې دنیا ته به دا ثابته شي چې رښتونے امن په دنیا کښې څهٔ رنګ راځي؟ او زهٔ خپله هم دا سوچ لرم کهٔ دا جنګ چرې جرمني ګټلے وے، نو بیا به څهٔ وو؟

په ستمبر ۱۹۶۱ء کښې د امریکې صدر کنیډي د روس د کامیاب ایټم بم جوړولو او دماکې او د برلن ترمېنځه مسئلو باندې خبرې اترې وکړې. په دغه وخت کښې د اقوام متحده سېکرټري د جهاز په یوه حادثه کښې په حق رسېدلے وهٔ، دهٔ ووئیل مونږ یواځې دې د پاره راغونډ شوي نهٔ یُو چې د یو بنهٔ سړي په مرګ باندې غمرازي وکړو بلکې په دې به هم سره خبرې اترې وکړو چې اقوام متحده به ژوندے پاتې شي او کهٔ نه؟ دا قسمه اداره مخکښې هم مونږ د امن راوستو د پاره جوړه کړې وه چې د دویم جنګ عظیم سره هغه اداره هم ختمه شوه، نن بیا د جنګ هغه فضا د بمونو د ټسټ کولو په شکل کښې دوباره جوړېږي. د دې ټسټونو کولو سره به فضا دومره خرابه شي چې، د هغې ځائے د خواوشا وسېدونکو ته به ژوند تېرولو کښې مشکلات وي. بل خوا به یوه مقابله د ګاونډي ملکونو سره پېدا کړي. کهٔ نن دا وسله د دنیا د دوو درېو ملکونو سره ده، بیا به هر یو ملک دا کوشش کوي چې دا وسله او دا ټېکنالوژي دې مونږ هم حاصله کړو. کهٔ هرکله دا نیو کلیئر جنګ شورو شو او ایټم بمونه او هائیډروجن بمونه

د دوارو اړخونو نه چلېږي نو يو روغ انسان به پاتې نهٔ شي. اَيا اقوام متحده دا طاقت لرلے شي چې په دغه ملکونو باندې دا جنګ بند کړي، ځکه چې دا اداره خو مونږ هم د دې مقصد د پاره جوړه کړې وه چې په دنيا کښې دې نور جنګونه ونهٔ شي. د دې طاقت خو مونږ هر يو ملک له پکار دي چې د دې ممبر وي چې د خپل فوج يوه حصه اقوام متحده ته حواله کړي، چې په کوم ځاے کښې د جنګ حالات جوړېږي د دې شريک فوج په امداد باندې به په هغې بندېز لګوي. خو جنګ په وسله کېږي پکار دي چې کوم ملکونه وسله جوړوي، هغوي په خپلو کښې راغونډ شي او واړه سره معاهده وکړي چې دا ايټمي وسله دې اول کمه کړي او بيا ئې بيخي ختمه کړي او دغه شان د دې وسلو جوړولو چل نورو ملکونو ته نهٔ ښائي او کهٔ د دې باوجود د يو ملک سره دا وسله وي نو د هغوي نه دې په زور اخلي. دا داسې وسلې دي چې انسانيت د سره ختموي او دا جنګ بيا هيڅوک ودرولے نهٔ شي، جنګ په وسله کېږي چې وسله نهٔ وي نو جنګ به په څهٔ کېږي؟ بيا چې د ملکونو ترمېنځه کومې تنازعې دي هغه به د اقوام متحده په طاقت باندې په اسانه ختمېږي. زهٔ د روس مشرانو ته اپيل کوم چې راځئ مونږ او تاسو په خپلو کښې دا رنګ معاهده وکړو چې اول دا نوې تجربې بندې کړو، چې زمونږ سره او تاسو سره څومره وسله ده، په مزه مزه هغه کمه کړو. هرکله چې زمونږ او ستاسو په يو بل باندې اعتبار پېدا شي بيا به ټوله وسله بيخي ختمه کړو. دغه نيوکليئر ټېکنالوژي چې په کوم کوم ځاے کښې د انسان د فائدې د پاره استعمالېدے شي فقط هم هغه کار ترې نه واخلو. دا د وېرې او خوف خبره نهٔ ده کهٔ چرې دا رنګ ونهٔ کړو نو ستاسو او زمونږ بچي به ژوند په خوف او وېره کښې تېروي.

په ټوله دنیا کښې د هر لوري نه دا اوازونه دي چې دا وسلې دې ختمې شي او په ټوله دنیا کښې دې امن راشي، سپوا د امریکې د مشرانو نه چې هغوي امن د ټیکنالوژۍ په طاقت باندې راولي او هر وخت په خوف او ویره کښې هم وي. هم د دغه جنګ په باره کښې د امریکې یو لیکوال دومس فریډمېن ورته دریم جنګ عظیم وائي.
کاش! چې د کنیډي دا خبره دوي منلے وے. زمونږ رسول الله (ص) د جنګ نه پس د کافرانو سره یوه معاهده کړې وه چې په اسلامي تاریخ کښې په صلح حدیبیه باندې مشهوره ده. د امن راوستلو د خاطره ئې ټول شرطونه ومنل تر دې حده پورې چې د معاهدې کولو په وخت د نومو لیکلو په وخت کښې نامه محمد رسول الله لیکلې شوې وه، کافرانو پرې اواز وکړو چې دې خو مونږ د رسول په حېث نۀ منو، د دې په ځاے دې محمد بن عبدالله ولیکي. هغوي ترې نه دغه نامه لرې کړه. چونکې دا معاهده حضرت علي (رض) لیکلې وه هغۀ وئیل زۀ خو رسول الله منم ځکه په دې نامه باندې قلم راښکلې نۀ شم، په دغه وخت کښې رسول د خداے ووئیل ماته خپله نامه لیکلې وښایئ زۀ به پرې خپله کرښه راکاږم یعني خپله ئې پرې کرښه راښکله، چې کافران لاړل، اصحابو کرامو ترې نه په ډېر خفګان پوښتنه وکړه چې مونږ خو په دوي دومره کمزوري نۀ یُو چې تاسو د دوي ټول شرطونه ومنل؟ زمونږ په دې کښې څۀ فائده ده؟ هغوي (رسول الله ص) ورته وفرمائیل په امن کښې ۀ د خداے پاک پېغام تر خلقو رسولے شم او په جنګ کښې د خداے پاک پېغام تر خلقو رسېدے نۀ شي، چې جنګ نۀ وي مونږ او تاسو به په شریکه د خداے پاک حکمونه تر خلقو ورسوو. عنقریب ده چې زما د دې شرطونو منلو فائدې ستاسو ترمخه راشي. په دې کښې د کافرانو د لوري نه په دوي کښې قتل وشولو چې په هغې باندې هغه

معاهده ماته شوه، کافرانو ډېر عذرونه وړاندې کړل چې دا قتل زمونږ نه په غلطۍ کښې شوے دے، بیا هیڅوک د کافرانو عذرونه نۀ منل. هرکله چې تر مدینې روان شول، د جنګ په ځاے ورته د مدینې خلق راووتل او غارې ئې ورکولې، یو یو مشر ئې راتللو او کلمه ئې وئیله. په دنیا کښې چې څومره نظریې خورې شوې دي نو د امن په ذریعه خورې شوې دي. نن د خوف او ویرې په نامه باندې چې کوم جنګ روان دے، د دنیا د پوهانو نه ئې خپلې نظریې هېرې کړې دي، په جنګ کښې پوه او ناپوه دواړه په یو سر باندې حسابېږي، د نظریې په ځاے باندې د هر سړي نه دا تپوس کېږي چې د کوم لورې نه ولاړ یې؟

د دنیا ازاد ملکونه د خپل ملک فېصلې په ګټه او په تاوان باندې کوي. د پاکستان ټولې فېصلې د برطانیې او امریکې په ایما باندې شوې دي. زمونږ ټول مشران تر اوسه پورې د دغه خلقو ذهني غلامان دي. په پښتنو کښې حجره یوه داسې اداره ده چې په دې کښې د ناستو مشرانو، کشرانو یوه مسلسل زدکړه جاري وي. تاریخ، ثقافت، پښتو او پښتونولي د متلونو په ذریعه زده کوي، چې هغه قیصه خو لاړه شي هېره شي خو متلونه د چانه نۀ هېرېږي. هر سړے د خپل پلار نیکۀ د تورزنۍ قیصې کوي او یا د خپلو علاقو د زوررو خلقو او بدمعاشانو خبرې اترې کوي. د بدمعاشانو په لاس قتلونه، اغوا برائے تاوان، ځنې وخت په ښۀ انداز کښې راولې. دغه شان د اغوا والا په سر باندې پېسې غوښتل دا هم وائي چې د فلانې سره پېسې دي ځکه ترې نه پېسې غواړم. بله دا چې ډېر مال څوک پېدا کوي نو عموماً ډېر مال بې غېرته سړے پېدا کوي. دا هم وائي چې په غریبانانو کښې په سلو کسانو کښې یو کس بې غېرته وي او په خانانو کښې په سلو کسانو کښې یو کس غېرتي وي. هرکله چې د یو غریب د

لاسه د بې غیرتۍ کار وشي هغه وائي غریب خو خدا ے کړے دله چا کړے؟

د دنیا په ټولو ملکونو باندې د ټولو نه غټه بدمعاشي امریکه ده او زمونږ په ملکونو کښې اکثریت د غریبانانو دے هم دغه د پښتو په الفاظو کښې ورته وایو. افغانستان هم زمونږ ملک دے بلکې د دنیا غریب ترین ملک دے. د طالبانو دې چار ښۀ وي چې څۀ لږ ډېر مخ ئې په لاړو کړو.

په۱۹۷۷ءکښې د کمیونستانوملکونو په کیوبا کښې یو کانګرس وۀ، د ټولې دنیا د ټولو ملکونو نه په کښې په زرګونو سټوډنټان هم راغلي وو. ډېره لویه علاقه ئې د انتظام د پاره ورکړې وه، ځاے په ځاے په کښې لاوډسپیکرې لګېدلے وے او ورسره د خوراک څښاک انتظام هم موجود وۀ او د هغې په مېنځ کښې ئې یو لوے سټېج جوړ کړے وۀ، چې هغې باندې په وار وار د مختلفو ملکونو سټوډنټانو د خپلو علاقو په باره کښې تقریرونه کول. ټولو ملګرو وئیل د افغانستان او پاکستان مسئلې یو شان دي، زمونږه د لوري نه او د خپل لوري نه تۀ تقریر وکړه، د شپې درې څلور ګینټې د پاکستان مسئلې او په افغانستان کښې پېښې مسئلې مونږ په کاغذ باندې ولیکلې چې د هغې نه دولس صفحې جوړې شوې. هغوي وئیل په انګرېزۍ کښې ستا لیکل ښۀ دي، اول دا په انګرېزۍ ژبه کښې ترجمه کړه او په خپله ئې په تقریر کښې وړاندې کړه. په دوېمه ورځ په غرمه کښې زما نمبر راغے چې په سټېج باندې په کومه نامه باندې اواز کېدلو ورپسې ئې د دریو کسانو نامې هم اخستې چې دوي دې تیار اوسي چې په دې پسې د فلاني ملک د فلاني نمبر دے او دغه کسان دې سټېج ته رانزدې شي، زما نامه ئې په دریم نمبر کښې واخسته.

په دغه وخت کښې مونږ په یو هوټل کښې چائې څښله. ملګرو وئیل ځان ورنږدې کړه ځکه چې د دوو کسانو نه وروستو ستا نمبر دے. نور ملګري په هوټل کښې پاتې شول البته یو ملګرے زما سره لاړو، دوه نمبره مخکښې د چیلي یوه جینۍ ستوډنټه وه، هغه په خپل نمبر باندې راپاڅېده، هغې وئیل ما له خو ډېرې خبرې نۀ راځي او نۀ په نظریو باندې پوهېږم. ماته دا هم پته نۀ لګي چې زۀ کمیونسټه یم کۀ کېپټلسټه یم؟ خو خپل ضرورت دلته کښې راوستلې یم، د خپل ملک او قوم ضرورت تر دې ځایه رارسولې یم. زۀ د چیلي یو وړوکي ملک سره تعلق ساتم، زمونږ په ملک کښې یوڅو کاله مخکښې په ښه جمهوري طریقه باندې الېکشن وشو چې د عوامو د اکثریت په حواله د سوشلسټ پارټۍ یو مشر النډے وټاکلے شو، چې بې انتها ښۀ سړے وۀ، د عوامو ډېر خوښ وۀ او ملک ئې هم د ترقۍ په لاره باندې روان کړے وۀ خو امریکې یو جرنېل راوستلو او النډے ئې قتل کړو چې جرنېل په فینوسیشټ باندې سوشلستان هم مړۀ کړل او څۀ ئې په جېلونو کښې بندي کړل. د فوج په زور باندې ناست دے چې امریکه ورته څۀ وائي هم هغسې کوي، زمونږ د چیلي ځوانانو سټوډنټانو یوه انډر ګراونډ پارټي جوړه کړه چې تر سټوډنټانو محدود وه. یو خبره دلته کښې سره کوو هغه دا چې د دې جرنېل نه مونږه په څۀ رنګ نجات ومومو او کوم ملک او د هغې عوام به زمونږ سره په دې کښې ملګرتیا وکړي. دا د امریکې سړے دے، په دې خبره باندې مونږ ټول متفق یُو چې بس روسیان مونږ د دې غمه خلاصولے شي، روسیان کمیونسټ دي او د هغوي ملګري هم ټول کمیونسټ دي، زۀ دوباره وایم چې زۀ کمیونسټه نۀ یم خو د خپل ملک او قوم خېر غواړم او تاسو

ټولو حاضرینو ته اپیل کوم چې زمونږ سره امداد وکړئ او د دې امریکني جرنېل نه مونږه خلاص کړئ.

هغه جینۍ د سټېج نه راکوزه شوه ورپسې د فرانس د یو سټوډنټ وار وۀ، ورپسې زما وار راغے، ما هغې خپل افغان ملګري ته تر غوږه کړل چې د دې جینۍ دا خبرې خو زما ډېرې خوښې شوې ځکه چې لږې خبرې ئې وکړې خو د مقصد نه ډکې خبرې ئې وکړې. زما هم دا خیال دے چې په دغه رنګ خبرې زۀ هم وکړم، دولس دیارلس صفحې چې مونږ لیکلې دي دا ټکړې پښتانۀ چې دلته کښې ضیاالحق او هلته کښې داود خان دلته کښې دا مسئلې او هلته کښې هغه مسئلې، یوه ګېنټه وخت په دې څۀ د پاره ضائع کوو؟ هغۀ وئیل دا خو ټولو ملګرو شریک لیکلے تقریر دے کۀ دغه لیکلے تقریر چرې ونۀ کړې نو هغوي به خفه شي. خو اخره کښې دواړه ملګري په دې باندې راضي شو چې اول به وایم چې په پاکستان کښې او په افغانستان کښې وسېدونکو پښتنو سټوډنټانو په شریکه خپلې مسئلې راغونډې کړې دي او په دې کاغذنو باندې تحریر شوي دي. کۀ ستاسو کتابي شکل ورکولو ته خیال وي، نو په دې کاغذونو کښې د دغه ټولو مسئلو تاریخ پروت دے او دا به ډېره ښه وي چې کتابي شکل ورکړي، ولې چې دا ډېرې اوږدې مسئلې دي.

ستاسو وخت ضائع کول نۀ غواړم البته یوڅو غټې او اهمې خبرې به درته زباني وکړم بیا مې د چیلي د هغې جینۍ غوندې تقریر وکړو چې اول خو انګرېزانو زمونږ ملک په درېو ټکړو باندې تقسیم کړو او نن د امریکې په خوښه زمونږ سیاسي لیډران په جېلونو کښې پراتۀ دي او فوجي جرنېلانو ته ئې زمونږ حکومت سپارلے دے. زۀ هم کمیونسټ نۀ یم، خو د ذهني غلامۍ نه د انګرېزانو او امریکنیانو

CS CamScanner

مونږ هم روس خلاصولے شي، هم د هغې ترمخه ستاسو په محفل کښې ناست يُو. زمونږ سياسي ليډرانو هسې هم په بوسو کښې اوبۀ بوتلې دي لکه رحمت شاه سائل چې وائي:

مرم د تندې مرم خو د ژوندون اوبۀ ترې څښې نۀ شم
دا جام د مودو مودو نسکور دے په دې خاوره کښې

زما دا خيال وۀ چې زما ملګري به زما نه په دې تقرير کولو باندې خفه وي، خو په ځاے د دې هغوي زيات خوشحاله شو او دا ئې ووئيل چې تا په خپل تقرير کښې زمونږه عکاسي واضحه کړې ده او د مقصد نه ډک تقرير دې وکړو. د جرمني نه به مونږ په پښتو ژبه کښې دوه رسالې چاپ کولے يوه هفته واره "سپرغۍ" او بله به مياشتنۍ وه د "ستوري" په نامه باندې يادېده. مونږ تولو ملګرو په خپلو کښې دا فېصله کړې وه چې هر يو ملګرے به خپله خپله قيصه په دې کښې ليکي. ما وئيل زۀ په پښتو ژبه کښې ليکل کولے نۀ شم هغوي حېران شول چې ټولې خبرې د پښتو پښتونولۍ پښتو ژبه کښې کوې او ليکل نۀ درځي! هم هغه ملګرو زما سره امداد وکړو د پښتو ژبې په ليکلو، لوستلو ئې پوهه کړم. د فارسۍ يو ټائپ مونږه واخستو چې د هغې ترمخه راته ليکل نور هم اسان شو.

يوه ورځې په رېل ګاډي کښې ناوخته راتلم ټکټ مې هم نۀ وۀ اخستے چې بې ټکټه ونيولے شوم، نو سره د پاسپورټ ټول کاغذات ئې زما نه ترلاسه کړل او دوه ورځې پس ئې تاريخ راکړلو چې تر فلاني ځايه راشه. ما د خپل ځاے خپلو ملګرو ته خپله ټوله قيصه تېره کړه، هغوي تر وکيل بوتلم، په فونکي نامه باندې مشهور وۀ. د ټولو پښتنو کېسو نه به هم دۀ کول.

وکیل: ایا په بینک کښې ستا څۀ رقم شته؟ ما ورته ووې زۀ فقط پنځۀ مارکه لرم. بینک والاوائي کۀ دا چرې وباسې اکاونټ دې ختمیږي.
وکیل: دلته کښې دې د نوکرۍ د پاره چرته درخواستونه ورکړي دي؟
زۀ: درې ځایه کښې مې درخواستونه ورکړي دي.
وکیل: د هغې ثبوتونه شته دے؟
زۀ: دا ثبوتونه واخله.
وکیل: ایا په تاپسې د نوکرۍ د پاره تر اوسه پورې لیټر راغلے دے؟
زۀ: تراوسه پورې راغلے نۀ دے.
وکیل: د سوالونو جوابونو د پاره ئې راغوښتلے وے یعني شوز لیپ والادا هغه اداره ده چې بې روزګارو له هفته په هفته خېرات ورکوي.
زۀ: چې تر جرمني راغلم دوه میاشتې پس دغه ادارې ته ورغلے یم، درخواست مې هم ورکړے وۀ.
وکیل: په تا ئې څۀ سوالونه کړي وو او تا څۀ رنګ جوابونه ورکړي وو؟ ما ته ووایه چې د ځان سره ئې ولیکم.
زۀ: دغه ادارې په ما باندې سوال وکړو چې تا دوه میاشتې مخکښې درخواست ولې نۀ ورکوۀ. ما د کلي نه ځان سره رقم راوړے وۀ چې هغه ختم شو ځکه مې دوه میاشتې پس درخواست ورکړلو چې زما د پاره د نوکرۍ بندوبست هم وکړئ.

په دغه دفتر کښې یوه ښځه ناسته وه هغې ووئیل دا دوه میاشتې تا څۀ رنګ ګوزاره اختیار کړې وه؟ هم هغسې ګوزاره اوس هم کوه او یوه بله اداره ئې راته ترمخه کړه چې هلته کښې د نوکرۍ د پاره ورشه.
وکیل: دا خو دې ډېر ښۀ کېس دے، دا د هر حکومت فرض دي چې د هر سړي د پاره د روزګار بندوبست وکړي او یا پیسې ورکړي. زۀ خو

ستا دا کيس په دې بنياد باندې چلوم چې ايا د چا سره پيسې نه وي نو هغه ګنهګار دے او ځپيسې هم نه ورکوي، د دې نه علاوه پاسپورټ او کاغذونه ترې نه هم تاسو تراشه کړي دي.

ما سره دوه ملګرې پښتانه نور هم د ترجمان په حېث تللي وو چې وکيل ترې نه سوال وکړو نو هغوي سره وخاندل. ما د هغوي نه تپوس وکړو چې وکيل صاحب څه وائي؟ هغوي ووئيل وکيل صاحب وائي دا زما ذاتي سوال دے. خو دوي بيا هم يو تر بله کتل وئيل ئې زموږ هم دا سوال ذهن ته راغلو چې دلته کښې تا دوه مياشتې په خپلو پيسو باندې تيرې کړې نو بيا دا درې مياشتې څه رنګ تا بې پيسو تيرې کړې؟

ما وئيل په فرانکفورټ کښې پنځه پنځوس ملګري پښتانه نور هم اوسي او د هغه ټولو ملګرو د ټيلي فون نمبرې ما له په يادو راځي، په دې کښې وويشت کسان سټوډنټان دي او باقي مزدوران دي ، ما ته دا هم علم دے چې هغوي په کوم کوم ځاے کښې مزدوري کوي او د څه وخت نه د څه وخت پورې په ډيوټۍ وي؟ او د ډيوټۍ نه پس په څومره وخت کښې تر کوره پورې رسي؟ هر کله چې تر کوره راشي نو د ځان د پاره د خوراک څښاک انتظام کوي، زه چې څه وخت اوږے شم نو خپله ډائري وګورم چې کوم يو ملګرے به تر کوره راغلے وي؟ چې هلته ورشم نو هغه بې انتها خوشحاله شي او دا هم وائي قسمت دې ښه دے په تياره د پاسه راغلے چې خوراک څښاک سره وکړو بيا زما د پاره د سيګرټو ډبے هم راواخلي، چې ترڅو پورې ناست يُو ګپ شپ سره لګوو. دغسې دوه مياشتې پس زما د يو ملګري سره يوه ورځ راځي. کۀ چرې تاسو دې وکيل ته د دې خبرو ترجمه وکړه چې په ټوله دنيا کښې يو پښتون قوم دے چې د مېلمه په راتلو او

مېلمستیا باندې خوشحالېږي او زحمت ئې نۀ ګڼي رحمت ئې ګڼي او د مېلمه د راتلو احسان هم مني او هر چاته په خوشحالۍ او فخر وائي چې فلاني ماله دومره وخت راکړو، زما سره ئې شپه تېره کړه.

هرکله چې یوه میاشت تر مېنځه تېره شوه وکیل مبارکي راکړه، وئیل ئې هغه کېس دې وګټلو، مبارک شه. ټول کارډونه ئې راکړل او وئیل ئې په ټول جرمني کښې مفت ګرځه او کۀ د دې د پاسه دې څوک نیسي زما دا کارډ ورته ښایه، ما په عدالت کښې ثابته کړه چې د چاسره پېسې نۀ وي هغه ګنهګار نۀ دے یعني دا ګناه نۀ ده چې ترکومې پورې ئې ستا د پاره د روزګار بندوبست کړے نۀ وي نو تر هغې پورې مفت ګرځه. د رخصت راکولو په وخت ئې ووئیل زما د وکالت فیس؟

ما ورته ووئیل چې تاسو خو دا ثابته کړه چې د چاسره پېسې نۀ وي نو دا ګناه نۀ ده. زما هغې دوو ملګرو ورته ووئیل مونږ اول ستا د پاره د مېلمستیا بندوبست کوو هغه ملګري به چنده وکړي تاسو ته به خپل فیس ترلاسه شي.

هرکله چې د مېلمستیا د پاره وکیل صاحب تشریف راوړلو. د مېلمستیا نه پس د فیس اخستلو نه هغۀ انکار وکړلو او دا ئې هم ووئیل تاسو پښتانۀ ډېر ښۀ خلق ماته ښکاره شوے څکه چې په مخامخ سپینه وېنا کوے او ماته ئې ووئیل چې هرکله تاته نوکري ملاؤ شي بیابه ستا نه فیس واخلم.

د هغې نه پس یو ایراني یهودي سره مې د قالینونو په دوکان کښې څلور میاشتې کار وکړو، خو تنخوا ئې ډېره کمه وه، بچت مې په کښې نۀ شو کولے چې د وکیل د پاره په کښې فیس وباسم، زما لیاقت ملګري ډېره ښه مزدوري کوله. بچت ئې ډېر کولو، هغۀ خپل بچت د

دې د پاره جمع کړې وه چې زه به په کلي کښې واده کوم او دلته کښې به د ځان سره ښځه راولم. د هغه نه مې د وکیل د فیس د پاره پیسې واخستې او لیکلے خط مې ورکړو چې ځې نو زمونږ تر ځایه ورشه د دې خط په ښودلو به تاته خپل رقم ترلاسه شي.

هرکله چې وکیل له د فیس ورکولو په نیت باندې لاړم، په هغه وخت کښې وکیل ووئیل، نوکري درته په کوم ځاے کښې ملاو شوه؟ ما ورله د ایراني یهودي د دوکان پته ورکړه هغه وئیل دا خو یهودیان دي، دوي خو د مزدور نه دولس دیارلس ګېنټې کار اخلي او تنخوا ډېره کمه ورکوي تا په دغه تنخوا کښې بچت څنګه وکړو؟ دغه روزګار د غلا هم دے او ما له په کښې لا فیس هم راکوے، البته زه به ستا د پاره سرکاري کار وګورم چې قانوني د اتو ګېنټو ډیوټي وي او تنخوا ئې هم ډېره وي او نصیحت ئې راته وکړو چې د یهودیانو سره روزګار مه کوه ځکه چې دوي ډېر غرور کوونکي خلق دي، دوي د موسیٰ علیه السلام د خبرو نه غلطه فائده اخستې ده، د هغه په حواله باندې وائي زما خبرې د خداے خبرې دي که هرکله زما په دې خبرو باندې تاسو عمل وکړو نو دا دنیا به هم ستاسو ښه شي او هغه دنیا هم، او په دې دنیا کښې به بادشاهي هم ستاسو ترلاسه وي او ټوله دنیا به هم ستاسو لاس ته ناسته وي او ستاسو خدمت به کوي. نو دا ټول مالدار خلق دي، د پېسو نه پېسې جوړوي او اکثر په خلقو باندې د غلا کارونه کوي چې کار ترې نه زیات اخلي او تنخوا کمه ورکوي او دلته کښې جرمنیان وزګار سړي ته په سپک نظر ګوري او د بې روزګارو خلقو مزغو ته د شېطان جاله وائي. په روزګار کښې ښه او خراب نه وي او چې کوم یو سړے مزدور ته په سپک نظر ګوري هغه په خپله سپک وي. جرمنیان او د هغوي عادتونه ډېر ښه دي بې غروره خلق دي، وائي چې په خپل

لاس باندې څوک ګټه وکړي هغه ګټه په هغه سړي کښې خود اعتمادي پيدا کړي او جرمنيان په خپل قوم باندې مئين خلق دي، چې څوک په پيسو باندې پيسې پيدا کوي او خپله روزګار نۀ کوي، د هغوي نه نفرت کوي.

يو کتاب ئې راکړلو چې په جرمنۍ ژبه کښې ليکلے شوے وۀ نامه ئې وه "د سړک د پاسه حکومت" په هغه کتاب کښې دا ليک وو چې د هندوستان نه شمال مغرب ته تر افغانستانه پورې چې تر مېنځه ئې قبائيلي علاقې راځي په هغې کښې انګرېزانو دا خبره منلې وه چې زمونږ حکومت د سړک د پاسه دے، بلکې قبائيلو خو ترې نه ليکلې اخستلې وو چې د سړک د پاسه څۀ کېږي د هغې سره به ستاسو تعلق وي او کۀ د سړک نه اخوا او يا دې خوا څۀ وشو د هغې به زمونږ سره تعلق وي بلکې په دغه مسئلو کښې ستاسو ګوتې وهل نۀ منو. خاص کر دغه کتاب ئې د دې څيز د ښودلو د پاره راکړلو چې ماته دا علم دے چې سل يونيم سل کاله حکومت تاسو د انګرېزانو سره په جنګونو کښې تېر کړے دے او بيا ئې د هغې جنګ په باره کښې ذکر هم وکړو په کوم کښې چې ديارلس زره فوج يو په يو وژلے شوے وۀ ډاکټر برډن ئې د حال وئيلو د پاره ژوندے ساتلے وۀ چې دې به خپلو مشرانو ته د ليدلو سترګو حالات بيانوي.

ما ورته ووئيل په جرمنۍ ژبه باندې خو زۀ ډېر نۀ پوهېږم البته په انګرېزۍ ژبه کښې کۀ درسره داسې کتاب وي هغه راته راکړه. يو بل په انګرېزۍ ژبه کښې ليکلے شوے کتاب ئې راکړو چې د افغانستان او زمونږ د دې صوبې د غرونو په باره کښې ليکلے شوے وۀ، د سوات، اېبټ اباد او مانسهرې د غرونو ذکر په کښې موجود وۀ. د دې غرونو په حواله ليکي چې: په دې کښې د دنيا هر قسمه

معدنیات موجود دي او سره د ګېسونو دومره زیات دي چې هرکله د دې نوې ټېکنالوژۍ نه فائده واخلي کۀ چرې هم ستاسو واک اختیار په دغه ځایونو باندې راغے نو دا به په ټوله دنیا کښې مالدار ترینه علاقه وي. ما ورته په ګپ شپ کښې ووئیل کۀ مونږه ازاد وواو زمونږ واک اختیار وۀ نو د مزدورۍ د پاره به دلته راتللو؟

په جرمني کښې د پېو وسېدونکے یو ډاکټر وۀ، په نفسیاتو کښې ډېر زیات ماهر وۀ، د ډاکټرۍ کورس ئې په امریکه کښې کړے وۀ او د هغۀ ښځې هم په امریکه کښې د مزغو د ډاکټرۍ کورس کړے وۀ چې د جرمني وسېدونکې وه. ډاکټر علي خان او ښځې ئې په فرانکفورټ ښار کښې ښۀ هسپتال لرلو، په جرمنۍ او انګرېزۍ ژبو باندې دواړه ښۀ پوهېدل. ما ورسره په خپله په هغه هسپتال کښې څو میاشتې نوکري کړې وه، چې زما د نفسیاتو د کورس یوه حصه وه.

دوه میاشتې پس مې یوه چُټي واخسته په هیل براؤن کښې زما یو پنجابے ملګرے وۀ چې ما او هغۀ به د زمرودو کاروبار شریک کولو. هغۀ له لاړم د پاکستان او د کابل پنجشېره چې کوم زمرود مونږ د ځان سره اوړي وو هغه نیم زما سره پراتۀ وو او نیم د هغۀ سره پراتۀ وو. هغۀ وئیل ما خپله حصه زمرود په هیل براؤن کښې په ډېر ښۀ سړي په ډېر ښۀ قیمت خرخ کړل کۀ ستا خوښه وي تۀ خپله حصه زمرود هم د ځان سره راوړه چې په دۀ ئې خرخ کړو.

هرکله چې زمرود ما د ځان سره یوړل او د هغۀ تر کوره ورسېدم د هغۀ یو ګاونډۍ ښځې راته ووئیل هغۀ خو ایکسیډنټ کړے دے په هسپتال کښې پروت دے البته دا سوال جواب ئې پرېښودلے دے چې زما یو ملګرے به راځي هغه له زما د کمرې چابي ورکړه او هغۀ له زما د موټر چابي هم ورکړه او سبا له مازیګر دې په هسپتال کښې پنځۀ

بجې زما سره ليدل كتل وكړي. هركله چې تر هسپتاله ورغلم څۀ ګورم چې د سر نه واخله تر پښو پورې پلېستر شوے دے، تر دې حده پورې چې خبرې ئې هم سمې كولې نۀ شوې، هغۀ وئيل د خبرو كولو نه وتلے يم البته يو قلم او كاغذ راكړه چې ټول حالات درته وليكم.

د لاس ليک تحرير ئې دا وۀ چې دوه ورځې مخكښې د هفتې په ورځ د اتوار په شپه باندې په دې ځائے كښې يو مشهور هوټل دے چې د مالک نامه ئې "الفانسو" ده او د سيسلي وسېدونكے دے. ما اورېدلي وو چې دې د هر قسمه غمو شوقي دے او د لاس په ګوتو ئې د هر قسمه غمو ګوتې دي. ما چې خپل مختلف قسمه زمرود وروښودل نو ډېر خوشحاله شو او ډېر ئې خوښ شو. غمي زما وو او قيمت ئې هغۀ يو لاكهہ ماركه مقرر كړو، الفانسو ووئيل كۀ چرې دا غمي كټ شوے وے نو بيا د دې قيمت دوه لكهو ماركو نه هم سېوا وۀ. ما ورته ستا د غمو په باره كښې ووئيل چې نيم زمرود زما ملګري سره دي شائد چې هغه غمي كټ كړے شوے وي. هغۀ وئيل هغه ملګري ته دې ووايه چې راشي او د ځان سره هغه پاتې زمرود راوړي. كۀ چرې كټ شوے وي هغۀ له به د يو لاكهہ ماركو نه زيات قيمت وركړم او ماله ئې د خپلو زمرودو يو لاكهہ ماركه راكړل.

ما سمدستي تاته ټېلي فون وكړو په هغې ماركو كښې مې په څۀ باندې دا موټر واخستو چې په كوم موټر كښې تۀ نن راغلے يې او باقي رقم مې په بېنک كښې داخل كړو. هركله چې مې تاته ټېلي فون وكړو او تا وئيل چې د هفتې په ورځ به زۀ درځم زۀ د ډېرې خوشحالۍ نه دهغۀ تر دوكانه لاړم، ما هغۀ ته ووئيل زما هغه ملګرے به د هفتې په ورځ مابنام راځي. هغۀ پنځۀ شپږ ملازمانو ته غږ وكړو دۀ هغوي ته ووئيل دې ښۀ كوښمال كړئ ځكه دۀ ماسره پرون دوكه كړې ده. دۀ په

ماباندې خراب زمرود په یو لاکهـ مارک خرڅ کړي دي. ما ووئیل تا خو په لاکهـ مارکه زما نه په خپله اخستي دي او تا په خپله دا قیمت مقرر کړے دے. زۀ خو نن دې د پاره راغلے یم چې زما هغه ملګرے نن نور زمرود ستا د پاره راوړي. هغۀ وئیل زۀ بېګا په نشه کښې وم زر تر زره ماله خپل رقم راکړه. ما وئیل رقم خو ما په بېنک کښې داخل کړے دے هغه به درله بله ورځ راوړم، دېرش زره مارکه ما سره وو هغه ئې زما نه تر لاسه کړل او ماته ئې وئیل ځومره دروغ وایې چې دا مارک درسره دي، پکار دي چې هغه نور هم درسره وي. ملازمانو ته ئې وئیل نور ئې هم ګوښمال کړئ. هغوي په کوتکو باندې برابر ووهلم او د دوکان نه ئې بهر ګوزار کړم او نوټس ئې راکړو کۀ هغه باقي رقم دې رانۀ وړلو نو دا رنګ وهل به نور خورې.

پنجابي ملګري لیکلي راکړل چې دا موټر هم الفانسو هوټل والاله ورکړه او د بېنک نه هغه رقم په دې چِک وباسه هغه هم ورکړه، هسې نه چې دلته کښې راپسې راشي او نور مې ووهي.

هرکله چې د هسپتال نه واپس د هغۀ تر کوره راغلم د دۀ هغه ګاونډې ښځه مې په دې غرض راوغوښته چې ماته د الفانسو هوټل وښائي. هغه زما سره لاړه هغه هوټل کښې مو خوراک څښاک وکړو، د هغه هوټل د ملازمانو نه مې د هوټل د مالک پوښتنه وکړه، هغوي وئیل د هغۀ د ملاقات د پاره به مونږ وخت درکړو، د هغې نه پس به تاسره ملاقات کوي.

هغوي سبا له پنځۀ بجې د ملاقات کولو وخت راکړو، چې هوټل نه په واپسۍ کښې راتلو هغې جینۍ راته وئیل دا خو ډېر خطرناک سړے دے د دۀ سره څۀ د پاره ملاوېږې؟ زۀ پوهـ شوم چې زما پنجابي ملګري دې جینۍ ته خپل حال نۀ دے وئیلے، ما هغې جینۍ

ته واضحه کړه چې زهٔ دهٔ سره د کاروبار کولو په سلسله کښې ملاوېږم، هغې جینۍ وئیل د دهٔ خو ټول کاروبار دو نمبر دے، تاسو ورسره د کوم روزګار په سلسله کښې ملاوېږئ؟

ما وئیل زهٔ د زمرودو د غمو د کانړو کاروبار کوم، هغې وئیل په دهٔ باندې د حکومت بې شماره ټېکسونه پورې دي هغه حکومت له نهٔ ورکوي، دا سړے دلته کښې لوے بدمعاش ګڼلے شي. ما ورته ووئیل بیا خو پکار دي چې زما د پاره چرته کښې وسله وګورې ځکه چې دا رنګ سړي سره خو بې وسلې ملاوېدل پکار نهٔ دي.

لنډه داچې د وسلې تر دوکان لاړو، دغې ګاونډۍ جینۍ وئیل چې دلته کښې د چا سره پرمټ نهٔ وي هغهٔ باندې وسله نهٔ خرڅېږي البته په فلاني ځاے کښې دوکان دے هلته زړې وسلې بې پرمټه خرڅېږي. اخر دا چې د زړو وسلو تر دوکان لاړو. په ۱۹۴۲ء کښې یو جرمنۍ تماچه جوړه شوې وه چې په هغه نمونه تماچه ماسره په کلي کښې هم وه او هر وخت به په کلي کښې ماسره موجوده وه، یعني زما لاس پرې ښهٔ بلد وهٔ. هغه د دوکانداره په لس مارکه ترلاسه کړه. دوباره مې دوکاندار ته وئیل کارتوسونه هم راواخله. هغهٔ وئیل کاروتوسونه نشته دے او نهٔ دلته کښې خرڅېږي ما جواب ورکړو چې تماچه اخستل خو بیا فضول دي؟ دوکاندار وئیل دا تماچې زمونږ نه ډرامو او فلمونو والا اخلي البته مونږ سره د دې د پاره د تشو دارو نه ډک کارتوس شته خو ګولۍ په کښې نهٔ وي خو ډزې برابر کوي او بله دا چې کارتوس هم خُلې ته ورخېژي د هغې باوجود ئې شپېلۍ په قلایۍ بنده کړې وي چې د تشو دارو لمبه هم چاته نقصان ورنهٔ کړي.

د تماچې اخستو سره ئې لس کارتوسونه هم راکړل چې هغه تماچه نن هم زما سره ده او ډېر ښهٔ کار کوي. هغې جینۍ وئیل ولې ته

د فلمونو ډرامو کاروبار هم کوې؟ ما وئیل دا تماچه زمونږ په کلي کښې ډېر خلق خوښوي، دا به زۀ د ځان سره کلي ته وړم.

په سبا له مې دا سوچونه کول چې د هوټل دې مالک سره به څۀ رنګ ملاوېږم او څۀ به ورسره کوم؟ پنجابي ملګري خو د بېنک چک راکړے دے چې د هوټل مالک ته ټول رقم واپس کړه خو رقم ورکول زما خیال نۀ وۀ، ځکه چې دۀ زیاتے هم کړے دے او پنجابے لا په هسپتال کښې پروت دے او د دې د پاسه به لا رقم ورکوم. ګرانه دۀ خو د ماشوموالي نه مې تربیت داسې شوے دے چې بدمعاشي کول راته د وخت د سره غلط فعل ښکاري خو د چا بدمعاشي منل راته د هغې نه زیات غلط ښکاري. هغه جینۍ ووئیل زما د ډیوټۍ کولو وخت دے زۀ سحر اتۀ بجې ډیوټۍ له ځم او مازیګر څلور بجې واپس راځم، ستا څۀ پروګرام دے؟ ما وئیل زۀ به تر څلورو بجو پورې خوب کوم، هرکله چې تۀ د ډیوټۍ نه واپس راشې نو زما سره به تر دې هوټله پورې ځې ځکه چې دا هوټل زۀ دوباره نۀ شم معلومولے.

هرکله چې هغه جینۍ د ډیوټۍ نه واپس راغله پوره په پنځۀ بجې تر هوټله پورې لاړو. دې جینۍ ته مې وئیل تۀ واپس خپل کور ته ځه. د هوټل د مالک په دغه هوټل کښې درې چهته لاندې شیشه بند دفتر وۀ، چې ورغلم اول ئې د پېژندګلو پوښتنه وکړه. دوباره ئې وئیل په کومه ژبه باندې پوهېږې؟ ما وئیل په انګرېزۍ ژبه باندې خبرې کوم، زما نامه ارشد دۀ پاکستانے یم او نن سبا د زمرودو کاروبار کوم. زما د یو ملګري نه تا دېرش زره مارکه په زور اخستي دي، وهلے دې هم دے چې د هغې وهلو د لاسه نن په هسپتال کښې پروت دے.

هغۀ وئیل ستا هغې ملګري ته زما اویازره مارکه نور هم کېږي کۀ تۀ چرې د هغۀ ملګرے یې نو بقایا اویازره مارکه تر ماپورې

راورسوه هسې نه چې دوباره په وهلو کنبې مړ شي. ما ووئيل هغه دېرش زره مارکه ما له واپس راکړه چې کوم تا د هغهٔ نه په زور اخستي دي او کهٔ تهٔ چرې انسان يې او د انسانيت خيال ساتے نو پکار دي چې هغهٔ له د هسپتال تاوان هم ورکړے.

اول خو ئې ماته ډېر وران وران وکتل بيا ئې وئيل کهٔ ور نهٔ کړم نو بيا؟

ما ووئيل ما خو درته خبره وکړه چې زما ملګرے دے يا ماله د هغهٔ دېرش زره مارکه واپس راکړه او يا مې دا رنګ ووهه لکه څهٔ رنګ چې دې زما هغه ملګرے وهلے دے.

الفانسو ووئيل هغهٔ زما سره زياتے کړے دے تا زما سره زياتے کړے نهٔ دے سبا تر دولسو بجو پورې ماله بقايا رقم راوړه او راشه.

ما وئيل سمه ده سبا له به راشم خو په هغه دېرش زرو مارکو پسې به راځم.

مابنام کنبې پنجابي ملګري له تپوس د پاره ورغلم او دا خبره مې ورته هم وکړه، هغهٔ وئيل ما خو تاته د بېنک چِک در کړے دے شکر وباسه چې لا وهلے ئې نهٔ يې، دا مارکه واپس ورکړه.

د شپې د ځان سره دا سوچونه کوم چې پنجابے ملګرے مې وائي چې رقم واپس ورکړه او پردے وطن دے، دلته کنبې د پنجابي د پاره ولې پښتو وکړم؟ دوباره مې خيال راغے چې دا خو ډېره بې غېرتي ده چې په داسې حالاتو کنبې لا پېسې هم ورکړم. اخر دا چې د ځان د خلاصولو د پاره مې تماچه راواخسته. منت زاري به ورته وکړم، کهٔ د پنجابي رقم ئې بيا هم رانهٔ کړلو بيا به زهٔ دا رقم ورکړم.

چې څهٔ رنګ هوټل ته د هغهٔ شيشه بند دفتر ته ورغلم د دفتر نه بهر ټول خلق بنکاربدل، د هوټل مالک الفانسو په ډېره غصه کنبې چاسره په ټېلي فون لګيا وهٔ چې څهٔ رنګ زهٔ دفتر ته ورننوتم، په غصه

کښې ئې ټېلي فون کښېښودهٔ او ماته ئې په غصه کښې ووئيل، تهٔ بيا راغلې؟ په دې کښې ئې په ټلې باندې لاس کښېښودلو چې ما په شيشه کښې وکتل پنځهٔ شپږ کسان پرانستې مټې راروان وو، زهٔ پوه شوم چې دوي خو زما په وهلو پسې راغلل، زهٔ د مېز نه ورتاؤ شوم، تماچه مې لاس کښې ونيوه، کارتوس مې ور وخېژلو، په سر باندې مې ورله تماچه کښېښوده، هغهٔ يوه لويه چغه د خُلې نه وويسته، چې په ما باندې ګوزار ونهٔ کړې، حکم کوه زهٔ څهٔ وکړم؟ ما وئيل هغه دېرش زره مارکه ماته وشماره.

هغهٔ چې مارکونه شمارل ما سوچ کوؤ چې بهر به څهٔ رنګ وځم؟ چې دېرش زره مارکه مې ترلاسه کړل دوباره ئې ووئيل: نور حکم؟

ما وئيل شل زره مارکه جرمانه راکړه، چې هغه مې وصول کړل بيا ئې وئيل بل حکم؟ ماوئيل پوليس ته ټېلي فون وکړه، کهٔ ستا په ټېلي فون باندې په يو منټ کښې پوليس رانغې ما به ويشتے يې او دا کوتک مار دې هم د دفتر نه بهر کړه. سمدستي ئې د دفتر نه سړي بهر کړل او پوليس هم زر راغے، پوليس د راتلو سره په ما باندې تماچه کښېښوده، ما وئيل تاسو زما په حکم باندې راغوښتلي شوي يئ. چې څهٔ رنګ پوليس زما نه تماچه ترلاسه کړه او تماچې ته ئې په غور وکتل نو په خندا شو. ما ورته ټوله قيصه تېره کړه چې زما ملګرے ئې وهلے دے اوس هم په هسپتال کښې پروت دے او لا دېرش زره مارکه ئې هم د هغهٔ نه اخستي دي. هرکله چې ما د دهٔ نه د هغې مارکونو مطالبه وکړه چې هغه راکړه، دهٔ د ټلې په ذريعه پنځهٔ شپږ کوتکمار په ماپسې راوستل کومو چې زما ملګرے وهلے دے، ما دهٔ له په سر باندې تماچه کښېښوده، مخکښې مې ترې نه د ملګري هغه دېرش زره

مارکه واخستل، دوباره مې خیال شو چې د دوي نه زۀ د دې ځاے نه وتلے نۀ شم بیا مې په دۀ باندې تاسو ته ټېلي فون وکړو.

د پولیس یو مشر راغے مونږ دواړو ته ئې لاسو کښې هتکړې واچولې او د پولیس په حراست کښې د پولیس تر دفتره لاړلو. هلته کښې د پولیس هغه مشر وئیل هسې خو تۀ د انعام قابل یې ځکه چې زمونږ پوره یو کال وشو چې په دۀ پسې ګرځو او زمونږ په لاس نۀ راځي او نن د لوبو په تماچه ستا په ذریعه مونږ ونیولو.

الفانسو چې د دروغو د تماچې نامه تر غوږه شوه ډېر په غصه باندې ئې ماته وکتل او د بدمعاشۍ په لهجه کښې ووئیل. په ما باندې خو د پېسو د ټېکس کېس دے سبا له به پېسې ورکړم خلاص به شم خو بیا به تۀ زما نه څۀ رنګ خلاصېږې؟

پولیس وئیل په دې باره کښې زمونږ قانون وائي چې هرکله تا په چا باندې د مرګ ویره تېره کړه، د هغې د زرو مارکو نه واخله تر یو لاکھ مارکوپورې جرمانه ده او څني وخت کښې جېل هم کېدے شي. البته دا هم کېدے شي چې مجسټرېټ دې هسې پرېږدي چې مونږ ورته ستا دا قیصه تېره کړو او تاله انعام هم درکړي او کۀ ستا رضا وي چې زۀ ځمه او بیا واپس نۀ راځم نو تابه مونږ زر مارکه جرمانه کړو.

ما وئیل زۀ زر مارکه چاله ورکول نۀ غواړم ما مجسټرېټ ته حواله کړئ او زما دا قیصه ورته هم تېره کړئ ځکه چې دې بدمعاش ستاسو مخامخ ماله دمکي هم راکړه چې مجسټرېټ ماله اجازت راکړي چې د نقلي وسلې په ځاے کم از کم اصلي وسله د ځان د حفاظت کولو د پاره ګرځولے شم. پولیس جواب راکړو دا کوشش به ستا د پاره هم وکړو. هغه ئې حوالات ته دننه کړو او زۀ ئې د دفتر بلې کمرې ته بوتلم. د دې د پاره چې دا خبره درته د هغۀ په مخامخ ونۀ کړو

پولیس وئیل دلته کښې تاله پرمټ څوک هم درکولے نهٔ شي. البته په دې کاغذونو باندې دستخط وکړه او خپله پته پرې مکمل ولیکه. تا مونږ هسې هم پرېږدو البته په تاپسې په درې موټرو کښې هغې هوټل ته مونږ دولس کسان درغلي يُو نو کهٔ مجسټریټ د هغې څهٔ جرمانه لګوي هغه جرمانه به مونږ ادا کړو او تهٔ چې په فرانکفورټ ښار کښې چې په کوم ځاے کښې وسېږې د هغه ځاے پولیس ته به اطلاع ورکړو چې ستا حفاظت کوي.

ما ورته وئیل چې پرمټ کېدے نهٔ شي نو هغه خپله تماچه خو راکړئ. هغوي وئیل مونږ په عدالت کښې دا ښایو هرکله چې کېس ختم شي خپله تماچه به تاته حواله شي.

هغه تماچه ئې په میاشت کښې راوړه، د هغې نه پس یوه ورځ نیمه مې د پنجابي ملګري سره تېره کړه، هغهٔ ته مې دا ټول حالات بیان کړل، خو پنجابے بیا هم ویرېدلو، هغهٔ وئیل کهٔ اوس څهٔ رقم زما نه غواړې. ما پنجابي ته واضحه کړه چې د هغهٔ د رقم ستا سره اوس څهٔ کار نشته، دا معامله اوس زما او د هغهٔ ده. هغهٔ وئیل نیم رقم ستا شو او نیم زما، ما ورته ووې اویازره مارکه چې کوم ستا په بېنک کښې دي هغه ستا شو، کوم دېرش زره مارکه چې ما د الفانسو نه وصول کړي دي هغه زما شو چې کوم وخت ترې نه واپس راتلم نو د هغې نوے موټر چابي ئې راکړه چې دا هم ستا شو او چې کوم وخت کښې د دې لورې نه تلم نو د یو ملګري نه مې د کرایې د پاره قرض پېسې اخستې وې او د هغې طرف نه د پنجابي ملګري په نوي موټر کښې سره د پنځوسو زرو مارکو راغلم. ټولو ملګرو مې وئیل نهٔ دې د ټېلي فون نمبر او نهٔ دې څهٔ پته پرېښې وه ځکه چې ډاکټر علي خان او د هغهٔ ښځه په تاپسې درې ورځې راتلل مونږ ته ئې وئیل هرکله چې راشي نو

زمونږ سره دې په ټېلي فون رابطه وکړي.

اخر د علي خان کور ته مې ټېلي فون وکړو، د ډاکټر علي خان ډاکټرې ښځې ټېلي فون اوچت کړو، وئيل ئې سمدستي زمونږ تر کوره راشه. هرکله چې هلته ورغلم نو هسپتال ته ئې روان کړم، د هغوي په هسپتال کښې پنځوس ماشومان وو، ډاکټرې وئيل دوي په تاپسې په دارنګ خفه دي چې د خفګان نه خوراک څښاک نۀ کوي او هر وخت ورته د خوب کولو د پاره ستنې وهو.

دا ذهني مريضان ماشومان په اصل کښې څوک د پنځويشتو کالو دے او څوک د څلورويشتو کالو دے، څوک د شلو کالو دے، خو د دوي مازغۀ وده نۀ کوي نو ذهني عمر د چا شپږ کاله وۀ، د چا پنځۀ کاله وۀ د چا لس يولس کاله وۀ، په قد باندې ټول شپږ فټي وو او په وجود باندې ښۀ غټ او تندرست وو ځکه چې دوي فقط خوراک څښاک کولو بل څۀ کار ئې نۀ وۀ.

هرکله چې زۀ هسپتال ته ورغل په دې ماشومانو کښې څۀ په منډه راغلل او دغه شپږ فټي ماشوم زما ترغېږې راټوپ کړو، زۀ ئې راګوزار کړم، څوک مې په پښو باندې ناست وو او څوک مې په خېټه باندې ناست وو، د علي خان ډاکټرې ښځې وئيل دوي دې ولې د ځان سره په دا رنګ بلدول چې اوس بې ستا نه خوراک څښاک هم نۀ کوي. په دې وجه مونږ وايو چې تۀ دلته کښې مستقل پاتې شه، څومره تنخوا چې تۀ غواړې تاته به ملاوېږي. ما وئيل زما خو يوه مياشت کورس پاتې دے، ورپسې امتحان دے، بيا به خپل کلي ته ځم. ډاکټرې وئيل تاته د څۀ کمے دے چې کلي ته ځې؟ البته کۀ زړۀ دې غواړي نو خپل ټول خاندان دلته کښې راوستے شې او زمونږه د کوره هم ورله ښۀ کور اخستے شې او تنخوا به هم ستا په طبيعت باندې تاته ملاوېږي. چې ما

د دې هرڅۀ باوجود انکار وکړو. ډاکټر علي خان خپلې ډاکټرې ښځې ته ووئیل چې دې خو په خُلۀ باندې حال نۀ وائي البته عادتونه ئې ګوره چې ذهن د بادشاهانو لري دا پته نۀ لګي چې دې په خپل کلي وطن کښې څۀ رتبه لري؟

ډاکټرې دوباره ووئیل اخر په کلي کښې ستا څۀ دي؟ تۀ په څۀ پسې ځې؟ ما وئیل په کلي کښې زمونږ حجره ده، کچه دېوالونه ئې دي، یوڅو جولنګۍ کټونه په کښې پراتۀ وي چې په هغې کښې زۀ اودۀ شم او ډېر خوب او ارام په کښې وکړم لکه څوک چې د ټولې دنیا بادشاه وي او بالکل غم ئې نۀ وي.

ډاکټرې وئیل د هسپتال دا ذهني مریضان ماشومان به په تاپسې مړۀ شي. کۀ خامخا ځې او نۀ پاتې کېږې بیا د هرې ورځې په ځاے دې ماشومانو سره څلور ورځې پس ملاوېږه بیا ورو ورو هفته پس ملاوېږه د دې سره ورو ورو ستا تعلق د دوي سره ختم شي.

ما وئیل زمونږ په کلي کښې خو پاګلان خلق کاڼو وولي او څوک ئې په پړو باندې تړي او دلته کښې د دې ماشومانو د پاره ښۀ ښۀ هسپتالونه او ښۀ علاجونه شته دے او ستاسو په شان ښۀ ډاکټران هم شته دے. هلته کښې زمونږ روغ خلق د خپلو روزمره مشکلاتو او تکلیفونو دلاسه لېوني کېږي. هرکله کۀ زۀ دلته کښې نور پاتې شوم نو د دې سپکنډونو او منتونو د لاسه به لېونے شم. هغوي وئیل د سپکنډونو د لاسه به څۀ رنګ لېونے شې؟ ما وئیل نن زما درېمه ورځ ده چې دلته کښې د ډیوټۍ د پاره راځم نو شل منته کښې مې دلته رارسوي، یوه ورځې هم په دغه رنګ د ډیوټۍ د پاره راتلم، هغه ګاډي له پنځۀ منته کم یعني لېټ راورسېدم رېل ګاډے تلے وۀ، په بله ورځ

دغه ګاډي له یو منټ وروستو ورسېدم هم ګاډے تلے وۀ. نن هم پنځۀ منټه لېټ ورغلم هم ګاډے تلے وۀ.

ډاکټرې وئيل پنځۀ منټه مخکښې راروانېږه.

ما وئيل زۀ پاکستاني خېبر ميل او د خوېشکو د ګاډي بلد يم، خېبر ميل چې د پېښور نه تر کراچۍ پورې ځي په يوه ورځ کښې سړے تر لاهوره رسوي او په بله ورځ ئې تر کراچۍ رسوي او هره ورځ په اخبار کښې راځي چې د شپې پنځۀ منټه د پاسه اتۀ بجې به کراچۍ ته روانېږي. هرکله چې دا ګاډے د پېښور نه کراچۍ ته روان شوے دے نو د نهۀ بجو نه مخکښې روان شوے نۀ دے. بل ګاډے دے چې مونږ ورته بس وايو چې د چارسدې نه تر نوښاره پورې په ورځ کښې دوه پېرې کوي. ټوله لاره پنځويشت کلوميټره ده دا بس د خوېشکو او د نيستې په لاره تر نوښاره ځي. کۀ د خوېشکو په روډ باندې يا د نيستې په روډ باندې څوک هم اشاره ورکړي، هغه بس اتال کړي، بس واله تۀ صبر وکړه مېلمانۀ راځي تر نوښاره ئې بوځه. ډرائېور وائي مېلمانۀ کوم ځاے دي؟ ماته خو هغوي نۀ ښکاري، هغه وائي په کور کښې چائيو ځښنو ته ناست دي چې چائې وځښني بيا به تاسره ځي. نو مونږه د داقسمه ګاډو عادت خلق يُو چې زمونږ مېلمه ته هم يوه ګېنټه ايسار وي. دلته کښې خو ستاسو ګاډي يو سېکنډ هم چاته نۀ ايسارېږي.

علي خان ډاکټر ووئيل آيا دغه پروګرام تۀ ښۀ ګڼې او کۀ بد؟

ما وئيل هلته کښې مشينان مونږ خپل تابع کړي دي، زمونږ په طبع باندې ودرېږي او روانېږي، تاسو خپل ځان د دغه مشينانو تابع کړے دے ځکه چې تاسو ته د يو سېکنډ د پاره نۀ ايسارېږي. دغه شان دا خلق زما تر نظره انسان په نظر نۀ راځي دوي هم ماته د مشينانو په شان ښکاري.

ډاکټر وئیل دا خو دې ډېره دلچسپه خبره وکړه، زۀ پوه شومه چې تا په ډیر سپیګل رساله کښې کوم یو مضمون لیکلے وۀ ایا په هغې باندې جرمنیان ولې خفه شوي وو او ستا په لاس لیک ئې تنقیدونه کول. ما ورته واضحه کړه چې هغوي دا تنقیدونه کول چې د ایشیا نه څوک راغلے دے، دې زمونږ تهذیب ته، زمونږ تمدن ته په سپک نظر ګوري ځکه چې ما په هغې مضمون کښې لیکلي وو چې په جرمني او جاپان غوندې ملکونو باندې د دوېم جنګ عظیم نه پس وسله بنده شوه نو د دوي ټول خیالونه کارخانو پله وګرځېدل او د کارخانو په ټېکنالوژۍ کښې ئې مهارت حاصل کړو، د ټولې دنیا مارکیټ ئې تر لاسه کړو، خو د دې سره سره په انساني اخلاقو باندې د ټولې دنیا نه لاندې راپرېوتل. بیخي خانداني پروګرامونه ئې ختم شو، دې ته هم سوچ پکار دے چې انسان، انسان پاتې نۀ شي نو د دۀ د کارخانو ټېکنالوژي به چاته فائده رسوي؟ د دې په ثبوت کښې مې د یوې ښځې او خاوند نه یعني د دواړو نه په مختلفو وختونو کښې انټروي ترلاسه کړې وه او بیا په مضمون کښې چاپ شوې هم وه. د هغې حواله مې ورکړه چې ښځه او خاوند دواړه سره یو ځائے ناست وو، ډېر ښکلے کور ئې وۀ، په ظاهره باندې ډېره خوشحاله کورنۍ ښکارېده، د هغوي نه مې تپوس وکړو چې په تاسو په ټول ژوند کښې د خفګان وختونه کوم کوم راغلي دي؟ خاوند ئې ووئیل دا زما درېمه ښځه ده، زما د وړومبۍ ښځې نه دوه بچي دي، دغه شان ښځې ئې ووئیل دا زما څلورم خاوند دے، د دۀ نه مخکښې درې خاوندان پرېښودلي دي. زما د دوېم خاوند نه یو بچے وۀ او د درېم خاوند نه هم یو بچے وۀ. دغه شان زما بچي د دې موجوده خاوند بچي نۀ دي او د دۀ بچي زما بچي نۀ دي. د چُټۍ په ورځ زما دا خاوند تر خپلو بچو ځي او زۀ تر خپلو بچو

ځم، دې دا کوشش کوي چې په داسې ورځ تر خپلو بچو لاړ شي چې په هغه ورځ ورپسې خپله مور راغلې نۀ وي. دغسې مونږ دا خپل بچي تر خپل کوره راوستے نۀ شو. دغه وخت زمونږ ټولو وختونو نه د خفګان باعث وي. زمونږ د دواړو عمرونه داسې وخت له رسېدلي دي چې د خپلو غلطو احساس راسره وي خو د هغې غلطو د ختمولو څۀ لاره مونږ ته نۀ ښکاري ځکه چې ژوند په مخه روان دے. هغه زوړ ژوند اوس واپس نۀ راځي. د سرکار د اعداد و شمار نه دا خبره ثابته ده چې د شلو فیصدو نه کمې ښځې ټول عمر د یو خاوند سره تېروي. کورونه او خاندانونه د یوې ښځې او د یو خاوند نه جوړېږي، هغوي خپل بچي په یو کور کښې ساتلے نۀ شي. دغه شان وړاندې یو کور وي بیا ترې نه خاندان جوړ شي او چې زیاتېږي زیاتېږي بیا ترې نه یو قوم جوړ شي.

ما ورته وئیل تۀ مسلمان یې، خدا ے پاک په قرآن کښې وائي ما د یوې ښځې او یو سړي نه پېدا کړے او بیا مې په بېلو قبیلو کښې او په قومونو کښې تقسیم کړے چې ستاسو پېژندګلو وشي. زۀ وایم جرمنیان په خپله قوم پرستۍ کښې ډېر مشهور دي یعني د دوي دا نسل چې لوے شي په سرکاري خرچونو باندې تعلیم او تربیت هم حاصل کړي، په سرکاري توګه ئې علاج معالجه هم کېږي خو خپل مور او پلار نۀ پېژني. حېراني ده چې دوي به خپله پېژندګلو څۀ رنګ کوي؟ د هغې نه پس د روس او افغانستان په لاره خپل کلي ته راغلم.

په پاکستان کښې زمونږ اکثر خلق خپله صوبه پرېږدي او په سندھ او پنجاب کښې مزدوري کوي او د دې ځا ے په غرونو کښې چې ګېس او یا نور معدنیات دریافت شي نو مرکزي حکومت ئې خپل ملکیت وګرځوي او د قانون په نامه باندې چې په کومه صوبه کښې دریافت شوي وي هغې له د رائلټي حق هم نۀ ورکوي.

په سوات کښې د زمرودو د کانونو چې مرکزي حکومت ئې اختیار مند وۀ پنځلس کاله مخکښې بندشوي دي. وائي چې په دې مونږه تاوان وکړو. په پاکستان کښې ټولې صوبې په سوونو کلونو مخکښې جوړې شوې دي دپاکستان یو اویاکاله وشو چې جوړ شوے دے خو د دغې صوبې وسېدونکو ته هم هیڅ فائده نۀ ده ورکړې شوې او نۀ ئې د دې په ګټه کښې شامله کړې ده. په دې ګټه کښې د بېورو کرېسي او د فوج یوڅو جرنېلان او یا د هغې خاندانونو خلق چې کوم د انګرېزانو وفادار غلامان وو او د جاګیرونو ترمخه ئې خانۍ او نوابۍ ورکړې دي په پنجاب کښې چودهریان دي، په سندهـ کښې وډېره دي.

د جرمني د لائبرېرو نه په دغه رنګ ډېر کتابونه سره د پښتو ژبې د رسالو چې هفته وارې او میاشتیزې مونږه چاپ کولې، هرکله چې واپسي تر وطنه راتلم د روس او افغانستان په لاره باندې تر کابله راغلم. خپلو ملګرو ډېرې تحفې راکړې وې، بېلې بېلې تحفې مې په کابل کښې د هغوي تر کورونو ورسولې چې د چا په نامو باندې راکړې شوې وې. د پښتو ژبې د کتابونو تحفه چې اجمل خټک ترلاسه کړه نو حېران پاتې شو او وې وئیل چې مونږ خو تراوسه پورې په کاتبانو باندې د پښتو ژبې لیکل کوو تاسو په جرمني کښې د پښتو ژبې د لیکلو د پاره ټائپ څۀ رنګ پېدا کړو؟ مونږ ووئیل دا د فارسۍ ژبې د لیکلو ټائپ مونږ د پښتو ژبې د لیکلو د پاره په استعمال کښې راوستلو. په خندا کښې مې ووئیل ښاپېرک په "خ" باندې لیکو ځکه چې "ښ" په کښې نشته.

بیا لاړو جلال اباد ته هلته کښې د پښتو ژبې تاریخي کتابونه باچا خان د ټولو ملګرو د لوري تحفې ترمخه کړې. او نور مې یو هلک زما سره په دغه ملاقات کښې موجود وۀ انورباچاد مردان هغه

وسپډونکے وۀ چې په چا باندې د حیات خان د مرګ دعوه شوې وه. باچاخان چې د پښتو ژبې کتابونه وکتل، ډېر خوشحاله شو وې وئیل زما ډېر وخت نه دا اراده وه چې زۀ به د پښتو ژبې یو اخبار شائع کوم او د هغې د پاره مې د پښتو ژبې په تړستې کښې پېسې محفوظې اېښې دي، خو چې ماته ستاسو غوندې خلق ملاو شول، زۀ د پښتو ژبې د اخبار شائع کولو ته سبا هم تیار یم.

ما ووئیل زمونږ غوندې ملګري خوستاسو ډېر دي تاسود پښتو ژبې اخبار په هغوي باندې ولې نۀ شائع کولو؟ هغۀ وئیل دغه ملګري د اخبار په چلولو باندې نۀ پوهېږي او چې کوم خلق پرې پوهېږي هغه بزنس مېنان خلق دي اخبار ته د ګټې او تاوان په نظر ګوري، د دې د پاره ستاسو غوندې خلق پکار دي چې صحیح نظریه هم لري او صحیح مقصد هم لري او خپل ټول وخت دې له ورکړي چې خپله خبره تر خلقو ورسوي. د ګټې تاوان په سوچ باندې نه. ما وئیل دا ملګري خو په جرمني کښې دي او زیات په کښې سټوډنټان دي او زیات کسان په کښې د افغانستان دي چې په جرمني کښې مزدوري کوي او دا هم ممکنه نۀ ده چې د جرمني نه دې ستا د پښتو ژبې اخبار شورو شي. آیا د کابل نه دا کوشش پکار نۀ دے چې په اجمل خټک باندې د دې ځائے نه د پښتو ژبې اخبار شورو کړئ؟ هغۀ وئیل اجمل خټک خو د "شهباز" اخبار یوه پاڼه چلولې نۀ شوه، نو ټول اخبار به څۀ رنګ چلوي؟ لانن سبا خو د تره کي په حکومت کښې ناست دے د هغوي ښۀ وائي او په مونږ پسې خبرې کوي او یو کتاب ئې په مونږ پسې لیکلے هم دے خو خلقیان وائي اجمل خټک د دې کتاب رهنمائي کړې ده.

ما وئیل دا کتاب خو د کتلو دے دا به په کوم ځائے کښې ملاو شي چې دا هم مطالعه کړو او نامه ئې څۀ ده؟

باچاخان وئیل نامه ئې ده "دوسره خانان" نن سبا د خلقیانو حکومت دے په بازار کښې به درته په لاس راشي.

ما باچاخان ته ووئیل دوسره خانان ئې چاته وئیلي دي؟

هغهٔ وئیل دا ئې مونږه ته وئیلي دي لکه خان عبدالغفار خان، خان عبدالولي خان.

د دې خبرو کولو سره انور ماته وکتل او مُسکے هم شو ځکه چې د کابل نه د راتلو په وخت کښې اجمل خټک زما سره تر موټره پورې راغلو او درې ځله ئې دا خبره وکړه چې کلي ته لاړ شې نو د دې خانانو په پارټۍ کښې به نهٔ شامليږې ځکه چې عنقريب ده چې زهٔ او افراسیاب هم درشو هلته کښې به خپله پارټي جوړه کړو او په دې دوسره خانانو پسې نور نهٔ ځو.

مونږ باچاخان ته دا خبرې ونهٔ کړې البته دا پوښتنه ترې نه مونږه وکړه چې د خلقیانو د حکومت په باره کښې ستاسو څهٔ خیال دے؟ باچاخان وئیل نورمحمدتره کی تر ما پورې راغلے وهٔ، ما ورته ووئیل دا انقلاب نهٔ دے، کهٔ لږه غلطي دې وکړه نو دلته کښې به خانه جنګي شورو شي او دلته کښې اکثریت هم د پښتنو دے او ټول مسلمانان دي. هرکله چې په روس کښې انقلاب راغلے نو اول ئې خپله روسي ژبه په کرسۍ باندې تعینات کړه، مخکښې به هلته خلقو انګریزي او فرانسیسي ژبه وئیله او فخر به ئې پرې کولو او خپلې ژبې ته ئې په ښهٔ نظر نهٔ کتل.

نورمحمد تره کی په دې باره کښې ووئیل زهٔ خو په خپله غلجے پښتون یم او دلته کښې ستاسو مخکښې د محمدزو حکومت وهٔ چې ټول خاندان کښې یو فرد له هم پښتو ژبه نهٔ ورتله. باچاخان د نورمحمد تره کی او د خلقیانو په باره کښې څهٔ ښهٔ تاثر نهٔ درلود البته

وئیل ئې دا نور خلق یعني ببرک کارمل، عنایت او میراکبر خېبر دغه ښهٔ خلق دي او هوښیار خلق هم دي چې دغه ټول پرچمیان وو.

ځهٔ رنګ چې په جرمني کښې مونږ د ولي خان نه تپوسونه کړي وو په هغه رنګ تپوسونه مونږ د دهٔ نه هم وکړل چې تاسو د پښتنو د پاره او د پښتو ژبې د پرمختګ د پاره څهٔ کړي دي؟ هغهٔ وئیل پښتون رساله مونږه چلولې ده. ما وئیل دا خو د ۱۹۴۰ء خبره ده، د دې نه مخکښې وایه؟ هغهٔ وئیل ازاد سکولونه مونږه جوړ کړي وو، چې تاریخ، ثقافت او کلچر او خپل مذهب ئې په پښتو ژبه کښې ښودل او ما خپل بچي هم په هغې سکول کښې داخل کړي وو خو انګرېزانو په مونږه باندې هغه سکولونه بند کړل او څهٔ د مولیانو د پروپېګنډو د لاسه چې هغوي به لادا هم وئیل" سبق د مدرسې وائي د پاره د پېسې وائي جنت کښې ئې ځائے نهٔ وي په دوزخ کښې به غوټې وهي". . د کانګرس او د کانګرس د مشرانو په باره کښې ترې نه مونږه څو تپوسونه وکړل چې دوي د پښتنو د پاره څهٔ کړي دي؟ هغهٔ وئیل ما خو په خپل کتاب کښې ورکړي دي چې ګاندهي او پټېل زما سره دوکه کړې ده او تر اخره وخته پورې ئې په دوکه کښې ساتلے وم، چې پاکستان جوړېدے نهٔ شي. مونږ ورته ووئیل د اول نه د کانګرس سره ولې شاملېدے؟ هغهٔ وئیل مسلم لیګ ډېر وروستو جوړ شوے دے کانګرس د ټول هندوستان پارټي وه او ټول مسلمانان لیډران چې وروستو ئې پارټۍ جوړې کړې سره د جناح او سره د علامه اقبال مخکښې په کانګرس کښې وو تر اخر وخته پورې ډېر ښهٔ ښهٔ مسلمانان په کانګرس کښې پاتې شول. څو څو کرته مونږه دا کوشش کړے دے چې د مسلم لیګ سره خبرې اترې وکړو خو زمونږه په ذهن کښې دا خبره وه چې انګرېز دې د دې وطن نه وروک شي د هغې نه پس

به مونږه ازاد شو. مسلم لیګو وئیل زمونږ د انګرېز سره مسئله نۀ ده، زمونږ مسئله د هندوانو سره ده چې د هندوانو سره مونږ په یو ځای کښې وسېدے نۀ شو.

دغه خبره زمونږ ذهن نۀ اخستـه بلکې زمونږه یو ملګري ورسره په دې خبره باندې حلق هم تریخ کړو چې زرګونه کلونه ورسره مونږ پاتې شوے یو اوس څۀ چل وشو چې شریک پاتې کېدے نۀ شو. هغۀ ووئیل مونږه مسلمانان یُو، زمونږه رسمونه رواجونه بېل دي او د دوي بېل دي. زمونږه ملګري ورته واضحه کړه چې اسلام زمونږ د علاقو نه په دې لوري راغلے دے کۀ نن دا په کروړونو مسلمانان وینئ دا مونږ د هندوانو نه مسلمانان کړي دي یو داسې مسلمان به ماته په ګوته کړے چې تراوسه پورې دوي هندو کړے وي البته ستاسو چې کومه علاقه په خیال کښې ده چې په پاکستان کښې به دا راځي کۀ دغه چرې هم راشي بیا به هم په کروړونو مسلمانان په هندوستان کښې پاتې شي. دا خو بیا د هندوستان تقسیم نۀ دے البته د مسلمانانو تقسیم دے.

مونږ ورته ووئیل دغه مذهبي خبره خو د هندوستان ټولو پارټو کړې ده. هغۀ وئیل بې شکه مونږ داسې د مذهب چاپ په ځان باندې نۀ لګولو ځکه چې زمونږ په علاقه کښې د مولیانو او میاګانو اکثریت د انګرېزانو سره وۀ او د هغوي د پاره ئې په مونږ باندې د کفر فتوې لګولې وې. مذهبي جوماتونو هم د یو هندوستان خبره کوله او د کانګرس هم دغه مدعا وه. مونږ وئیل تاسو پښتانۀ د علاقې ټول خپل تاریخ د مسلمانانو سره ولې نۀ شریکوۀ، په دې خبره باندې غصه شو وې وئیل تاسو خو د پاکستاني اخبار په شان مانه تپوسونه کوے. ما وئیل اوس د جرمني نه راغلم، د چارسدې یم، مور پلار مې دواړه پښتانۀ دي، نۀ میا یم او نۀ ملا یم او نۀ اخبار والا یم، مونږ پښتانۀ یو

خاص کر مونږ د پښتنو په باره کښې تپوسونه کوو تاسو د پښتنو د مشر په حېث باندې کانګرس پښتنو ته څۀ فائدې ورکولې چې هغه دې نورو سیاسي او مذهبي پارټو نۀ ورکولې؟ هغۀ ووئیل کانګرس د هندوستان د ټولو نه لویه پارټي وه چې هرکله به الېکشن کېدو نو په اکثریت کښې به کانګرس راتلو، د انګرېزانو د ویستلو خبره هم کانګرس شورو کړې وه دغه د ازادۍ لهر چې ټول هندوستان کښې یو شان خور وۀ هغې د عوامو اکثریت کانګرس طرف ته مائل کړے وۀ، کۀ مسلمانان وو او کۀ نور خلق او کۀ نورو مذهبونو والا وو، بل د کانګرس پارټۍ ائین سیکولر بنیاد باندې جوړ وۀ. د هندوستان ټولو صوبو ته مکمل اختیار ورکړے وۀ چې د الېکشن په بنیادونو په جمهوري طریقه صوبائي حکومتونه د عوامو په خوښه باندې ترمېنځه راشي بیا د هغوي خوښه ده چې د خپلې صوبې د ترقۍ د پاره څۀ قسمه ائین او قانون غواړي هغه جوړولے شي.

د ازادۍ نه پس کانګرس ثابته کړه چې په هندوستان کښې ټولې صوبې خودمختاره دي چې په خپله صوبه کښې څۀ قسمه قانون نافذ کول غواړي هغه نافذ کولے شي. د وفاق سره چې څۀ مسئله راشي نو د هغې صوبې مشران کۀ هغه فېصله کوي چې هغه د هغې صوبې په ګټه باندې تمامېږي. د صوبو د ازادۍ او خودمختارۍ تر مخه هندوستان ورځ تر ورځه د ترقۍ په لار باندې ګامزن دے او د صوبو ترقي د هندوستان وفاق له ګټه ورکوي. وفاق ئې نور هم مضبوط کړلو. ما ورته دوباره دا خبره وکړله چې زۀ ستا نه د هندوستان او د کانګرس تپوسونه کول نۀ غواړم زۀ ستا نه د پښتون د مشر په حېث تپوس کوم چې د پښتنو په کانګرس کښې د شاملېدو څۀ ګټه وه او د دې نورو پارټو سره په شاملېدو کښې څۀ نقصان وۀ؟

باچاخان: کانګرس د هندوستان د ټولو پارټو نه لویه پارټي وه. د الیکشن ترمخه به هم دوي په اقتدار کښې راتلل او مونږ به په صوبه کښې خپل الیکشن ګټلے شو چې په صوبه کښې زمونږه حکومت وۀ او په مرکز کښې د کانګرس حکومت وۀ نو زمونږ صوبې به ډېره ترقي کړې وه. ما وئیل تاسو دې طرف ته نۀ کتل چې پاکستان جوړ شي نو زمونږ به څۀ حال وي؟ هغۀ ووئیل د انګرېزانو د ازادۍ نه یو کال وړاندې یعني په ۱۹۴۶ء کښې په دهلي کښې د کانګرس یوه غونډه وه چې په هغې کښې ګاندهي او پټېل زما سره وعده کړې وه چې هندوستان به ماتېدو ته نۀ پرېږدو ځکه خو ما په خپل کتاب کښې لیکلي دي چې ګاندهي او پټېل زما سره دوکه کړې ده، بلکې دا مې هم د غصې نه لیکلي دي چې مونږ ئې شرمخانو ته حواله کړو او د هغوي په رحم وکرم ئې پرېښودلو کۀ چرې یو کال ئې مخکښې مونږ ته وئیلي وو نو مونږ به د ځان د پاره څۀ بندوبست کړے وۀ.

مونږ وئیل د پښتونستان دا خبره څۀ رنګ شورو شوې ده؟

هغۀ وئیل د پارټۍ کارکنان هم راغونډ شوي وو په بنو کښې په ۱۹۴۶ء کښې د ووټونو په اکثریت باندې د ازاد پښتونستان اعلان وشو خو ما په هغه وخت کښې هم د دې خبرې مخالفت کړے دے او اوس ئې هم مخالفت کوم، ځکه چې ماته دا خبره سمه نۀ ښکارېده. مونږ نۀ د هندوستان د ازادې صوبې مطالبه کړې ده او نۀ د پاکستان د ازادې صوبې خبره کړې ده البته زمونږ په پارټۍ کښې د ځنو پښتنو دا خیال وۀ چې دا دې ځان له یوه ازاده صوبه شي او زما بیا هم دا خیال وۀ چې پاکستان به ټول عمر ژوندے پاتې نۀ شي او کۀ چرې ژوندے پاتې شو او د کانګرس په شان هرې صوبې ته خودمختاري ورکړي نو په وفاق کښې د وسېدو سره زمونږ د صوبې ګټه وه.

ما وئیل د افغانستان سره خو هم د ډېر ښخوا نه تعلقات دي دوي خو هم پاکستان په رسمیت باندې منلے نۀ دے.

هغۀ وئیل د ازادۍ په وخت کښې ئې دا وئیلي وو چې زمونږ څۀ حصه زمکه پاکستان کښې شامله ده چې انګرېزانو زمونږ نه په زور باندې اخستې وه چې تر کوم وخته پورې دا تنازعه ختمه شوې نۀ وي نو ترهغې وخته پورې مونږ پاکستان په رسمیت باندې نۀ منو.

مونږ ورته ووئیل کۀ دا خبره تاسو د دوي سره برابر کړې وه نو ښه به نۀ وې؟

هغۀ وئیل هندوستان سره پاتې شوې علاقو کښې سره د پاکستانه جمهوري حکومتونه مېنځ ته راغلل چې دا الېکشن په ۱۹۴۶ء کښې شوے او هرکله په صوبه کښې زمونږه حکومت راغلے وۀ او په افغانستان کښې شاهي حکومت وۀ نو مونږ ته د خراب نه خراب جمهوري نظام د باشاهت نه ښۀ ښکارېدو.

هرکله چې زۀ به جلال اباد ته لاړم په یو لوے کور کښې د شاهي مېلمه په حېث باندې به پاتې کېدم او اکثر به ځان له وسېدم. ظاهر شاه یوه ورځې خپل وزیران راولېږل. ما ورته دا ګیله وکړه چې تاسو په ما باندې پهره ولې ودرولې ده او ما بهر هم نۀ پرېږدے چې خپل ښتانۀ وروڼه ووینم او نۀ هغوي ماته راپرېږدے چې ما ووینې او په خپلو کښې څۀ صلاح مشوره وکړو. د دې پابندو نه خو د هندوستان او پاکستان جېل هم زما دپاره ښۀ وۀ د خلقوسره به مې په جېل کښې رابطې کېدې، دبهرنه به راسره هم ملاقاتونه کېدل. وزیرانووئیل مونږه بادشاه رالېږلے یُو تۀ خو زمونږه ملي مشر یې بادشاه وائي چې دۀ ته څۀ تکلیف وي ما دې اګاه کړي او کۀ چرې بیمار وي او په ټوله دنیا کښې کوم یو ملک ته د علاج د پاره ځي چې هلته کښې ئې ولېږو. زۀ پوه

شوم او ما اورېدلے هم وو چې د کابل بادشاهان د پښتنو نه ویرېږي او ستا نه هم په دې وجه باندې خوف کوي هسې نه چې د دې ځاے پښتانهٔ په مونږ پسې راپاڅوي، مطلب مې دا دے چې د کابل بادشاهان هم د پښتنو په مسئلو کښې مخلص نهٔ وو، د دې مجبورۍ د لاسه مونږ خان د کانګرس سره تړلے وهٔ او هغوي هم زمونږ سره دوکه وکړه.

## پرې کړې پوزه:

### (د حجرې یوه عبرتناکه قیصه)

په یو زوړ قبرستان کښې چا اواز وکړو چې دلته کښې په لحد کښې یوه ښځه پرته ده کفن پرې باندې هم نشته او ژوندۍ هم ده. ډېر خلق په دغه موقع باندې راجمع شول یو کس تر لحده سر ورښکته کړلو د هغې ښځې سره په لاس کښې چاړهٔ وه سمدستي ئې ترې نه پوزه پرې کړه. هغې سرې په پوزه باندې لاس اېښے وهٔ او په یو منډه باندې د هغې لحدنه راووتلو. دغه شان د ډېروخلقو نه ئې پوزې پرې کړې وې. په اخره کښې چا یو سپین ږیرے ورګوزار کړو چې د هغهٔ نه ئې هم پوزه پرې کړه. هغه د قبر نه بهر راووتلو او ټولو حاضرینو ته ئې واضحه کړه چې د دغې ښځې سره خو په لاس کښې چاړهٔ ده زما په پوزه ئې ګوزار وکړو.

چې سپین ږیري دا حال ووئیلو په دې کښې بل یو کس هم اواز وکړو چې دې ښځې زما نه هم پوزه پرې کړې ده. دغه شان ټول پوزه پرې کړي راټول شو وئیل ئې دې خو زمونږ د ټولو نه پوزې پرې کړې دي، دې ښځې له سزا ورکول پکار دي. سپین ږیري ووئیل اول دې هغه کس ځان وښائي چې اول ئې د چا نه پوزه پرې کړې ده. چې اولنے پوزه پرې کړې رامخکښې شو سپین ږیري ووئیل ستا د دې پرې کړې پوزې سزا

به دې ښځې له ورکړو د باقي چې ځومره پوزې پرې کړې شوې دي د هغې سزا به تاله درکړو. هغهٔ ووئیل دا ولې؟ سپینږیري ووئیل تهٔ وړومبے سړے وے چې تانه ئې پوزه پرې کړه کهٔ تا چرې دې نورو ته حال وئیلے وهٔ چې دې ښځې زما نه پوزه پرې کړې ده نو دا نور خلق به بچ پاتې شوي وو.

د پښتنو د حجرې دا خبرې او د پښتو متلونه د دې مقصد د پاره وئیلي شوي دي چې خلق ترې نه عبرت واخلي چې په کومه کنده کښې تهٔ پرېوتلے يې او هغه کنده بل ته په نظر باندې راولے نو بل ځوک خو به په کښې نهٔ پرېوځي. مونږ پښتو کښې د ټولو نه خراب عادت هم دا دے چې په ځان باندې د پردې اچولو په نامه خپلې غلطۍ او خامۍ د کشرانو نه پټې وساتو. بيا دغه رنګ غلطۍ زمونږه هغه نسل باربار کوي او چې کله پرې پوه شي هغه هم دغه رنګ په ځان پرده واچوي. دغه شان دغه غلطۍ پټه پاتې شي.

د مثال په توګه باندې احمدشاه میاصېب او عبدالاکبرخان اکبر صېب دواړه ښهٔ لائق او پوهه خلق وو احمدشاه میاصېب وکیل وهٔ او عبدالاکبرخان اکبر ډېر ښهٔ ادیب او شاعر وهٔ او د ډېرو کتابونو لیکونکے هم وهٔ په ۱۹۲۹ء کښې ئې د خدائي خدمتګارو د پارټۍ بنیاد اېښودے وهٔ او د هغې د پاره ئې آئین جوړ کړے وهٔ چې ځاے په ځاے او کلي په کلي به دا جرګې جوړوو او دا جرګې به په حجرو او جوماتونو باندې ګرځي او خلقو ته به وائي چې مونږه د پښتنو کور جوړول غواړو. د هندوستان ټولو قومونو د ځان د پاره سیاسي پارټۍ او نور تنظیمونه جوړ کړي دي چې د قوم سره صلاح مشوره باندې د قوم د ښېګړې کارونه وکړي او د هندوستان د نورو قومونو په صف کښې راشي. دوي د ځلوېښتو مشرانو یوه جرګه جوړه کړه چې زمونږ

ترمنځه کومه مسئله راځي نو دا څلوېښت مشران به د هغې فېصله کوي. په کومو کلو کښې چې جرګې جوړې شوې دي هرکله کۀ هغوي سره راغونډ شي نو هغوي بیا په لویه جرګه بللے شي. په دغه وخت کښې په ۱۹۳۱ء کښې باچاخان تر دلي لاړو ګاندهي او نهرو سره ئې د پښتنو دا تنظیم په کانګرس کښې شامل کړو خپله جنډا او نامه ئې ختمه کړله.

خدائي خدمتګاروته ئې د کانګرس رضاکاروتنظیم ووئیلواو د جرګې مشرانوته ئې د کانګرس په کمېټو کښې د شاملېدو خبره وړاندې کړه چې ډېرو کسانو ته په کانګرس کښې عهدې هم ملاو شوې. احمدشاه میا او عبدالاکبرخان چې د تنظیم صدر او سېکرټري هم وو دا جرګې راوبللې او په هغې کښې ئې د باچاخان نه دا تپوس هم وکړو چې تا زمونږ د صلاح مشورې نه بغېر دا جرګې او اصلاح افاغنه تنظیم او خدائي خدمتګار څۀ د پاره په کانګرس کښې ضم کړل. مونږ خو د کانګرس په ملګرتیا باندې خفه یُو او غواړو چې د هغوي سره دې په شریکه باندې د انګرېزانو نه د ازادۍ مطالبه وکړو خو د خپل تنظیم د لاندې ځکه چې دا زمونږ وطن دے، دا زمونږه خلق دي، د دې وطن د خلقو په مسئلو باندې مونږه ښۀ پوهېږو، کانګرس د ټول هندوستان پارټي ده هرکله چې مونږ په دې کښې ضم شو نو مونږ به د دوي د ټولو فېصلو تابع یُو او زمونږ د خلقو د پاره فېصلې به هم دوي کوي. خو باچاخان د دوي دا خبره ونۀ منله. البته وئیل يئ دوي په ما باندې بې ګناه الزامونه لګوي، په پارټۍ کښې کار کول نۀ غواړي د پارټۍ نه د وتلو د پاره بانې لټوي، خلقو هم د باچاخان دغه خبرو ته رښتیا ووې.

د احمد شاه میا او عبدالاکبر خان یعني د صدر او جرنل سېکرټري په خبرو باندې ئې څۀ کار ونۀ لرلو. تاریخ په خپله ثابته کړه

چې د احمدشاه میا او عبدالاکبر خان خبره صحیح وه.

باچاخان په خپل کتاب کښې په خپله وائي ګاندهي او پټېل زما سره دوکه کړې ده. د دوېم جنګ عظیم نه پس چې انګرېزانو ځان د هندوستانه خلاصولو نو کانګرس او د هندوستان نورو پارټو ته ئې مختلف تجویزونه وړاندې کړل چې په هغې کښې کېبینټ پلان او کرپس کمېشن قابل ذکر دي. په یو وخت کښې د دې فېصله وشوه چې د هندوستان ټولو صوبو ته به خودمختاري ورکوو او دا صوبه چې د خپل مذهب، د رسمونو او رواجونو مطابق د ځان د پاره څهٔ قسمه قانون غواړي هغوي ته به اجازت وي، چې هغه دې ځان د پاره جوړ کړي. د کانګرس د لوري نه عبدالکلام ازاد چې هغه د کانګرس صدر هم وهٔ، نهرو او نور ملګري دې خبرې ته تیار شول.

مسلم لیګ چې جناح او لیاقت علي خان ئې نمائندګي کوله هم په دې خبره راضي شول خو ګاندهي چې په دې خبره باندې خفه وهٔ، د ختمولو د پاره ئې قسم قسم بانې لټولې. وئیل ئې چې هرکله ټولو صوبو ته مکمل خودمختاري ورکړو نو هندوستان خو به په شلو ټکړو تقسیم شي. انګرېزانو چې د ځان د پاره په هندوستان کښې څهٔ رنګ مضبوط مرکز ساتلے دے مونږه هم هغه شان مرکز په هندوستان کښې ساتل غواړو او صوبو ته خودمختاري نهٔ ورکوو. کانګرس پارټۍ په دې خبره باندې یوه اهمه غونډه راوبلله چې په هغې کښې د کانګرس ټولو مشرانو د ګاندهي دې خبرې ته غلطه ووئیله، تر دې حده پورې چې ګاندهي د کانګرس پارټۍ نه استعفیٰ ورکړه فقط یو باچا خان د ګاندهي جي ملګرتیا وکړه چې د کانګرس ټولو مشرانو په طنزیه انداز کښې ووئیل چې باچاخان خو د ګډې په رنګ په ګاندهي پسې په هر لوري ځي. دې خو د هندوستان او د ګاندهي د هندوانو نه زیات

وفادار دے. په دې تجویز کښې زیاته ګټه د پښتنو دې صوبې ته راتلله. د هندوستان د ازادۍ نه مخکښې د پښتنو دې صوبې ته مکمله خودمختاري او ازادي ملاوېده خو فقط ګاندهي او باچاخان ئې مخالفت کړے وۀ.

جناح صېب د هندوستان د مسلمانانو خېر غوښتلو او بهر ئې خپلو ملګرو ته وئیلے وو چې په هره صوبه کښې خپل واک اختیار قایم شي چې هغوي سره د خپل ځان د پاره د قانون جوړولو اختیار هم وي چې په کومو صوبو کښې د مسلمانانو اکثریت دے نو هغوي دې په دغه صوبو کښې د خپل مذهب د رسمونو رواجونو مطابق قانون جوړ کړي. دغه شان د هندوانو او مسلمانانو ترمېنځه به جنګونه هم ونۀ شي او هندوستان به مات نۀ شي او مسلمانانو ته به خپل حق هم ترلاسه شي. جناح صېب چې په کومه خبره باندې خپله رضا ښکاره کوله ګاندهي به د هغې مخالفت کولو او چې ګاندهي په کوم لوري باندې تللو باچاخان به ورپسې په پټو سترګو تللو. د بنګال مسلمانان په دې خبره باندې هم ډېر خوشحاله ووکۀ دا خبره چرې منلې شوې وې نو نۀ به پاکستان جوړ شوے وے او نۀ به د بنګله دېش د جوړېدو څۀ ضرورت پاتې شوے وۀ. په دغه وخت کښې باچاخان د پښتنو د ضرورت نه واقف وۀ او نۀ د دغه وخت د حالاتو نه خبر وۀ. د انګرېزانو او کانګرس ترمېنځه کومې خبرې چې کېدې او په دې کښې چې زمونږ د صوبې په حواله کومې خبرې کېدې، د دې خبرو نه باچاخان هڅو ځان خبر کړے نۀ وۀ. د انګرېزانو په زړۀ کښې دا وو چې دا خو د کانګرس پارټۍ یو فرد دے په دغه وجه ئې د کانګرس د مشرانو سره خبرې اترې کولې. میا احمدشاه او عبدالاکبرخان په دې وجه د باچاخان نه خفه شوي وو کۀ چرې د دوي ځان له تنظیم وے لکه خدائي خدمتګار

نو د دې صوبې په فېصلو کښې به انګرېزانو دوي سره صلاح مشورې کولې او کانګرس به هم ورسره صلاح مشوره کوله. په پښتو کښې يو متل دے چې "رشتيا رشتيا کېږي نو دروغو به کلي روان کړي وي" د هندوستان او د پاکستان د ماتېدو نه درې مياشتې مخکښې چې د ډاکټر خانصاحب د وزارت د ماتېدو خبره شوه نو دوي په بنو کښې د پښتونستان قرارداد پاس کړو. په هندوستان کښې د يوې ازادې صوبې مطالبه ئې هم وکړه او د کانګرس مشرانو ته ئې هم دا خبره وړاندې کړه هغوي د شېطانۍ د پاره دوي ته ووئيل ستاسو مطالبه صحيح ده خو په ښکاره باندې مونږ ستاسو امداد نۀ شو کولے او نۀ په ښکاره ستاسو ملګرتيا کولے شو. د هندوستان او پاکستان د جوړېدو نه مخکښې چې د کانګرس په اخري اجلاس کښې نهرو دا اعلان وکړو چې پاکستان مونږ ومنۀ، باچاخان ووئيل تاسو خو مونږ د شرمخانو په خُلۀ کښې ورکړو دا خو تاسو مونږ په تيارۀ کښې وساتلو دا خو تاسو مونږ سره دوکه وکړه. باچاخان عبدالکلام ازاد سره په خوا کښې ناست وۀ او بار بار ئې وئيل چې مونږ له اوس څۀ کول پکار دي؟

هغۀ ورته ووئيل زما خو دا مشوره ده چې اوس خو په مسلم ليګ کښې شامل شه نو ښۀ به پاتې شي په دې باره کښې انګرېزانو او کانګرس ډېر کوشش وکړو چې مسلم ليګ سره دې د دوي رابطه وشي. د ډاکټر خان صاحب هم دا زړۀ وۀ خو باچاخان په يوه لاره باندې ګاندهي نۀ پرېښودلو. نهرو ووئيل چې کومه پښه زخمي وي د جوړېدو امکان ئې نۀ وي هغه پښه ځان نه پرې کول پکار دي. دا پاکستان يو کال هم پاتې کېدے نۀ شي. د پاکستان جوړېدو د پاره دوي صوبې په مېنځ باندې نيمې کړلې يعنې بنګال او پنجاب.

جناح صېب په خپلو خبرو کښې ووئيل تاسو خو اکثريتي

صوبې د مسلمانانو زمونږ نه ترلاسه کړې وې اوس چې کوم پاکستان مونږ ته سپارے د دې غوښنه ټوله تاسو کانګرس له ورکړه او تش هډوکي مو مونږ ته پرېښودل. داسې پاکستان زمونږ پکار نۀ دے .

ګاندهي باچاخان له پټې تسلی ورکولې چې خبر دے مونږ به تاسو سره د افغانستان او کشمیر د لارې امداد کوو. د باچاخان ټوله کورنۍ تراوسه پورې په دې طمع کښې پراتۀ دي چې د ضرورت په وخت کښې به هندوستان مونږ سره امداد کوي.

داولسمې صدۍ تراخره پورې تقریباًټولومسلمانانوددنیا نیمې حصې ته اسلام رسولے وۀ اود ایشیا او د افریقې او د یورپ ځنو ملکونو کښې مضبوط حکومتونه کول. د مسلمان په حېث د دوي بادشاهۍ وې. په نولسمه صدۍ کښې د مسلمانانو زوال شورو شوے دے پنځوس کاله کښې دننه د انګرېزانو، فرانسویانو او پرتګال د غلامۍ د لاندې راغلل. دمسلمان په حېث به د هر مسلمان په زړۀ کښې دا خبره راپورته کېږي چې آیا زمونږ د دغې وخت په بادشاهانو کښې غلطۍ وې او کۀ دغه نظام چې په دغه ملکونو کښې رائج وۀ، دا غلط وۀ؟

د دې تر تفصیل پورې تلے نۀ دي حالانکې دا د دوو درېو سوو کالو تاریخ دے، د دې تاریخ حوالې مونږ د انګرېزانو او د فرانسویانو د کتابونو نه ورکوو، ځکه چې تاریخ بس هغوي لیکلے دے او نتیجه ئې دا ورکوي چې اسلامي نظام خراب دے. کۀ مونږ د دوي دا تاریخ غلط ثابتوو نو د هغې د پاره مونږ سره څۀ ثبوت نشته دے.

په تېرو دوو سوو کالوکښې زمونږ ډېرو ښو ښو لیکوالو او پوهانو له ئې ایمانونه کمزوري کړي وو. هم دغه وجه ده چې د یورپ او امریکې د لوري نه دا اوازونه راځي چې تعلیم عام کړئ او تعلیم زیات کړئ. دوي ته دا ښه پته ده چې تعلیم یافته طبقه په ثبوتو پسې ګرځي او

ثبوتونه هغه دي چې مونږ ورکړي دي. البته مونږ دا یو ثبوت ښکاره باره ورکولے شو چې زمونږ په وطن کښې کوم خلق غریبانان وي او بې تعلیمه هم وي هغوي ښهٔ کلک مسلمانان وي، د مضبوط ایمانونو خاوندان هم وي. دغه شان چې سړے اسلامي تاریخ ته ګوري نو په اول سر کښې د رسول د خدا ے هغه وېنا او د خدایه هغه سوال چې په دوو عمرانو (یعني عمر ابن خطاب، عمر ابن حشام(ابوجهل)) کښې یو زما ملګرے کړه. هرکله چې دغه کورونو ته پته ولګېده چې اسلام خو په ټول عربو کښې خورېږي او بادشاهي به د مسلمان تر لاسه وي د دغې نه پس ټول مالدار خلق په اسلام کښې شامل شول. دغلته کښې بیا د سړي ذهن ته راشي چې آیا اسلامي نظام کښې خلل دے او که په خلقو کښې دے. د عیسیٰ علیه السلام په ژوند باندې یو څو کسانو د هغهٔ سره مذهب قبول کړے وۀ او د رسول د خدا ے په ژوند باندې یواځې عربو نه بلکې ایشیا او افریقې او نورو ملکونو ته د اسلام پېغام رسېدلے وۀ. خلفاء راشدینو ته چې کوم نظام د نبي ﷺ نه په وراثت کښې پاتې شوے وۀ، د هغې مثالونه تراوسه پورې مونږ ورکوو. په هغې مثالونو کښې او نورو مثالونو کښې دا فرق دے چې هغوي ته به د قومي نوعیت کومه مسئله پېښه شوه نو هغوي به د قرآن او د حدیث په رڼا کښې د هغې رهنمائي کوله یعني د یو نظام په لوري ئې پرمختګ درلود. د هغې نه پس چې څومره راغلي دي نو هغوي تر خپل ذاته پورې پرمختګ کړے دے یعني د دوي فېصلې به داسې مسئلو کښې دا رنګ وې چې دا زما تر ذاته فائده رسوي او کهٔ نقصان رسوي او د کومې خبرې سره به بادشاهي نوره مضبوطه شي. یعني د دوي ټولې فېصلې د خپلې بادشاهۍ د مضبوطو د پاره وې د خدا ے د نظام د مضبوطولو د پاره نهٔ وې. زمونږ عالمان د دغو غلطو د پاسه غلطۍ

کوي او هغه غلطۍ په داسې شکل کښې ظاهروي چې د سړي د یزید سره همدردي پیدا شي وائي چې یزید خو د خپلې مجبورۍ د لاسه امام حسن (رض) او امام حسین (رض) شهیدان کړے دي. کۀ دغه رنګ نۀ وے شوے نو د هغۀ بادشاهي به په کوم رنګ مضبوطیده؟

دغه رنګ اوس وائي چې مشرف خپله بادشاهي مضبوطوي نو ضروري ده چې ټولې مدرسې به ختموي. دغه مدرسو والاچې کومو د ټولو بادشاهانو سره ملګرتیا کړې ده چې دوي د بادشاهۍ د مضبوطولو د پاره هرڅۀ کوي دا جائز دي بیا خو دې دوي دا هم ومني چې دا مدرسې ختمول هم جائز دي. د الزام نه بغیر زمونږ په تاریخ کښې څو د شمار کسان چې هغوي به د الله تعالیٰ د نظام د مضبوطولو د پاره خبره کړې وي او د وخت د بادشاه مخالفت به ئې کړے وي، دغه کسان وروک او بې نامو دي. ښکاره باره خبره ده چې څوک د وخت د بادشاه مخالفت کوي هغه به پانسي کیږي او یا به تر جیله پورې رسي. دغه تاریخ څوک ښودلے شي او بیا په داسې بادشاهۍ کښې چې بادشاه په حق باندې ورسیږي نو د هغۀ په ځائے د هغۀ زوے بادشاه شي او چې زوے ئې په حق ورسي نو د هغۀ په ځائے نمسے بادشاه شي. مطلب دا دے چې د داسې خلقو تاریخ په ځائے پاتې شي ځکه چې راتلونکے نسل بې خبره پاتې شي ځکه چې هر یو سړے امام حسین (رض) نۀ دے چې تاریخ ئې ژوندے پاتې شي.

د ۱۸۵۷ء د هندوستان جنګ ازادۍ باندې ډېر کتابونه لیکلي شوي دي. کوم لیکوال چې لیکل کړي دي نو هغه د خپلې خبرې تصدیق ته رسولو د پاره د انګریزانو د ډائرو او کتابونو حوالې ورکوي. انګریزانو دوي ته غدار وئیلي دي یعني په هندوستان چې کوم جنګ د هغوي سره شوے وۀ مونږ ورته د ازادۍ جنګ نه بلکې

جهاد وایو. اوس کهٔ چرې زهٔ په جهاد باندې لیکل کوم او د یو ځاے دا تصدیق کوم چې ورسره دومره خلق د دې ځاے مړهٔ دي نو په دې پسې به هم د انګرېزانو کتابونه لټوم یعني د هغې نه به تصدیق کوم دغه شان زما نظریه به هم ورو ورو بدلېږي او په اخره کښې به زما نظریه هم دا رنګ شي چې دغه جهاد ته به زهٔ هم د ازادۍ جنګ وایم. دغه شان په حېث د یو مسلمان څوارلس سوه کاله مخکښې چې زهٔ د هغوي کتابونه ګورم هغوي چې څهٔ رنګه د سائنس او ټېکنالوژۍ نه پس خپل مذهب پرېښودلے دے یوائې رواج ترحده پورې چې مړ شي نو ښخېدل، په ګرجه کښې نکاح تړل، ګرجې ته تلل وغېره دا واضحه کوي چې خپل رواج تر دې مذهبه پورې کوه یعني په وادهٔ کښې په اسلامي طریقه باندې نکاح کوه او د ښخېدو په وخت کښې د مړي جنازه کوه. زمونږ ټول لیکوال او پوهان مسلمانانو کهٔ هغه په هر مد کښې دي د هغوي اکثریت ورسره دا خبره منلې ده چې تاسو رواجي عیسایان یئ او مونږه رواجي مسلمانان یُو. دې سره دوباره دا خبره ذهن ته راشي چې دوي پنځوس شپېتهٔ کاله کښې ټول اسلامي ملکونه خپل غلامان کړل. آیا په دې ملکونو کښې څوک موجود نهٔ وو چې د دوي مخالفت ئې کړے وے؟ یا د دې ملکونو نظام حکومت دومره کمزورے وهٔ چې دوي بغېر تکلیف او بغېر جنګونو ټول اسلامي ملکونه قبضه کړل؟

زهٔ وایم چې دا ښکاره باره د بحث مباحثې خبره ده. په دې باندې اسلامي مفکرین د اوسنۍ زمانې ټول حالات مخې ته کېږدي او د خپلو غلطو ټول تاریخ هم مخې ته کېږدي ځکه چې زمونږ د پاره دا درېم جنګ عظیم دے چې عیسایانو او یهودیانو د تېرو اووهٔ اتو کالو راسې د مسلمان خلاف شورو کړے دے او د دهشت ګردۍ په نامه د

جهاد وايو. اوس کۀ چرې زۀ په جهاد باندې ليکل کوم او د يو ځاے دا تصديق کوم چې ورسره دومره خلق د دې ځاے مړۀ دي نو په دې پسې به هم د انګرېزانو کتابونه لټوم يعني د هغې نه به تصديق کوم دغه شان زما نظريه به هم ورو ورو بدلېږي او په اخره کښې به زما نظريه هم دا رنګ شي چې دغه جهاد ته به زۀ هم د ازادۍ جنګ وايم. دغه شان په حېث د يو مسلمان څوارلس سوه کاله مخکښې چې زۀ د هغوي کتابونه ګورم هغوي چې څۀ رنګه د سائنس او ټېکنالوژۍ نه پس خپل مذهب پرېښودلے دے يوائې رواج ترحده پورې چې مړ شي نو ښخېدل، په ګرجه کښې نکاح تړل، ګرجې ته تلل وغېره دا واضحه کوي چې خپل رواج تر دې مذهبه پورې کوه يعني په وادۀ کښې په اسلامي طريقه باندې نکاح کوه او د ښخېدو په وخت کښې د مړي جنازه کوه. زمونږ ټول ليکوال او پوهان مسلمانانو کۀ هغه په هر مد کښې دي د هغوي اکثريت ورسره دا خبره منلې ده چې تاسو رواجي عيسايان يئ او مونږه رواجي مسلمانان يُو. دې سره دوباره دا خبره ذهن ته راشي چې دوي پنځوس شپېتۀ کاله کښې ټول اسلامي ملکونه خپل غلامان کړل. ايا په دې ملکونو کښې څوک موجود نۀ وو چې د دوي مخالفت ئې کړے وے؟ يا د دې ملکونو نظام حکومت دومره کمزورے وۀ چې دوي بغېر تکليف او بغېر جنګونو ټول اسلامي ملکونه قبضه کړل؟

زۀ وايم چې دا ښکاره باره د بحث مباحثې خبره ده. په دې باندې اسلامي مفکرين د اوسنۍ زمانې ټول حالات مخې ته کېږدي او د خپلو غلطو ټول تاريخ هم مخې ته کېږدي ځکه چې زمونږ د پاره دا درېم جنګ عظيم دے چې عيسايانو او يهوديانو د تېرو اووۀ اتو کالو راسې د مسلمان خلاف شورو کړے دے او د دهشت ګردۍ په نامه د

مسلمان خلاف روان دے. عالمان په دې باره کښې وائي چې کوم قومونه د خپل تاريخ نه خبر نۀ وي هغوي د خپل قوم د رونړ سباؤن فېصلې کولې نۀ شي.

اوس دا صحيح تاريخونه راپېدا کول غواړي، د ګيلو معنو وخت هم نۀ دے چې هلته کښې ئې په ماشومانو بمباري وکړه او په فلانۍ مدرسه کښې دومره ماشومان شهيدان شو، په روان جنګ کښې ګيلې معنې نۀ کېږي، هم دا ماشومان، هم دا غريبانان، هم دا بې تعليمه خلق دوي ته صحيح مسلمانان ښکاري او خپل صحيح دشمنان ورته هم دغه ښکاري. کۀ د صحيح مسلمانانو او د صحيح عالمانو د مختلفو ملکونو د مسلمانانو ترمېنځه يوه غونډه وشي چې په دې وخت کښې مونږ څۀ کولے شو؟ ايران نه علاوه د ټولو اسلامي ملکونو سربراهان د مخالفو سره ولاړ دي، چې کوم په خُلۀ باندې د هغوي مخالفت کوي هغوي هم د ذاتي مفادو د پاره د خپلې بادشاهۍ د ساتلو د پاره هر وخت امکان دے چې د دشمن سره ملګرے شي خو د ټولې دنيا مسلمانان ښۀ مخلص دي او غواړي چې په شريکه باندې په دې جنګ کښې برخه واخلو. چونکې سربراهان د مخالفو ډلو سره ولاړ دي نو دا خلق رابطې جوړولو ته نۀ پرېږدي او سرکاري مېډيا د دغې ملکونو زمونږ دا دريم عالمي جنګ عظيم خپلو خلقو ته په ډېر غلط رنګ کښې وړاندې کوي. دا ئې کوشش دے چې عوام خبر کړي چې دا د کفر او اسلام جنګ نۀ دے.

انګرېزانو په دوېم جنګ عظيم کښې د هندوستان د مشرانو نه سوال وکړو چې زمونږ سره په دې جنګ کښې امداد وکړئ کانګرس ورته ووئيل تاسو سره ولې امداد وکړو، زمونږ د جرمنيانو سره څۀ دشمني ده؟ انګرېزانو ورته ووئيل د پولېنډ غونډې غريب ملک

جرمنیانو قبضه کړلو او په زور ئې غلامان کړل مونږ د ځان سره هندوستانے فوج بوځو چې پولېنډ پرې ازاد کړو. نهرو ورته ووئیل دا خو عجیبه خبره ده چې مونږ په خپله غلامان یو او زمونږ فوج د پولېنډ د ازادۍ د پاره ځي؟ چې دوي پولېنډ ازاد کړي، دوي به بیا هم غلامان راځي. دې خبرو په انګرېز کښې دا احساس پېدا کړو چې د جنګ نه پس به هندوستان ته ازادي ورکوو خو د انګرېزانو او د کانګرس او د هندوستان د نورو پارټو سره چې د جنګ په دوران کښې کومې خبرې کېدلې زمونږه د پښتنو مشران د دې صوبې ناخبر وو. سره د دې چې په دغه وخت کښې په دې صوبه کښې د کانګرس د پارټۍ حکومت وۀ هغوي زيات په خپل وخت کښې حکومت ساتلو او مضبوطولو. په وړو وړو مسئلو کښې نښتي وو دا ټولې خبرې مونږ د اسلامي نظام او د انګرېزي نظام په بدوالي او خرابوالي باندې کوو. په دې کښې د دې صوبې او د افغانستان پښتانۀ ځکه شامل وو چې اسلام افغانستان او دې پښتنو په هندوستان کښې خور کړے وۀ ځکه چې کوم اړخ چېړو نو دا ثابتوي چې په هغه وخت کښې حالات څۀ وو؟

انګرېزانو ته درېواړه افغاني جنګونه ياد وو. چې په ۱۹۱۷ء کښې روس په حېث د ازاد سوشلسټ ملک اعلان وکړو په دنيا کښې يو افغانستان وۀ چې روس ئې په رسميت باندې ومنۀ او د هغه وخت نه د امان الله سره بغض کينه ساتل. بل طرف ته لېنن خپلو ملګرو ته ووئيل چې دا څۀ رنګه بادشاه دے چې زمونږ ملک ئې په رسميت باندې ومنۀ. کوم ملګري چې ئې د افغانستان د حالاتو نه خبر وو هغوي ووئيل چې د دوي د انګرېزانو سره مقابلې شوې دي او د انګرېزانو ځيني دوي تنګ دي. د دوي د ملک څۀ حصه اميرعبدالرحمان په ۱۸۹۳ء کښې انګرېزانو ته حواله کړې وه چې

سرمارتین مور ډیورنډ د هندوستان او افغانستان پوله اېښې وه ځکه چې نن هم دغې پولې ته ډیورنډ لائن وائي.

تر ۱۹۳۷ء پورې زمونږه د دې صوبې خلق پښتانهٔ او قبائیل د افغانستان د بادشاه ځلې ته ناست وو او په هرڅهٔ کښې ئې د افغانستان د مشرانو فېصلو ته خپلې فېصلې وئیلې. ۱۹۳۰ء زمونږ د پښتنو د پاره هم عجیبه کال وهٔ. خدائي خدمتګار جوړ شول چې احمدشاه باچا ئې صدر او عبدالاکبر خان ئې مشر سېکرټري وټاکلے شول. په ۱۹۳۰ء کښې د خدائي خدمتګارو ټول مشران ګرفتار شو په دې ګرفتارو ئې پارټي نوره زیاته مضبوطه شوه.

په ۱۹۳۱ء کښې چې څنګ د جېلونو نه راووتل نو نهرو، ګاندهي، پټېل سره باچاخان لیدل کتل وکړل. خدائي خدمتګار ئې د دې صوبې په کانګرس پارټۍ کښې ضم کړل او اصلاح افاغنه تنظیم ئې د دې صوبې رضاکار تنظیم وګرځوهٔ، چې په هغې باندې د خدائي خدمتګارو صدر او جرنل سېکرټري په باچاخان باندې اعتراض وکړو، مونږه د هندوستان د ازادۍ د پاره د کانګرس سره شریک یُو خو خپله پارټي دوي سره ضم کول پکار نهٔ دي، ځکه چې بیابه زمونږ د تقدیر فېصلې کانګرس کوي. د دغې نه پس چې څومره منسټرۍ په دې صوبه کښې جوړې شوې دي، ډاکټرخانصاحب وزیراعلی، دوه زومان ئې منسټران، چې په یحیٰ جان باندې د باچاخان لور وادهٔ وه او د قاضي عطاالله سره ئې هم دغه رشته وه خو په تاریخ کښې د دوي دا منسټري دکانګرس منسټري ګڼلې شوه او تر ۱۹۴۶ء او ۴۷ء پورې وه.

بل خوا ته په دې ځائے کښې چې د ازادۍ کوم تحریکونه شورو شوي وو د مسلمان په حېث باندې د انګرېزانو خلاف وو. کوم خلق چې د جهاد په باره کښې لګیا وو لکه عبدالواحد صاحب عرف

حاجي صاحب ترنګزئي او اډې ملا صېب او د داسې نورو خلقو سترګې د افغانستان په لور وې. د صوابۍ يو دوو ليکوالو د ترنګزو په حاجي او د هغوي په جنګونو باندې کتاب ليکلے دے او ريسرچ ئې پرې کړے دے چې د ډاکټرۍ ډګري ورته هم ترلاسه شوې ده.

هغه وائي چې د ترنګزو باباجي سره د پنځوسو ملګرو اول د بونېريانو سره امداد وکړو هرکله چې د انګرېزانو ن ئې جنګ وګټلو دوباره ئې د ملاکنډ په جنګ کښې د يوسفزو سره امداد وکړو چې د انګرېزانو د لوري نه په هغې جنګ کښې چرچل هم موجود وۀ او د دې جنګ ذکر چرچل په خپل کتاب کښې هم کړے دے. د سوات او د يو بل ملا ذکر ئې هم کړے دے غالباً نامه ئې ورته پاګل ملا (Mad Mulla) ليکلې ده.

د دې سره د ترنګزو حاجي صېب دومره مشهور شو چې سوات، دير او په مهمندو کښې ورسره ډېر خلق ملګري شول. د دير عمراخان په دغه دوران کښې د خپلو ورونو سره چرته روان وۀ چې هغوي ترې نه مشري هم اخستې وه، هغۀ د ترنګزوحاجي صېب نه سوال وکړو چې زما ورونه د انګرېزانو سره ملګري دي زما سره امداد وکړه د ترنګزو حاجي صېب ورته ووئيل دا ستاسو ذاتي د کورنۍ مسئله ده او زۀ صرف د جهاد په نيت باندې راوتې يم او زۀ صرف انګرېزان د دې ملک نه ويستل غواړم او دا ستاسو خپلو کښې په نوابۍ باندې جنګ دے. هغۀ ورته ووئيل زما د ورونو سره انګرېزان ملګرتيا کوي. حاجي صېب ترنګزو ورته واضحه کړه چې کۀ تۀ چرې د نوابۍ نه انکاري يې چې دا هرڅۀ دې زما د ورونو ترلاسه وي خو د انګرېز خلاف دې زما سره په شريکه باندې راپاځي، په داسې خبرو باندې حاجي صېب ترنګزئي په ټولو قبائيلو کښې مشهور شو او د

ټولو قبائیلو د اړخونو نه د دۀ د ملګرو له خوا په انګرېزانو باندې حملې شورو شوې. انګرېزان ئې دومره تر پوزې راوستل چې انګرېزانو په مهمندو کښې د ۀ په ځاے باندې بمباري وکړه. هغه بمونه وئه چلېدل اوس هم په هغه ځاے کښې موجود دي چې په هغه ځاے کښې د دۀ دېره وه او مزار ئې هم هلته دے.

انګرېزانو د دې پروګرامونو د مخ نیوې د پاره يو عجيبه کار وکړو چې هغه کار تراوسه پورې د پښتنو سره کېږي او جاري دے. انګرېزان زمونږ د اسلامي نظام د بادشاهانو نه زيات خبر وو بل د هندوستان د ټولو قومونو په باره کښې ئې يو مخصوص نظر چې هغې ته په سائنسي حواله باندې وګورې نو اوس هم صحيح دے. د مثال په توګه بنګاليان ئې غداران ګرځولي دي، سندهيانو له لته ورکوئ او کار ترې نه اخلئ او پنجابے ډېر ښۀ سپاهي دے د دۀ نه کار اخله او حکومت پرې کوه. د بلوچيانو په باره کښې ئې ووئيل چې د دوي قدر کوه نور چې څۀ دې زړۀ غواړي هغه پرې باندې کوه. د پښتون په باره کښې وائي دا د پېسو سړي دي په پېسو باندې ئې اخله چې څۀ پرې کوې هغه پرې کوه. په دغه دوران کښې ئې بې شماره غريبانان موليان په پنځۀ روپۍ مياشت باندې ترلاسه کړل او ورته ئې ووئيل چې په قبائيلو او د دې ځاے په پښتنو کښې د اسلامي نظام د فقهې په حواله باندې دا خبره د خلقو غوږونو ته ورسوئ چې جهاد هله شي چې هرکله اميرالمؤمنين اعلان وکړي نو ستاسو بادشاه خو د جهاد اعلان کړے نۀ دے نو دې ته جهاد څۀ رنګ وئيلے شي؟

دې پروپيګنډو په قبائيلو او زمونږ په پښتنو کښې ډېر زيات اثر وکړو، بيا ډېرو قبائيلي مشرانو او د دې ځاے پښتنو مشرانو د ترنګزو حاجي صاحب له مشوره ورکړه چې بذات خود لاړ شه د کابل د

بادشاه نه دا لیکل راوړه چې دا جهاد دے او یا دې په ښکاره باندې اعلان وکړي چې انګرېز زمونږ ښکاره باره دشمن دے.

د ترنګزو حاجي صېب وائي هرکله چې زۀ ډېر مجبور شوم او د کابل بادشاه له لاړم او هغۀ ته مې دا خبره وړاندې کړه هغۀ ما ته په جواب کښې ووئیل ماله یوڅو ورځې مهلت راکړه چې زۀ پرې د خپلو ملګرو سره صلاح مشوره وکړم چې آیا دا جهاد دے او کۀ نۀ دے؟

د ترنګزو باباجي وائي په سبا له د دغې بادشاه اهلکارو زما تر غوږه کړه چې بادشاه خو انګرېزانو له جواب ولېږلو چې راشئ حاجي صاحب خو زما سره دے، انګرېزان په دغه دوران کښې د وزیرو مسیدو په جنګ کښې بوخت وو هغوي واپسي د کابل بادشاه له جواب راولېږلو چې مونږ په دې وخت کښې راتللو ته جوړ نۀ یو البته د ترنګزو حاجي صېب دغلته مړ کړئ. په بله ورځ باندې ورته د دغې بادشاه اهلکارو دا خبره دوباره وکړه. د ترنګزو حاجي صېب چې دوباره د کابل بادشاه سره ملاقات کولو حاجي صېب د کابل بادشاه ته ووئیل تۀ مسلمان یې؟ هغۀ ووئیل بې شکه زۀ مسلمان یم، حاجي صېب ورته کلمه تېره کړه. آیا دا کلمه تاله درځي؟ بادشاه ورته هم دا کلمه تېره کړه حاجي صاحب وائي ما ورته ووئیل چې زۀ تر هغې پورې دلته ایسار یم چې ترڅو پورې تا ماله د خپل سوال جواب راکړے نۀ وي.

باباجي وائي د یخنۍ په موسم کښې په دې خبرو کولو باندې په بادشاه باندې خولې راغلې ما ورته ووئیل د الله تعالیٰ په لاره کښې سر ورکول دا هم په فرضو کښې راځي. بادشاه سترګې سرې کړې وئیل ئې تۀ دلته ماله چا رالېږلے یې او د بادشاه ترمخه څوک دا رنګ نېغې خبرې کوي؟ حاجي صېب وائي ما په خپل سر باندې یوه ګوته اوچته ونیوه، زۀ هغې بادشاه رالېږلے یم چې زما هم بادشاه دے او ستا هم

بادشاه دے. هرکله کۀ ستا د لاسه دلته کښېږ مړ هم شم نو زما د پاره دا هم شهادت دے. کۀ چرې دوه ګوتې لیکلې راکړې چې د انګرېز خلاف جنګ جهاد دے نو دلته کښې زۀ خپل خون تاته بخښم. زما ډېر ملګري شته دے چې زما نه ډېر تکړه دي او ستا به هم په اسلامي تاریخ کښې د سرو زرو په الفاظو باندې نامه ولیکلې شي چې یو افغان مسلمان بادشاه د انګرېز خلاف جنګ ته جهاد وئیلے دے او زۀ نۀ له تانه فوج غواړم او نۀ له تانه وسله غواړم او نۀ له تا نه دولت غواړم ځکه چې ماته دغه څیزونه ستا نه اخستل حرام ښکاري. البته ستا د لاس لیک به انګرېزانو ته نۀ ښایم. فقط د مسلمانانو ملګرو د ډاډ د پاره او ستا د عزت ساتلو د پاره به دومره قدر وایم چې زمونږ د کابل بادشاه هم دے او دا لیکل ئې هم راکړل. د دې نه پس بادشاه ووئیل سبا له به درته حال واضحه کړم. په سبا له ئې یو اهلکار له خپل لاس لیک ورکړے وۀ. زۀ ډېر خوشحاله شوم چې ځه که خبري هغه لیکل ئې جوړې راکړل، په هغې کښې د هغۀ د لاس لیک وۀ چې د انګرېزانو په مقابله کښې زۀ تا اخستے نۀ شم او چې څومره زر کېږي نو د دې ځاے نه پښې وباسه او دلته کښې زۀ ستا نوره مېلمستیا نۀ کوم. انګرېزان وخت په وخت باندې اطلاع رالېږي چې دغلته ئې ختم کړه خو زۀ داسې کولے نۀ شم ځکه چې تۀ افغان هم یې او مسلمان هم یې. حاجي صېب وائي چې اوله ورځ راته د بادشاه اهلکارو تر غوږه کړل چې بادشاه دې وژني، نو ما خپل ملګري رخصت کړل او ورته مې ووئیل چې ماته په کونړ کښې ایسار شئ، هرکله چې د بادشاه لیک زما ترلاسه شي نو کونړ ته به درشم. نو ټول ملګري به په یو ځاے ځو. د حاجي صېب د خُلې وېنا ده چې تر کونړه یواځې روان یم سوچونه کوم چې په ټوله دنیا

کښې به یو داسې ملک نهٔ وي چې د هغې بادشاه مسلمان وي او ماته به دا رنګ لیکل راکړي چې د انګریز خلاف جنګ جهاد دے؟

د حاجي صېب ملګري وائي چې د ماښام مانځهٔ له حاجي صېب تر کونړه رارسېدلے وهٔ مونږ هم د دې د پاره ایسار وو چې حاجي صېب به مونځ راکوي، حاجي صاحب راغے امامتۍ ته ودرېدو، هرکله چې د دوېم رکعت قرآت وخت شو نو حاجي صېب په ژړا باندې شو. حاجي صاحب ووئیل "اے پروردګاره ستا په دې ویره دنیا کښې یو مسلمان بادشاه هم نشته دے چې د کافرو سره جنګ ته جهاد ووائي؟ اے پروردګاره بل خواته دے د انسان قتل ته د ټول انسانیت قتل وئیلي دي کهٔ دا باشاهان وژنو نو کلمه هم وائي او د کافرانو ملګرتیا هم کوي بیا به ستا جرم داره یو چې د انسانیت د قتل بنیاد مونږ کښېښودلو چې دا رنګ بادشاهان تر څو پورې ژوندي وي نو مونږ خپل فرض پوره کولے نهٔ شو".

زهٔ وایم په دغه ځاے کښې اوس هم مونږ انښتے یو د دې خبرو کولو نه زما دوه مطلبه دي هغه دا چې انګرېزانو څو کرته وئیلي وو چې زمونږ ټولو بادشاهانو ته لویه خطره د پښتنو نه ده هغوي چې څهٔ وخت دا بې ضمیره مولیان په پېسو باندې اخستلي وو او دا پروګرامونه ئې پرې باندې ترسره کول چې ستاسو بادشائے وقت ترڅو وئیلے نهٔ وي چې دا جهاد دے نو دا جهاد کېدے نهٔ شي. هغوي ته علم وهٔ چې دا علاقه زمونږ د هندوستان سره تړلې ده، خو زمونږ په هندوستان کښې بادشاه نشته دے. مونږ بادشاهان یو خو ټول پښتانهٔ د کابل بادشاه خپل بادشاه ګڼي نو دوي به هلته کښې هغهٔ له ځي او هغه زمونږ د لاس سړے دے. هغه چرې هم دا اجازت نهٔ ورکوي. بل خوا ته د ترنګزو حاجي صېب د چارسدې وهٔ په کومو قبائیلو کښې چې ګرځېدلو هغه

هم انګرېزانو د هندوستان سره تړلي وو نو د هغوي سترګې هم د هندوستان په لوري نهٔ وې البته د افغانستان په لوري وې. مطلب دا چې انګرېزانو هم دا منل چې ټول پښتانهٔ افغانان دي او دوي د خپلې هرې فېصلې د پاره تر افغانستانه ځي. بل خوا ته د عوامو نظر هم په دغه لوري باندې وهٔ. د هندوستان غونډې لوے ملک او غټو غټو پارټو اوسیاسي لیډرانو ته نهٔ ورتلل او د افغانستان د خرڅ شوي بادشاه نه ئې طمع لرله. سره د دې چې په دغه دوران کښې په دې صوبه کښې الېکشن هم شوے وهٔ او دا واحده د مسلمانانو صوبه وه چې کانګرس په کښې الېکشن ګټلے وهٔ او د کانګرس پارټۍ سرے ډاکټرخانصاحب د دې صوبې وزیراعلی هم وهٔ.

دغه وړومبے سوال چې د ځانه مونږ کوم کړے دے چې په پنځسو کاله کښې دننه دننه اسلامي ملکونه څنګه غلامان شو، آیا د دوي فوجونه نهٔ وو چې ځاے په ځاے ئې مقابلې کړې وې، آیا دې بادشاهانو په خپلو ملکونو کښې دا رنګ نظام جوړ کړے نهٔ وهٔ چې هغوي دا رنګ اداري وساتي. البته په دې اسلامي ملکونو باندې یورپي ملکونو په خپلو کښې مقابلې کړې دي، یو وائي فلانے اسلامي ملک به زما غلام وي، عجیبه خبره دا ده چې د دغې یورپي ملکونو په خپلو کښې جنګ وهٔ نو فوجي جرنېلان به د دغې بهرنه ملکونو خلق وو او باقي فوج به د هغې ملک خلق وو. چې د هندوستان غونډې په لوے ملک کښې د انګرېزانو د خُلې وېنا ده چې مونږ د اتیاؤ زرو نه زیات شوے نهٔ وو چې په دې کښې مونږه ښځې او ماشومان هم شمارلي دي هرکله کهٔ ښځې او ماشومان ترې نه مونږ وباسو نو مطلب دا شو چې د شلوېښتو زرو نه کمو عوامو په هندوستان بادشاهي کړې ده. د هندوستان په چې د انګرېز فوج د کله نه ګولۍ چلولې دي هغوي

صرف په خُلهٔ باندې ارډر کړے دے باقي په هغوي خپلو هندوستانیانو ګولۍ چلولې دي. د هغوي په هندوستاني فوج کښې مسلمانان، سیکان او هندوان یعني ټول قومونه وو. دغه پولیس، سمندري فوج، هوائي فوج پټې ادارې لکه "سي ائي ډي" چې تولو ته ئې په شریکه د قانون نافذ کولو اجازت ورکړے وهٔ، د دې سره ئې داسې نورې هم ډېرې ادارې جوړې کړې وې چې د حکومت د کار چلولو د پاره لازمي وې یعني د ټولو ادارو د پاره ئې خپل خپل قانونونه جوړ کړي وو چې دا ادارې به په دا رنګ جوړوي او په دا رنګ چلوي. په ټولو ادارو باندې ئې د دې خلق لګولي وو او هم په دوي باندې ئې چلولې، په خپل ملک کښې لیکلے قانون نشته دے صرف جج ته اختیار وي چې هغهٔ ته څهٔ انصاف ښکاري هم هغسې کوي خو زمونږه ملکونو له ئې لیکلے قانون ورکړے دے چې تراوسه پورې د هغوي نه په وراثت کښې پاتې شوے قانون باندې مونږ عمل کوو. څکه زمونږ ججانو صاحبانو ته د انصاف فیصلې کولو اختیار نشته دے صرف د هغې قانون ترمخه به فیصلې کوي کوم چې دوي مونږ ته لیکلے راکړے دے. زمونږ د یو عدالت فیصله باندې چې بل اوچت عدالت ته اپیل کوو نو هغه اپیل په دې بنیاد باندې کولے شو چې آیا دا فیصله د قانون مطابق شوې ده او کهٔ نه؟

دغه شان زمونږ د انصاف الفاظ د مزغو نه وتلے دي ورسره جائز او ناجائز هم دغه شان په اسلامي ملکونو چې دوي بادشاهي کړې ده هغوي له ئې لیکلے قانون ورکړے دے چې نن پرې هم په هغه شکل کښې عمل کېږي. د دې ادارو جوړولو او چلولو د پاره چې دوي کوم قانون جوړ کړے دے د هغې چې څومره داد ورکوو د هغې حقدار دي. د یو ملک چلولو د پاره وړاندې دا ضروري وي.

د پاکستان فوځ چې د جوړولو د پاره د خلقو اخستلو د پاره کوم قانونونه جوړ کړي دي د هغې په وجه باندې د دنيا په بهترينو فوجي ادارو کښې راځي. هرکله چې په اسلامي ملکونو کښې خپل حکومتونه وو ايا دوي دا رنګ اداري ولې نۀ جوړولې؟ مسلمانانو چې هرکله سپېن قبضه کړو نو په سمندري جهازونو کښې تلے وو هلته کښې چې د کوم فوج ترمخه شولو هغوي د دوي نه يو په شل باندې زيات وو. د دواړو فوجونو د مخامخ کېدو نه مخکښې چې کومې خبرې اترې کېدې په دې کښې هغوي ووئيل مونږ خو ستاسو نه يو په شل زيات يُو او زمونږ خو دا لوے ملک دے، نور فوج هم زمونږ راروان دے، مونږ سره به مقابله څنګه کوئ؟ البته په کومو کشتو کښې چې راغلي يئ په هغې کښې واپس لاړ شئ او کۀ د دې باوجود ستاسو جنګ ته نيت وي نو د خپل ژونده لاس ووينځئ.

د اسلامي فوج مسلمانانو ورته په جواب کښې ووئيل چې مونږ د جنګ کولو شوقيان نۀ يُو خو د دې نه مخکښې مونږه تاسو ته يو پېغام راليږلے وۀ هغه اسلام ته د راتلو دعوت وۀ کۀ هغه تاسو ته منظو وي نو مونږ به د سبا نه واپس ځو او کۀ هغه تاسو ته منظور نۀ وي نو بيا دا جهاد دے بيا هغې ته تيار شئ. هغوي خپلو مشرانو ته د اسلام دعوت يوړلو هرکله چې هغوي اسلام ته د راتلو دعوت قبول نۀ کړو نو دوي ووئيل سبا له جهاد ته تيار شئ. اسلامي فوج د شپې خپلو کښې کښېناستل او محسوس ئې کړه چې د مخالف فوج د زيات تعداد په وجه باندې زمونږ د ډېرو ملګرو زړونه نۀ دي نو اعلان ئې وکړو چې ټولې کشتۍ وسېزئ چې د هيچا په زړۀ کښې د تېښتې طمع نۀ وي. هرکله چې هغه جنګ ئې وګټلو نو هغه ملک له ئې په دارنګ نظام ورکړو چې خلق به په شوق باندې اسلام ته راتلل.

دغه شان هر ملک ته چې به تلل هلته ذاتي بادشاهان جوړول نه وو بلکې هغه ملک له ئې د اسلامي فقهې په رڼا کښې داسې نظام تشکیل کړو چې په هغې به د عدل او انصاف، د مالدار او د غریب ترمېنځه د برابرۍ یو سوچ وۀ نو هرچاته به خپل حق رسېدلو. د هغه ځاے د خلقو اکثریت به مسلمانانو له دعوت ورکولو چې راشئ او زمونږ دا ملک هم قبضه کړئ. دغه شان ډېر ملکونه وو چې بغېر جنګ او جدله مسلمانانو ته حواله شو. اصل کښې د جرنېلانو ګټه نۀ وه بلکې دا د اسلامي عدل او انصاف ګټه وه چې د هغې وخت د بادشاهانو د ظلم زوره تنګ په خپل شوق باندې تر خپلو ملکونو راوستل او غوښتل ئې چې د برابرۍ په بنیاد هرچاته خپل حق ملاوېږي او د ظلم زوره دې هم خلاص وي. هرکله چې په هغه ځایونو کښې ذاتي باچاهۍ جوړې شوې او د هغوي د ذاتي بادشاهۍ بچ کولو د پاره هغوي هم هغه ظلمونه او زیاتے شورو کړے وۀ چې کوم ورسره د عیسایانو بادشاهانو کولو نو خلق په خپله د دوي خلاف راپاڅېدل څنګه چې په یو وخت کښې د خپلو ظالمانو حاکمانو خلاف مسلمانانو له ئې دعوت ورکولو چې د دې د خلقو د ظلم زوره ځان خلاص کړو. د صلیبي جنګونو نه پس د عیسایانو او یهودیانو په خپلو کښې دا صلاح وه چې دوي اکثر جنګونه په نظریه باندې ګټي او کۀ هرکله په یورپ کښې راننوتل او زمونږ په خلقو کښې ئې دا نظریه خوره کړه نو زمونږ خلق به هم په دغه نظریې پسې ځي. خو دوي چې یو ملک فتح کړي نو مشري به ئې ضرور چاته حواله کوي د هغې مشر په حواله باندې دوي پېغام ورکوي. هرکله چې دغه مشران ورله مونږ خراب کړو نو لاندینے پروګرام به ئې ضرور ودرېږي په کوم پروګرام باندې چې دوي جنګ ګټلے وي. د دوي هغه نظریه به هم خوره نۀ شي او بادشاه به ئې

هم کمزورے وي. دغه شان د هغه وخت مشران چې په کوم ځا ے کښې مقرر شوے وي، هغۀ به په عياشو کښې، په شرابو کښې، په نشو کښې دغه يورپيانو سره مقابلې شورو کړې او د خلقو په نظر کښې به د دوي اسلام او د مسلمان د نظريې په وجه باندې چې کوم عزت درلود هغه ختم شو.

د دغې بادشاهانو جنګونه د يوې علاقې د اخستو يا د خپلو علاقو د ساتلو جنګونه شو. دغه شان چې د کوم پيغام خورولو د پاره مسلمانان بهر وتلے وو ډېر جنګونه ئې وګټل، ډېر ملکونه ئې فتح کړل خو د هغې نظامت ئې په اسلامي طريقه باندې ونۀ کړے شو په اخره کښې تر دې حده پورې راغلل چې دې اسلامي ملکونو په علاقو باندې په خپل مېنځ کښې جنګونه شورو کړل.

د خلفائے راشدينو د دور نه پس د اجماع او اجتهاد موقعه مسلمانانو ته ترلاسه نۀ شوه چې دوي دې د شرعې مطابق د نوو وختونو سره دنيا کښې قدم پورته کړي. بل خوا ته د مخالفو حربې ټولې کاميابې شوې، کور په کور ئې مسلمانان د فقهو په نامو باندې په خپلو کښې جنګول چې تراوسه پورې مسلمانان خپلو کښې دې شک کښې دي چې زۀ صحيح مسلمان يم او کۀ دغه بلې فقهې والا صحيح مسلمان دے؟ حالانکې دواړه فقهو والا عيسايانو او يهوديانو ته خپل دشمن وائي خو بيا هم نۀ يو کېږي، دا نۀ ګڼي چې دا خبره خو زمونږ شريکه ده چې درې سوه کاله مخکښې د مسلمانانو په خپلو کښې جنګونه شوي دي او کۀ د عيسايانو يهوديانو سره شوي دي. د هغې د مسلمان د لاس ليکلے تاريخ نشته دے. هرکله کۀ يو مسلمان تاريخ ليکلے هم دے نو هغه د انګرېزانو، فرانسيسيانو او جرمنيانو حوالې ورکړې دي. د دې دا مطلب شو چې مسلمان هډو د سره تاريخ

لیکلے نهٔ دے او یا پرې د دې لیکوال اعتبار نهٔ وهٔ او یا د دغه لیکوال په زړهٔ کښې دا وو چې د کتاب لوستونکي به د انګرېزانو او جرمنیانو په خُلهٔ باندې اعتبار وکړي او د مسلمان په خُلهٔ باندې به اعتبار ونهٔ کړي. دا هم د غلام ذهنیت خیال وي په هر ځاے کښې چې بادشاهي پاتې شوې ده نو په دغه ځاے کښې به غلامي هم وي. بادشاهي کهٔ ښه او کهٔ خرابه وي د هغې د ټولو اړخونو نه پس غلط اړخ هم دغه دے چې دا د غلامۍ ذهنیت پېدا کوي. غلامي کهٔ غلط فعل دے خو د ختمولو لارې ئې هم ډېرې دي. د غلامۍ نه ځان خلاصول اسان دي خو کوم قومونه چې د غلامۍ ذهنیت لري هغه قومونه به ټول عمر غلام وي، ځکه چې ذهني غلامي نهٔ ختمېږي.

دهندوستان اوپاکستان شپېتهٔ کاله وشوچې په نامه باندې ازاد شوي دي نن هم د انګرېزانو د ژبې، کلچر، ثقافت، تاریخ، قانون او د هغې ټولو روایاتو چې کوم هغوي ته ښکارېدل چې مونږ پرې دا قومونه ښهٔ غلامان ساتلے شو هغه ټول مونږ خپل کړي دي او عمل پرې کوو. بیا دغه شان دا ذهني غلامي مونږ خپلو راتلونکو نسلونو ته هم په وراثت کښې پرېږدو. په افغانستان کښې ټول قومونه افغانان دي خو دا په دعوه باندې وایم چې هر پښتون افغان دے خو هر افغان پښتون نهٔ دے. په افغانستان کښې د هر قسمه تاریخ تېر شوے دے خو په تاریخ کښې چرې غلام پاتې شوے نهٔ دے. بادشاهان پرې هم ډېر تېر شوي دي خو پښتنو د بادشاه په حېث باندې خپل بادشاه منلے نهٔ دے ځکه چې دوي د غلامۍ په چل باندې نهٔ پوهېدل او نهٔ د چاپلوسۍ په چل پوهېدل. احمدشاه بابا چې د ټول هندوستان بادشاه شو نو وې وئیل:

د دهلي تخت هېرومه چې را یاد کړم
زما د ښکلې پښتونخوا د غرو سرونه

د دهلي تخت ئې پرېښودلو خو چې د خپلې پښتونخوا د غرونو تر سرونو راغلو نو د خپلو خلقو سره د يو عام سړي په حېث ملاوېدهٔ. خو د نورو قومونو خلق چې کوم ئې د هندوستان د جنګ د پاره بوتلے وو هغوي به ورته خپل خلق نهٔ پرېښودل دوي به وئيل دا خو د ټول هندوستان بادشاه دے تاسو له پکار دي چې د دهٔ د عزت خيا وساتئ. پښتنو به ورته وئيل دې مونږ په دې باندې پېژنو چې د فلاني زوے دے، پښتون دے او زمونږ د قومه دے. دغې وفادارو درباريانو چې ازبک، تاجک او ترکمن وو په چاپلوسئ او مکارئ باندې ئې ځان بادشاه ته نزدې کړلو په فارسئ کښې ورته "در دوران" خطاب ورکړو خو د خپل پښتون قوم نه ئې لرې وساتلو، نهٔ ئې پښتنو ته پرېښودلو او نهٔ ئې پښتانهٔ دهٔ ته پرېښودل. هغهٔ چې په کومه ژبه کښې شاعري کوله هغه ئې د هغهٔ بچو ته سپکه کړه او چې د کومو خلقو د پاره هغهٔ د دهلي تخت پرېښے وهٔ هغه ئې د هغهٔ دشمنان کړل او د هغهٔ بچو په دغه قومونو کښې ښځې وکړې، نمسو کړوسو له ئې پښتو ژبه نهٔ ورتله او په پښتو ژبه وئيلو به ورته ځان سپک ښکارېدهٔ.

دا قومونه په افغانستان کښې د بهر نه راغلي دي. کهٔ ازبک دي د ازبکستان نه راغلي دي. کهٔ تاجک دي د تاجکستان نه راغلي دي. کهٔ ترکمن دي د ترکمانستان نه راغلي دي. په دغه ملکونو کښې بادشاهئ او غلامئ دواړه پاتې شوې دي. د دوي په وينه کښې د غلامئ او چاپلوسئ په ذريعه بادشاه ته ځان نزدې کول او د هغهٔ په نزديکت باندې په زور بادشاهي کول او د هغهٔ طاقت غلط استعمالول، دغه شان سازشونه د بادشاه په ذهن کښې راوستل چې ستا قوم ستا خلاف دے او کهٔ مونږ تاسره نهٔ يو، نو ستا ساتنه به څوک کوي او کهٔ مونږ ستانه لرې شو نو دا حکومت به څوک چلوي؟

د کابل بادشاه تر کابل پورې محدود پاتې شوے دے او بهرني قومونه ټول په کابل کښې د هغۀ نه خواوشا پراتۀ وو. د کابل نه بهر د کابل بادشاه چا منلے نۀ دے، کومه لويه جرګه چې به بادشاه راغونډه کړې وه، په يو کال کښې به ئې يو ځل راغوښتل، خوراکونه، انعامونه به ئې ورکړل خو د هغې جرګې د مشرانو اکثريت ئې پښتانۀ وو، د بادشاه په ژبه باندې نۀ پوهېدل، ترجماني به دواړو اړخونو ته دغه خلقو کوله. په افغانستان کښې چې به ګرځېدلے نو ټول افغانستان به يو شان ښکارېدلو او کابل به بل شان ښکارېدو. دا د بهر نه راغلي قومونه چې شاهي درباريان وو او په کابل کښې پراتۀ وو خپلې جامې او ژبې او خپل کلچر ګډاګانو او سندرو کښې د لندن او د پېرس پېښې کولې. پرتوګ او قميص والائې هوټل ته نۀ پرېښودل، سنېماګانو ته ئې نۀ پرېښودل، د غرونو ځناورو نامه ئې ورله اېښې وه. چې چا به ورته څوک پښتون په ګوته کړو چې دې هم افغان دے. دۀ به جواب ورکړو چې افغان "غُل" دے.

لويولويو طاقتونو کوشش کړے دے چې افغانستان دې غلام کړو. انګرېزانو، روسيانو، امريکنيانو خو چې تر کابله پورې لاړ شي او په کابل کښې سره کښېني نو ورته ثابته شي چې کابل افغانستان دے او نۀ افغانستان يواځې کابل دے. کۀ انګرېزان تلي وو او کۀ روسيان تلي وو او يا امريکنيان تلي وو دغه بهرني قومونه ورته راغونډ شوي دي چې د هغوي په نامه باندې دا پروپېګنډه خوره کړې چې دې افغانانو مونږ راغوښتي يُو چې د دوي سره امداد وکړو چې افغانستان ازاد کړو. دا خبره د انګرېز هم وه، د روسيانو هم وه او د امريکنيانو هم وه. آيا افغانستان د چا نه ازادوئ؟ ۶۱ فيصده ابادي په افغانستان کښې د پښتنو ده باقي دېرش فيصده کښې اول قومونه راځي چې

سپوا د یو قوم نه ټول د بهر نه راغلي دي، چې څوک سل کاله اګاهو، څوک دوه سوه کاله مخکښې د ازبکستان، تاجکستان، ترکمانستان نه راغلي دي. هرکله چې خطره پېښه شوې ده لکه «د طالبانو وخت» د دغه بهرني ملکونو نه ئې امداد غوښتے دے، د دې دېرش فیصده مهاجرو نه چې د زرګونو کالو نه په دغه علاقو کښې وسېدونکو پښتنو په ډېره مینه باندې په خپله خاوره اباد کړي وو او خپلې نامې ئې ورته ورکړې ځکه چې دوي ته هم افغانان وائي. د دوي ژبه ئې بنده کړې نۀ ده، د دوي وزارتونه حکومت هم د دوي په لاس کښې پاتې شوے دے. په هغۀ باندې هم چرته چا ګوته اوچته کړې نۀ ده. هر یو به وائي دا زمونږه افغانان ورونه دي او مسلمانان دي، د قوم په حېثیت باندې په افغانستان کښې اقلیت دے هسې نه چې دوي خفه شي.

په یو وخت کښې ما په خپله چې برهان الدین رباني د افغانستان صدر او احمدشاه مسعود لوے وزیر وۀ په دغه دوران کښې د ګلبدین د لوري نه په افغانستان بمبارۍ کېدې، پینځو سوو کسانو افغانانو یوه جرګه جوړه کړه چې افضل خان لالا په هغه وخت کښې اسلام اباد کښې په وفاق کښې وزیر وۀ د هغۀ په ذریعه مونږ د دې وفد ملاقاتونه د اقوام متحده د مشرانو سره وکړل. محمود مصري د اقوام متحده د افغانستان د چارو مشر وۀ، هغۀ ته مونږ دا تجویز وړاندې کړو چې افغانان خپلې مسئلې د جرګې په ذریعه حل کوي. په پېښور او کوئټه کښې وسېدونکي، په افغانستان کښې د مختلفو قومونو مشران راغونډ کړي دي، چې دوي به ټولو جنګي مشرانو سره لیدل کتل کوي او د هغوي نه به لیکلے واک اختیار اخلي بیا به پرې دوي په خپلو کښې فېصله کوي. اول خو هغه په خندا شو وئیل ئې چې اقوام متحده دا مسئله حل نۀ کړه نو تاسو به ئې څنګ حل کړئ؟

مونږ ورته ووئیل چې دا د افغانانو روایات دي، د افغانستان د مسئلې حل په دې روایاتو باندې ممکن دے. هغهٔ وئیل په دې باندې به څومره وخت لګي؟ مونږ ورته ووئیل د کم نه کم لس پنځلس ورځې. هغهٔ وئیل دا ډېره ښه خبره ده زهٔ به ستاسو په طمع یم. د هغې نه پس مونږه دغه مشران ټول افغانستان ته واستول چې هغوي د یونس خالص، محمدي، ګلبدین، رباني او مسعود نه لیکلے اختیار واخلي.
هر یو ورته په خپل خپل پېړه باندې لیکلے ورکړل. هغه دا چې دې جرګې ته مکمل اختیار ورکړلو چې د افغانستان د مشرانو ترمېنځه کومې مختلفې تنازعې دي چې هغه په څهٔ طریقه باندې حل کړي. دوي چې څهٔ څنګه فېصله وکړه هغه به زهٔ ه سر سترګو منم. چې څنګ دوي وائي هغه شان به پرې عمل کوم.

دا لیکلې فېصلې تراوسه پورې ماسره پرتې دي. دا خبرې اترې تقریباً پنځلس ورځو کښې وشوې په شلمه ورځ باندې مونږ د محمود مصري سره دوباره ملاقات وکړو چې د یو یو مشر د لاس لیک ورته مونږه وښودلو چې مونږ د ټولو نه واک اختیار اخستے دے. د خوشحالۍ نه د کرسۍ نه پاڅېدلو او په ګډا شو وئیل ئې چې دا زما د پاره تاسو د ټولو نه مشکله مسئله حل کړه، تاسو ټولو ته په دې خوشحالۍ کښې د اسلام اباد په هوټل کښې د مېلمستیا او ورپسې اخبار والاخبرې اترې او اعلان به هم وکړو چې د اخبار په ذریعه باندې ئې دنیا ته ښکاره کړو.

پنځهٔ بجې مازیګر په اسلام اباد هوټل کښې زمونږه ډېره ښه مېلمستیا وشوه. په دې طمع ناست یُو چې اوس به محمود مصري راځي او اعلان به کوي. د مېلمستیا نه پس د پاکستاني فوج یو ترجمان راغلو وئیل ئې زهٔ هغهٔ رالېږلے یم د هغهٔ یو ډېر ضروري کار

پېښن شو، واشنګټن ته لاړو، هرکله چې واپس راشي نو تاسو ته به اطلاع درکړو. د هغې نه پس محمود مصري پاکستان ته هلته راغلو. زمونږ ټول ملګري په دې باندې خوشحاله وو چې دې به هوټل ته راشي زما په هغه وخت کښې هم دا یقین وۀ او ټولو ملګرو ته مې ووې چې دې واپس نۀ راځي. خو چې څۀ وشول ډېر ښۀ وشول، دۀ ته مونږ د افغانانو د مسئلو حل کولو یوه طریقه وښودله، هر کله چې دې مسئلې حل کوي هم په دې طریقه باندې به ئې حل کوي.

دغه افغاني مشرانوته مونږ ووئیل چې دافغانستان دا مسئلې نۀ حل کېږي. د دې لویه وجه ماته هم دا ښکاري چې تاسو د بهر نه راغلئ، دغه وړو وړو قومونو ته مو د افغانستان د سیاسي پارټو مشرۍ ورکړې دي ځکه چې د افغانستان د خاورې خلق نۀ دي. دوي ټول عمر دا خاوره خرڅه کړې ده او خپلې فائدې ئې ترې نه اخستې دي. هرکله چې د جنګ جدل وخت راغلے دے نو پښتون ئې جنګ ته مخکښې کړے دے او په خپله ئې د مشرۍ نمائندګي کړې ده.

د افغانستان په باره کښې یو بل تجویز راغلو چې موجوده افغانستان به ټکړې کړو چې کوم اړخونه ازبکستان سره نزدې دي هغه به ازبکستان او تاجکستان سره لاړ شي کابل او قندهار چې کومې د پښتنو علاقې دي دا به بېله صوبه پاتې شي چې د پاکستان سره به ئې بارډر شي. په دې خبره باندې ازبکو او تاجکو ډېرې خوشحالۍ وکړې او بین السیوان ته ئې ووئیل دا ډېر ښۀ تجویز دے. د قندهاره یو سپین ږیرے مشر راغلے وۀ چې چنار ئې نامه وه ماته ئې ووئیل چې زما دا قیصه به دوي ته ترجمه کړې هغۀ ووئیل حضرت سلیمان علیه السلام ډېر ښۀ بادشاه وۀ. هغۀ له دوو ښځو یو ماشوم راوړلو یوې ښځې وئیل دا زما زوے دے بلې ښځې وئیل دا زما زوے دے. هغۀ

وئیل دا خو ډېره اسانه خبره ده. خپل درباري ته ئې وئیل دا ماشوم په مېنځ باندې نیم کړه، نیم یوې ښځې ته حواله کړه او نیم بلې ته. چې څهٔ وخت ئې په توره باندې نیمولو خپلې مور ئې اواز وکړلو چې ټکړې ئې نهٔ کړئ ما دروغ وئیلي دي دا دې بلې ښځې زوے دے. حضرت سلیمان علیه السلام هغه بله ښځه گرفتاره کړه. وئیل ئې دې ښځې د دروغو دعوه کړې وه دا ماشوم د دغې ښځې زوے دے چې وئیل ئې پرې ئې نهٔ کړئ. نو قندهاري مشر وئیل چې دا زمکه زمونږ بچے دے دا مونږه پرې کولو ته نهٔ پرېږدو، هرکله چې دا خلق راشي نو مونږه ته داسې مسئلې جوړې کړي نو مونږ هم دغه اواز وکړو چې دا ماشوم دې ټکړې نهٔ شي. مونږ پښتنو دروغ وئیلي دي دا د دوي بچے دے. دغه شان دا تاریخي لوبه ټول عمر د پښتنو سره شوې ده. کهٔ دا د بهر نه راغلي قومونه د پښتنو په دې صوبه کښې اباد دي او کهٔ په افغانستان کښې اباد دي، د دې ماشوم د پرې کولو د وجې مونږ ټول عمر دوي ته مشري پرېښې ده چې د دوي د لاسه د دوو په ځاے نن څلور ټکړې ده.

هرکله چې په افغانستان کښې د دغه خلقو مشري وي او د پاکستان د دې صوبې د پښتنو مشري هم د بهرني قومونو په لاس کښې وي خداے خبر دے چې مزید به نورې څو ټکړې کېږي.

## پخوانو مشرانو وئیلي دي:

توره په قسمت باندې کېږي. هرکله چې په ښه بده پوهه شوے یم نو د ژوند په هر کال کښې دوه یا درې پېښې راپېښې شوې دي، چې په غلط نیت باندې روان شوے یم، عېن په موقعه باندې د غلط کار کولو په ځاے زما د لاسه صحیح کار شوے دے. بیا په زړهٔ کښې ووایم دا به الله تعالی ته منظوره وه دغه شان ډېر کارونه چې ماته

صحیح ښکاري او په ښهٔ نیت باندې مې شورو کړې وو نو الله تعالیٰ
ئې راته ډېر زر وښائې چې دغه کار صحیح نهٔ دے.

د پاک خدا ے په ماباندې دا ډېر لو ے فضل د ے چې نور خلق
خپل غلط کارونه په لسو کالو کښې سموي نو زهٔ خپل غلط کارونه په
یوه میاشت کښې صحیح کړم. دغه شان ډېرې تجربې مې په لړ وخت
کښې وشوې، خپلې ټولې غلطۍ ښکاره کول راته ښهٔ ښکاري په دې
غلطو ښکاره کولو راته ځان بد نهٔ ښکاري. او چې دا غلطۍ مې د لاسه
چا سره شوي نو زر تر زره ترې نه معافي وغواړم او د پښېمانۍ اظهار
وکړم خو بیا هم پښتون یم، د ټولو غلطو ذکر د کتاب په ذریعه نهٔ کوم
کشران به ترې نه غلط مطلب واخلي خو د سیاسي غلطو ذکر خامخا
پکار وي چې راتلونکے نسل کم ازکم دغسې غلطۍ ونهٔ کړي. نور دوي
هم انسانان دي، دوي به غلطۍ کوي خو هغه به نوې غلطۍ وي او د
نوې زمانې د لو ے تاریخ سره به په نو ے رنګ کښې رنګ کېږي.
راتلونکي نسلونه کهٔ دا صحیح تاریخ د خپلې علاقې او د خپل قوم
ولولي نو غلطۍ به ترې نه کمې کېږي او هرکله کهٔ خپلې فېصلې ئې په
روایتي جرګو باندې وکړي او قومي مشرانو ته ئې په اتفاق رائې د
فېصلې کولو اختیار ورکړو نو د غلطو ګنجائش به په کښې هډو پاتې
نهٔ شي او کهٔ د دغې مشرانو نه خدا ے نخواسته غلطي هم وشوه نو
دغه غلطي به هم زمونږ په ګټه تمامېږي ځکه چې پښتانهٔ مشران وائي
پره جمبه د یار اشنا د پاره خو په جرګه کښې فېصله د خدا ے د پاره او
چې د خدا ے د پاره کوم کار څوک کوي په هغې کښې تاوان نهٔ وي.

ما په دې کتاب کښې د غلامۍ یوه قیصه کړې ده چې پښتانهٔ
به په بهر ملکونو کښې جنګېدل نو د هرڅهٔ نه علاوه ئې په مال غنیمت
کښې د غلامۍ په شکل کښې هلکان او جینکۍ راوستلې، دغه

جینکۍ به ئې خپلو زامنو ته وادۀ کړې او دغې هلکانو ته به ئې خپلې لوڼه وادۀ کړې ځکه چې په پښتنو کښې د غلامۍ رواج هډو د سره نۀ وۀ او نۀ څوک په دې باندې پوهېدل، او چې غلام هرڅۀ ته وائي خو چې په کوم ځاے کښې غلامي نۀ وي هلته کښې به بادشاهي هم نۀ وي خو دا غلامان چې دوي کوم د بهر ملکونو نه راوستلي وو په دغه ملکونو کښې بادشاهي دور وۀ او چې بادشاهي وي نو غلامي به ضرور وي. دغه د ښو ښو نسلونو د اوچتو طبقو چاچې په جنګ کښې ځان د جنګ نه ساتلو، په محلونو کښې به پټ ناست وو دغه پښتنو نیولے د غلامانو په شکل کښې راوستلے وو. هرکله چې دغه غلامان دلته کښې دوي ازاد کړل او خپلې لوڼه خویندې ئې ورته وادۀ کړې دا د شاهي کورنو خلق وو، تعلیم یافته هم وو، د تاریخ او تمدن نه هم واقف وو، هرکله چې دوي ته ثابته شوه چې دا پښتانۀ د بادشاهۍ کولو شوقیان نۀ دي خو په مال غنیمت پسې په هر لوري زغلي، د سېلونو او د جنګونو کولو شوقیان دي، هم د دې خلقو نه ئې خپل فوج جوړ کړو، د ثمرقند او بخارا په ځاے ئې د دوي مخ د هندوستان په لوري ستون کړو، د قبلې په ځاے ئې نمرخاتۀ پله روان کړل. یعني دا خلق ئې د ځان سره واخستل د هندوستان بادشاهي ئې د دوي په ذریعه ترلاسه کړه. د دې فوج اکثریت چې به واپسي راتللو څۀ لږ ډېر کسان به ترې نه هلته پاتې شو هغوي له به ئې هلته کښې فوجي جرنېلۍ او لوے لوے جاګیرونه ورکړل چې د هغې نسلونو اثار اوس هم په هندوستان کښې موجود دي. په افغانستان کښې شاهي روایات د بادشاه یا د امیر په نامه باندې پاتې شوي دي نو دغه امیران او بادشاهان هم دې خلقو جوړ کړي دي. د دغه امیرانو او بادشاهانو نه ګېرچاپېره هم دا خلق ناست وي. دوي ورسره په بادشاهۍ جوړولو کښې لاس کړے دے او

چلولې ئې هم دي او ساتلې ئې هم دي. هم دا د پښتنو قبیلو مشرانو ته ئې دا تاثر ورکړے دے چې د ټولو قبیلو مشران ئې د لویې جرګې غړي وو دا تاثر ئې ورکولو چې بادشاه د لویې جرګې د مشرانو په خوښه باندې د ملک فېصلې او مشري کوي هغوي ئې په دغه مشرۍ باندې مشغول کړي وو دا قبیلې ئې د تعلیم او تمدن نه لرې ساتلې وې.

هرکله چې دغه مشران په ځان باندې پوهېدل نو عمر ئې ختم وۀ او کۀ په اخري عمر کښې ئې مخالفت شورو کولو نو د هغۀ په ځاے باندې به ئې د هغۀ ورارۀ او یا بل کشر مقرر کړلو نو د هغۀ به هم په دغه رنګ خیال وۀ. دغه دوکه زمونږ سره نسل تر نسل روانه ده. د دغې پښتنو قبیلو خلق د کلو وسېدونکي وو، تعلیم ئې د جوماتونو او مدرسو پورې محدود وۀ، ښاریو ته به صرف د مزدورۍ د پاره تلل. د ځوانۍ پورې سبق ئې په مدرسو کښې وئیلے وۀ په جوماتونو کښې د چنو په حېثیت باندې لوے شوے وو چې کابل ته به لاړل نو دابه ورته د ټولو نه ښکلے ښار ښکارېدلو چې د کابل په ښو ښو هوټلونو کښې به قمیص او پروتګ والا څوک هم ننوتے نۀ شول. قمیص پرتوګ والاته به په سنېماګانو کښې د ښۀ کلاس ټکټ نۀ ملاوېدلو، دغه شان په ټولو ښاریو کښې یو قسم خلق وسېدل او په کلو کښې بل قسم خلق وسېدل. د ښاریو خلق د بادشاهۍ، تمدن ولا خلق وو چې خپل تعلیمونه ئې دغلته کړي وو خپل تعلیم ورته دغه هرڅۀ ښودلي وو. دغه وجه ده چې هر بادشاه کابل ته راغلے دے نو په کابل کښې او د کابل په نورو ښاریو کښې دغه خلقو ورته هرکلے وئیلے دے او د کلو خلقو ئې مخالفت کړے دے.

CamScanner

اوسنۍ تاریخ د دېرشو څلوېښتو کالو موږ ته ښائي چې د ظاهر شاه په ځای باندې داود خان ته هرکلی وشو نو د داود خان وژلو ته انقلاب ووئیلی شو. د هغې نه پس نورمحمد تره کی او حفیظ الله امین ته هرکلی وشو.

کله د حفیظ الله امین په ځای باندې ببرک کارمل سره د روسیانو د راتلو په ټولو ښاریو کښې خلقو قبول کړو ځکه چې د ښاریو خلق ټول د بادشاهۍ او غلامۍ سره بلد وو. د هغوي د پاره په داود خان او په ګورباچوف کښې فرق نه وه، هم دغه خلقو ډاکټر نجیب ته، رباني ته، احمدشاه مسعود ته کابل حواله کړلو. د دوي په بادشاهۍ کښې سره د اسلامي د افغانستان د کلو خلقو څه تبدیلي محسوس نه کړه، حالاتکې رباني او احمدشاه مسعود د حزب اسلامي په نامه باندې حکومت کولو. یعني د افغانستان د ښاریو نه اسلام بهر ونه وتلو په ښاریو کښې په امن و امان راوستلو کښې ناکام شول. د روس خلاف په جنګونو کښې د اسلام په نامه باندې د دغه پښتنو قبیلو اکثریت روان کړے وه د کابل او د نورو ښاریو بادشاهي ئې د اسلام په نامه باندې بیا ازبکو او تاجکو ته حواله کړه. هرکله چې پوهه شول چې د افغانستان د ټکړې کېدو سازشونه روان دي او د اسلام په نامه باندې دغه ازبک او تاجک زمونږه وطن افغانستان په نورو خلقو باندې وېشلے شي نو د کلو او مدرسو خلق ځاے په ځاے د دوي مخالفت ته راپاڅېدل اول ئې په خپلو کښې اتفاق نه وه خو د دوي په مخالفت ټول پوهه شول خو د دې خلقو دا خوش قسمتي وه چې په دغه دوران کښې د امریکې د تېلو او د ګېس تاجرانو ته په افغانستان کښې د مضبوط حکومت جوړولو ضرورت پېښ شو چې په دا رنګ مضبوط قوت چې دغه قوت یواځې تر ښاریو پورې محدود نه وي

بلکې په ټول افغانستان کښې یو شان حکومت کولے شي او امن و امان هم قایمولے شي.

پاکستان ته په دغه دوران کښې شل پنځویشت کاله د جنګ تاوان رسېدلے وۀ، ځکه چې دېرش لکه کسان ئې دلته کښې په مېلمستیا وساتل او چې د رباني او مسعود د دغې ازبکو، تاجکو د ټولو دفترونه په پېښور کښې وو، جمې جرګې په پېښور کښې کېدې او د بهرني ملکونو د سفارتخانو او د سفارتکارو سره ئې په اسلام اباد کښې لیدل کتل کېدل. هرکله چې د افغانستان تر تخته ورسېدل نو تعلقات ئې د هندوستان سره ښۀ کړل. تګ راتګ او تجارتي معاهدې ئې د هندوستان سره وشوې، د کارخانو، د سړکونو معاهدې د هندوستان سره وشوې. د پاکستان سفارتخانه ئې په کاڼو باندې وویشتله، د پاکستان مشرانو ته تر اوسه پورې دا پته نشته چې د دې بغض او کینې څۀ وجه وه؟ کۀ دوي دا کتاب ونۀ ګوریبیا به وره هم دا پته نۀ لګي.

پاکستان ته چې کوم دېرش لکهه مهاجر د افغانستان نه راغلے وو په هغې کښې چې کوم خلق د ښاریو وسېدونکي وو دلته کښې هم په ښاریو کښې اباد شول او چې کوم خلق د کلو نه راغلي وو هغوي په کلو کښې اباد شول. په ښاریو کښې چې کوم ازبک، تاجک اباد شوي وو هغوي دلته کښې د ابتدائي تعلیم د پاره په ښو ښو ادارو کښې داخلې واخستې او په خپلو کورونو کښې ئې خپلو بچو له مدرسې جوړې کړې چې د فارسي ژبې نه علاوه خپلو ماشومانو ته ئې انګرېزي او اردو ژبه وښودله چونکې د مور او پلار ئې د افغانستان د پښتنو سره کومه بغض او کینه وه هغه په پېښور کښې نوره هم زیاته شوه. په پېښور کښې د شلو پنځویشتو کلونو د وسېدلو نه پس په اردو

ژبه کښې او په انګرېزي ژبه کښې خبرې اترې کولې او په پښتو ژبه باندې نۀ پوهېدل. دلته کښې چې کېمپونو کښې کوم سکولونه جوړ شوي دي په هغې کښې ئې فارسي او پښتو ژبه دواړه ښودل ځکه چې په کېمپونو کښې ټول پښتانۀ وو چې خپلو بچو ته ئې خوراک څښاک پوره کولے نۀ شو. نو هغوي خپل بچي د خپلو کېمپونو مدرسو ته ولېږل. دې ماشومانو په دې مدرسو کښې مذهبي تعليم هم وکړلو، د ډوډۍ، جامې ضرورت ئې هم برابر شو يعني چې دلته راغلل په کېمپونو کښې ئې تعليم په فارسۍ، عربۍ او پښتو ژبه کښې زده کړلو چې کومو مدرسو ته به لاړل نو ورته به ئې پښتو او عربي ژبه ښودله کومو فارسي وانو چې دلته کښې په ښاريو کښې تعليمونه وركول هغوي دلته کښې په ښاريو کښې په وړومبي ځل باندې پښتانۀ وليدل چې په ښو ښو بنګلو کښې وسېدل او ښې ښې موټرې ئې هم وې او کوټونه پتلونونه ئې هم اغوستلي وو نو د پاکستان حکومت ته ئې قهر نور هم زيات شو چې دا پښتون دلته کښې څۀ رنګ مالدار شوے دے؟ په افغانستان کښې په سوونو کلونو بادشاهي د دوي ترلاسه پاتې شوې ده اوس هم په دۀ باندې د کابل د پښتنو په ملکيت اخستو ئې پابندي لګولې ده چې کوم يو پښتون له به فارسي ژبه نۀ ورتلله او کوټ پتلون به ئې اغوستے نۀ وو په محفل کښې به د ناستې قابل نۀ شو ګڼلے. شائد چې دا سوچ ئې تر مزغو راتللو چې د کابل کوم پښتانۀ دلته کښې راغونډ دي او د پېښور پښتون ورور کوم عزيز دلته کښې ويني او پېژندګلو سره وکړي او په دې باندې پوه شي چې دلته کښې پښتون ته هرڅۀ ملاوېږي. دې چې تر افغانستانه ځي نو د دې خپل پښتون ورور پېښې هم کوي. او په ښاريو کښې به هم زمونږ نه خپل حق غواړي د پښتنو سره د دوي خپل زوړ بغض او زړه کينه هم وه په دې

خبرو ئې د پاکستان نه نفرت نور هم زيات شولو. بل طرف ته هغه د کېمپونو پښتانهٔ چې په ډېر لږ راشن ئې خپل ژوند تېرولو يا ئې په مدرسو کښې تعليم کولو او يا ئې په مزدورۍ باندې خپل مور پلار بوډاګان ساتل، د هغوي د دې علاقې د پښتنو سره مينه او تعلق پيدا شو. ډېرو غريبانانو د دې پښتنو سره رشتې وکړې، د روس خلاف جهاد له چې به کله تلل نو دا خلق ورسره په مينه باندې تلے دي يعني دا فرق چا محسوس کړے نهٔ وهٔ چې دا پاکستانے پښتون دے او کهٔ ايا دا افغانے پښتون دے؟

دغه شان په قندهار کښې چې کومو پښتنو جهاديانو د کابل د حکومت خلاف راپاڅېدل نو د طالبانو په نامه ئې تحريک شورو کړو دغه نوے طالبان ټول د مدرسو نه تلي دي زما د خيال د پښتنو په حواله باندې دا ډېره ښه خبره ده چې په هغوي کښې او په دوي کښې به نن هم فرق ونهٔ شي چې دا د افغانستان پښتون دے او کهٔ د دې ځاے پښتون دے؟

هر کله چې د پاکستان حکومت پوهه شولو کهٔ ازبکو او تاجکو سره ډېره مينه وکړو خو چې افغانستان ته لاړ شي نو د ايران، هندوستان، ازبکستان او تاجکستان سره به د دوستۍ لاس ورکوي. د افغانستان دغه پښتانهٔ چې کوم دلته کښې په کېمپونو کښې وسېدل د پاکستان احسان هم مني او دا ئې هم يقين دے چې زمونږ د دې ځاے پښتانهٔ ورونړه په هر غم او په هر درد و تکليف کښې ملګرتيا کوي. طالبانو ته د پاکستان په ملګرتيا کښې ډېر څهٔ ترلاسه شوي دي. د افغانستان په تاريخ کښې په اول ځل ۹۰ فيصده زياتو افغانانو په افغانستان باندې بادشاهي لرله او امن و امان ئې هم قايم کړے وهٔ. دا بېله خبره ده چې د پاکستان خارجه پاليسي ټول عمر امريکنيانو او

انګرېزانو جوړه کړې ده، ځکه چې په افغانستان کښې د طالبانو نه نور ښۀ ملګري نشته دے کۀ نن په افغانستان کښې فوج د امريکې پروت دے نو سياسي مشران ئې ټول د هندوستان دي. د کابل او افغانستان د نورو ښاريو د وسېدونکو خلقو په نظر کښې داود خان، ګورباچوف او بش او يا د دوي نمائندګان ټول عمر په يو نظر باندې کتلي دي.

د نورو بادشاهانو رسمونه رواجونه کابليان ډېر زر خپلوي او ټول عمر دغه خلق بادشاه ته د بادشاه نه زيات وفادار وي. د دوي دغه کلچرونه او تعليمونه ډېر زر خپلولے شي خو د کلو خلق ټول پښتانۀ دي او پښتانۀ ټول مسلمانان دي په پاکستان کښې په وسېدلو باندې د دې ځاے د پښتنو په مينه او اخلاص باندې په خپلې پښتو او په خپل مذهب باندې نور هم مضبوط کړل. زمونږ د دې صوبې ځۀ مشرانو په خپلو وېناګانو کښې وئيلے وو چې خودکش دماکې د غريبانانو کلچر دے دا مونږ ته د هغوي نه په وراثت کښې پاتې شوے دے. ما جواب ورکړو چې دا صحيح ده چې د هغوي کلچر دے خو دا رنګ اسلام د هغوي د تاريخ او د کلچر يوه حصه ده. هرکله چې پښتانۀ مسلمانان شول او ټولې ايشيا ته ئې اسلام ورسولو. خصوصاً هندوستان او پاکستان دغه شان زمونږ کلچر نۀ دے. هرکله دا يوځل تر پښتنو راغللو نو دا کلچر په هندوستان او پاکستان خورولے شي. دغه شان د خپلې تجربې په حواله باندې په پاک خداے مې دا يقين دے او دا مې ايمان هم دے چې پروردګار ځۀ کوي هغه د خپل بنده د خبر د پاره کوي.

ځۀ ګټې په دا شتۀ جنګ کښې ښکاره ښکاري زمونږ د دې صوبې اويا فيصده پښتانۀ د روس سره د جنګ په دوران کښې په مختلفو طريقو باندې د افغانانو ورونو سره امداد او مرسته کړې ده. چونکې د روس د تللو نه پس د افغان مشري بيا د ازبکو او تاجکو

ترلاسه شوه او په پښتنو کښې ئې ډلې جوړې کړې د طالبانو په شکل کښې د افغانستان په تاریخ کښې ټوپک ته لاس کولو والا او جنګ کولو والا هم پښتانهٔ دي. هلته ئې هم په مدرسو کښې تعلیم کړے د ے داسې ښکاري چې د امریکې خلاف په دې جهاد کښې د دې صوبې او د افغانستان ۹۰ فیصد پښتانهٔ په یو طرف دي. جنګ د اسلام په نامه باندې د ے، توره د پښتون ترلاسه ده، زمونږ د دې صوبې خلق چې کوم د سیاست کولو بلد دي ټول عمر ئې ځان ته پښتانهٔ وئیلي دي، خپلې پارټۍ ته ئې د پښتنو پارټي وئیلې ده خو د پښتو پښتونولۍ کار ئې تراوسه پورې یو هم کړے نهٔ د ے. هرکله کهٔ حکومتونو کښې راغلې دي نو هم ئې پښتنو ته خیر ورکړے نهٔ د ے.

طالبانو چرته هم ځان ته پښتانهٔ وئیلي نهٔ دي او نهٔ ئې خپلې پارټۍ ته دپښتنوپارټي وئیلې ده خوټوله دنیاخبر کړې شوه چې طالبان ټول پښتانهٔ دي او دا هم وائي چې د دوي د مشرانو اکثریت د پاکستان د جوړو شو مدرسو نه تلے د ے. امریکه بار بار په پاکستان باندې الزامونه لګوي چې پاکستان پټ په پټه د طالبانو سره امداد کوي.

هرکله کهٔ د پاکستان مشري د یو صحیح پاکستاني تر لاسه راغلله نو هغه به یقیني د طالبانو سره ملګرتیا کوي. دغه به هم زمونږه تاریخي ګټه وي نو کهٔ چرې دا رنګ نهٔ وي نو چې کوم طالبان دوي په قندهار کښې جوړ کړے وو په ډېر لږ امداد باندې دریائے امو ته ورسېدل. دغه شان اوس په باجوړ او په دیر او مهمندو او په سوات ملاکنډ او په بنو او په ډي ائي خان، ټانک، کرک او د کوهاټ په لاره باندې تر مونږه راورسېدل او اثرات ئې په اسلام اباد کښې هم ښکاره دي. د طالبانو دا اوسنے جنګ د امریکې خلاف یوائې جهاد نهٔ د ے بلکې د ټولو پښتنو د ازادۍ جنګ هم د ے او ټول پښتانهٔ ئې په شریکه

باندې ترسره کوي. هرکله کۀ امریکې په یو کال کښې دننه دننه خپل فوج د افغانستان نه ونۀ ویستلو نو دا خبره به بیخي ختمه شي چې په افغانستان کښې کوم خلق د امریکې خلاف جنګېږي. دا کۀ د افغانستان پښتانۀ دي او کۀ د پاکستان پښتانۀ دي دغه شان په دې جهاد کښې به د پښتنو ورورولي نوره هم مضبوطه شي او د ګټې په شکل نۀ یواځې د امریکې نه او نۀ خپله علاقه خلاصه کړو بلکې د ټولو پښتنو د ازادۍ او د یو والي باعث کېدے شي.

په دې جنګ کښې به د پښتنو د خاورې پېدا پښتون مسلمان خپل پښتون مسلمان هم وپېژني او د بهرني ملکونو نه راغلي مهاجر چې دوي عمر له خپلې مشرۍ بادشاهانو ته حواله کړې دي د هغوي ایمان او پښتو به ورته هم معلومه شي.

د علامه اقبال د یو شعر ترجمه ده چې:

ملت افغان د اېشیا زړۀ دے هرکله چې زړۀ بې ارامه وي ټول وجود به بې ارامه وي. مطلب دا دے چې افغانستان کښې امن وي نو په ټوله اېشیا کښې به امن وي او چې په افغانستان کښې جنګ وي نو په ټوله اېشیا کښې جنګ وي.

د ۱۹۸۰ء خواوشا کښې زۀ د عوامي نېشنل پارټۍ تحصیل چارسده صدر شوم. زۀ په اېن ډي پي کښې شامل وم او زما د ټولو سوشلسټو او مزدور کسان پارټۍ واله سره هم ښۀ تعلقات وو او د روس کمیونسټ پارټۍ زمونږ مشرانو ملګریو ته وئیلي وو چې قومي جمهوري انقلاب د پاره لار هواره کړي. د دې د پاره هغه سوشلسټې پارټۍ چې لبرل وي او سوشلسټ افکارو سره مخالفت هم نۀ لري، هغه وړې وړې پارټۍ یو ځائے کړئ او یوه لویه پارټي ترې جوړه کړئ چې

هغه قومي جمهوري انقلاب ته لار هواره کړي. زۀ چونکې په چارسده کښې ورومبے مزدورکسان پارټۍ کښې شامل شوے وم، د افضل بنګش او د هغۀ ټول خاندان سره مې ښۀ تعلق وۀ او تر اوسه پورې يو بل سره غم ښادي هم کوو. لطيف افريدے چې د بزنجو د پي اين پي د دې صوبې صدر وۀ، هغۀ سره مې هم ډېر نزدې تعلق وۀ او دغه وخت په اين ډي پي کښې په خپله هم وم نو بنګش صېب او لطيف افريدي صېب ته به مې هر وخت وئيل چې سره د اين ډي پي دا ټوله يوه پارټي کړو. خو بزنجو صېب اخره کښې انکار وکړۀ او لطيف افريدے يواځې د صوبائي صدر په حېث مونږه سره کراچۍ ته لاړۀ او د حاکم علي زرداري په کور کښې زمونږ دا اجلاس وشۀ، چې د سنده پليجو هم خپله پارټي راوسته چې زۀ هم تاسو سره شاملېږم. دا ټول خلق پخوا په نېشنل عوامي پارټۍ کښې يو ځاے پاتې شوي وو او غوښتل ئې چې بيا دې له دغه نوم ورکړو خو ټولو ووې چې په دې نوم باندې خو پابندي لګېدلې ده نو ما يو چيټ ورولېږۀ چې هغه نېشنل عوامي پارټي وه او اوس به ورته عوامي نېشنل پارټي وايو. ولي خان ووې چې چا چيټ رالېږلے دے چې په نېشنل عوامي پارټۍ پابندي ده نو دې ته عوامي نېشنل پارټي ووايئ. ټولو ورسره اتفاق وکړۀ چې ټيک ده او چې کابينه جوړېده نو دا کومې پارټۍ چې مونږ سره يو شوې وې، ټولو ته په کښې حق ورکول وو ځکه نو ولي خان صدر شۀ او په نائب صدرانو کښې د سنده نه پليجو، زمونږ د صوبې نه لطيف افريدے او مزدور کسان پارټۍ ته ئې ډپټي جرنل سېکرټري پوسټ ورکړۀ او داسې ټولو صوبو ته ئې حکم وکړۀ چې تاسو خپلو کابينو کښې دې ټولو پارټو ته نمائندګي ورکړئ او صوبو دا خبره خلقو ته وکړه چې لکه مزدور کسان پارټۍ او د لطيف افريدي پارټۍ له به په کابينه کښې

نمائندګي ورکوئ. چارسده هغه وخت کښې تحصیل وۀ، زمونږ پېښور ضلع وه. د ضلعې صدر بشیرخان وۀ او په تحصیل چارسده کښې باقاعده په الیکشن باندې زما نوم وړاندې شو او زۀ د تحصیل چارده صدر شوم، نائب صدران مو څۀ د مزدور کسان پارټۍ نه واخستل او څۀ د لطیف افریدي د پارټۍ نه. او جرنل سېکرټري ما سره وارث خان وکیل شۀ. دې نه مخکښې چرته سیاسي پارټو کښې عهده نۀ وه اخستې نو په کار هم ښۀ نۀ پوهېدم. په کالجونو یونیورسټو کښې په ډېر ښېټونو باندې بلد وم، ما چې به څۀ خبره کوله نو دې ټولو به راته وئیل چې ټیک ده. ما به غوښتل چې څوک راسره بحث وکړي او ووائي چې دا ټیک نۀ ده یعني ټولو به وئیل چې خان ټیک وائي ما له به غصه راتله. زمونږ یو مشر چې ډېر ښۀ سوداګر وۀ د ګوړې کاروبار به ئې کولو، کابل او کوئټې ته به ئې ګوړه اوړه. د جومات اسلامي ممبر وۀ. هغۀ به څنې وخت زما د خبرو مخالفت کولو. یوه ورځ ماښام یواځې ناست وم زړۀ کښې مې وئیل چې هغه جومات اسلامي واله ملګرے پکار دے. د هغۀ عزیزالدین نوم وۀ. هغۀ پسې مې ملګرے ولېږلو چې د ماښام ډوډۍ به هم ماسره وخورې او ګپ شپ به هم ولګوو. په هغه وخت کښې چې به د نېشنلسټو مخکښې چا باچا خان پسې خبره کوله نو هغوي به د مرۍ نه نیوۀ. عزیزلالا ته مې وئیل ماته خو پته ده چې تۀ په جومات اسلامي کښې یې، تاسو ښې رښتیا خبرې هم کوئ. د باچاخان متعلق ستاسو څۀ خیال دے. هغۀ وئیل چې دا خو پښتانۀ نۀ دي. په دې خبره ما له هغه وخت دومره قهر راغلو چې هغه خپلې خبرې رانه هم خطا شوې، ګوره دې د باچاخان غوندې سړي ته وائي چې پښتون نۀ دے خو دا سوچ مې کولو چې دې مبلمه هم دے، ما راغوښتے هم دے، زما ځاے هم دے زما حجره هم ده. ما ورته ووې

چې ته د څهٔ نه وایې، څهٔ کتاب کښې دې کتلي دي کهٔ چانه دې اورېدلي دي. هغهٔ راته وئیل تاته خو پته ده چې زهٔ ان پړهـ سړے یم کتابونه مې نهٔ دي وئیلي خو زهٔ ستا نه یو تپوس کوم. ستا خو په دې کلي کښې، چارسده کښې، سوات، بنو وغېره کښې ګپ شپ دے. په هغې کښې ډېر غریبانان هم شته او مالدار هم شته. ته چې چاله ورشې نو څهٔ د چائې اوبو ست درته کوي؟ ما ورته وئیل بالکل هر یو کس راته د چائې اوبو ست کوي. هغهٔ وئیل چې چائې درله راوړي نو کوم ځا ے دې کښېنوي. ما ورته وئیل حجره کښې. هغهٔ وئیل چې حجره ئې نهٔ وي؟ ما ورته وئیل بېټهک کښې. وې ئې چې بېټهک ئې هم نهٔ وي؟ ما ورته وئیل چې د کور مخې ته لاره کښې کټ واچوي او په هغې کښې کښېنو چائې وڅښو. هغهٔ وئیل کور ته چا دننه بوتلے یې، چې ښځه لور او بچي ئې ناست وي او دې تا د نغري غاړې ته کښېنوي او چائې وڅښې. ما ورته وئیل داسې لاچا نهٔ دي کړي، کور ته لاچا نهٔ یم بوتلے. وې ئې غریبانانو.... ما وې داسې لانهٔ دي شوي. وې ئې سوات، بونېر، بنو کښې چا کور ته وبتلے یې؟ ما وې هلته هم چا نهٔ یم بوتلے. وې ئې د دوي (ولي خان) کور ته چې لاړ شې نو کوم ځا ے ناست یې، چائې درله کوم خوا راوړي؟ ما ورته وئیل کور کښې ناست یم. وې ښځه ئې وي، ما وې ښځه خو ئې د پارټۍ مشره ده، وې لور ئې وي ما وئیل چې کله په کور وي نو لور ئې هم وي. وې ئې ته خو د پارټۍ د دې ځا ے چارسدې صدر یې خبر دے خو دا د سوات، بنو یا نورو ځایونو نه څوک راشي هغه چرته کښېني؟ ما ورته وئیل هغوي هم کور کښې کښېني، کهٔ څهٔ چائې ډوډۍ وي نو هغه هم کور کښې وي. هغهٔ وئیل بس دغه مې درته وئیل چې دا پښتانهٔ نهٔ دي، پښتانهٔ ستر کوي خو د دوي په کورنیو کښې د پخوا راسې ستر نشته او پخوا به چې د ټول

هندوستان نه خلق راتلل، که هغه به هندوان وو، که سیکان، که مسلمانان، دوي به کور کښېنول. پخوا چې به د پښتنو زنانه بهر ته تللې په ټانګه کښې، نو د ټانګې نه به ئې پردې تاو کړې وې او د پردو نه دننه به هم سپینې شټل کاک برقعې اچولې وې او د دوي زنانه به بغېر برقعې ګرځېدلې، دوي کښې ستر پرده نهٔ وو.

## فېصله:

زۀ خپله د هشتنغر سړے یم نو زما دا کوشش دے چې شورو د هشتنغر نه وکړم چې پښتانۀ هشتنغر سره څنګه تړلي شوي دي، افغانستان سره څنګه تړلي شوي دي او بیا پاکستان سره څنګه تړلي شوي دي او دا تاریخ مې ډېر لنډ د دوو دوه نیمو سوو کالو د هندوستان وغېره چېړلے دے چې زما دې مقصد سره سمون خوري. د ۱۹۳۰ء نه راپه دې خوا د هندوستان پښتانۀ ۹۵في صد نه زیات باچاخان سره وو او باچاخان کانګرس سره وۀ څکه دغه پښتانۀ کانګرس سره وو. کانګرس د انګرېزانو خلاف جومات وۀ. د انګرېزانو نه ئې ازادي غوښتله د دې نه مخکښې د افغانستان سره د انګرېزانو درې غټې جنګونه شوي وو چې د دې ځاے پښتانۀ هم د افغانستان د پښتنو سره یوځاے د انګرېز سره جنګېدلي وو. د ۱۸۵۷ء جنګ اخري وۀ چې دا پښتانۀ د انګرېز سره جنګېدلي وو. په دې جنګ کښې د انګرېزانو د وېنا مطابق ۹۵في صد د هندوستان مسلمانان په انګرېز پسې راپاڅېدلي وو او په دې ۹۵في صد مسلمانانو کښې ۷۵في صد پښتانۀ وو. په دې کښې هغوي د ټولو علاقو ذکر کړے دے چې د پښتنو دې علاقې نه دومره کسان راغلي وو او د دې نه دومره. په دې کښې د ټولو نه زیات د هشتنغر خلق ۱۱۰۰۰ کسان او ۲۰۰۰د دوابې

نه وو. دغه شان د چارسدې ۱۳۰۰۰ کسان شو. دغه شان انګرېزانو وئیل چې هندوستان کښې به مسلمان له سزا ورکوو چې دې مونږ پسې راپاڅېدلے دے او په مسلمان کښې په پښتنو له سزا ورکوو چې په دغه ۹۵في صد مسلمان کښې ۷۵في صد پښتون دے او په پښتنو کښې به هشتنغر له سزا ورکوو چې زیات خلق د هشتنغر وو. هغه وخت کښې د هشتنغر پنځۀ پنځۀ نیم زره کورونه وو او په دغه وجه په پښتنو مسلمانانو کښې دا متل خور شۀ "هشتنغر خورې کۀ نۀ خورې خو بد ئې مۀ وایه".د انګرېزانو سزا دا وه چې په هغه ځاے کښې دې خانۍ او نوابۍ جوړې کړې کړي. په ټوله پښتونخوا کښې د انګرېزانو د لاس ورکړې دومره خانۍ او نوابۍ نشته لکه څومره چې په هشتنغر کښې دي. د هر ځاے د خلقو نه به ئې زمکې ضبط کولې او خپلو وفادارنو له به ئې د خانۍ او نوابۍ په شکل کښې ورکولې. دغسې انګرېز هر پښتون له پلار نیکۀ وژلے وۀ نو د هر پښتون دشمن وۀ او په هندوستان کښې کانګرس پارټي انګرېز مخالف وه ځکه ټولو پښتنو کانګرس سره ښۀ په شوق ملګرتیا وکړه. دا خو لا د هندوانو پارټي وه کۀ د یهودیانو پارټي وه او د انګرېز مخالفت ئې کولو نو پښتنو به هغوي له هم لاس ورکړے وۀ. د پښتنو د باچاخان سره ځکه ترون راغلو چې باچاخان کانګرس کښې وۀ او کانګرس د انګرېز نه ازادي غوښتله. د دوي دا خیال وۀ چې باچاخان به د پښتنو ازادي غواړي خو باچاخان دا خبره چرته هم نۀ ده کړې بلکې هغۀ به وئیل چې زۀ په شریک هندوستان کښې د ګاندهي د لاندې وسېدل غواړم او د هندوستان په پارلیمنټ کښې د خپلې صوبې د پاره خودمختاري غواړم نه چې ازادي خو د هغه وخت چې ورسره د پښتنو کوم مشران تړلي وو، د هغوي په دې خبره اعتبار نۀ وۀ چې دې به مونږ له پښتنانۀ

ازادوي، کۀ د هندوستان نه وي او کۀ د پاکستان نه. یو ښۀ مثال ئې دا دے چې په کوهاټ کښې د پښتونستان په نوم د سنټرل کمېټۍ ۴۹ کسان راغونډ شوي وو او د پښتونستان په نوم ئې په اکثریت قرارداد پاس کړۀ چې مونږ ځان له ازاد وطن پښتونستان غواړو. په ۴۹ کسانو کښې صرف دوو کسانو مخالفت کړے وۀ چې یو باچاخان وۀ او بل د مردان امیرمحمدخان وۀ. قرارداد خو په اکثریت پاس شۀ خو چې باچاخان ئې مخالفت کولو نو چا به وړاندې کولو. داسې نورې هم ډېرې حوالې شته چې د دې خبرې تصدیق کوي. ټول پښتانۀ د انګرېز خلاف وو ځکه چې د هرې کورنۍ پلار نیکۀ ئې وژلے وۀ خو د باچا خان د کورنۍ یو کس هم نۀ دے مړ. د۱۸۵۷ء د جنګ نه پس چې نورو پښتنو ته سزاګانې ورکولې کېدې، پښتانۀ وژلي کېدل او زمکې ئې ضبط کېدلې، د باچاخان پلار بهرام خان ته چېرمېني ورکړې شوه او ورسره په انعام کښې زمکه هم ورکړې شوه ځکه چې هغه جنګ له نۀ وۀ تلے بلکې د هرې علاقې د خلقو هغه معلومات ئې انګرېزانو له ورکړي وو چې د فلانۍ علاقې نه دومره خلق درغلي او د فلانۍ نه دومره. ځکه خو به ورته د انګرېز په سرکاري عدالت کښې د ناستې د پاره کرسۍ کېښودې شوه. انګرېزانو د ټولو نه زیاته سزا هشتنغر والا له ورکوله او په هشتنغر کښې د ټولو نه زیاته سزا زمونږ کورنۍ ته ورکړې شوه ځکه چې زمونږ نیکۀ شهبازخان د دې یولس زره کسانو مشري کړې وه او په دې جنګ کښې سره د خپلو ټولو ورونو شهید شۀ.

دا خبره مې ځکه ولیکله چې کله مونږ ډېر په فخر ووایو چې زمونږ نیکونه د انګرېزانو خلاف وو نو د پاکستان ایډمنسټرېشن مونږ ته هم د شک په نظر ګوري چې اوس به زمونږه هم خلاف وي. دغه شان چې هر بیوروکرېټ سره مې په سرکاري ځاے کښې کار وي نو

ځان غلي کړم او که چرته په خطا کښې مې هم د خلې نه وخې نو بیا زما
هغه جائز کار هم نۀ کېږي.

مسلم لیګ د خانانو نوابانو جومات وۀ. څنګه چې د نور
هندوستان خانان او نوابان په مسلم لیګ کښې وو داسې د پښتنو
خانان او نوابان هم په مسلم لیګ کښې وو. د دې خانانو او نوابانو بچو
به په لندن کښې سبق وئیلو. د ۱۹۳۰ء نه پس چې انګرېزانو د ون مېن
ون ووټ خبره وکړه نو ورسره ګاندهي د نوابۍ د ختمولو خبره وکړه نو
د هندوستان د خانانو او نوابانو سره خطره پېدا شوه ځکه چې د
هندوستان بېورو کرېسي هم د دې نوابانو د بچو د ښۀ تعلیم په وجه د
دوي په لاس کښې وه. اسمبلو ته به هم دوي تلل. دغه وخت چې د
خانانو او نوابانو څومره بچو په لندن کښې او کېمرج کښې سبق وئیلو
هغوي یو پمپلټ شائع کړۀ او د پاکستان نوم ئې ورکړۀ چې پ: د
پنجاب د پاره، الف: د افغانیې د پاره، ک: د کشمیر د پاره، س: د
سندھ د پاره او تان: د بلوچستان د پاره وو. د دوي په هغه وخت کښې
هم د بنګال سوچ نۀ وۀ او نۀ ئې هغه په پاکستان کښې راوستے وۀ یعني
د خپلې نوابۍ او حکومت د برقرار ساتلو د پاره چې کومه علاقه اوس
د پاکستان په لاس کښې ده، بنګال هغه وخت کښې د دوي په نظر
کښې نۀ وۀ 37-1936ء کښې په وړومبي ځل په ون مېن ون ووټ ووټونه
وشو او مسلم لیګ د دې شتۀ پاکستان په ټولو صوبو کښې الیکشن
بائلو. زمونږ صوبه کښې کانګرس ووټونه وګټل، پنجاب کښې
یونینسټ ووټونه وګټل او په سندھ کښې سندهو دېش او ازادو
حکومت جوړ کړۀ. مسلم لیګ د ټولو نه زیات ووټونه بنګال کښې
واخستل حکه چې بنګال کښې مسلم لیګ د بنګال د ازادۍ خبره
کوله، د بنګال د مسلم لیګ مشرانو عوامي لیډران وو او د خپل قوم

د پاره ئې د خپل قوم د ازادۍ خبره کوله. د ۱۹۴۰ء د لاهور د قرارد په وخت هغوي جناح صېب او نورو مشرانو ته ووې چې مونږه ځکه ووتونه واخستل چې مونږه د بنګال د ازادۍ خبره کوله. سندهـ کښې سندهو دېش ځکه وګټله چې هغوي د سندهـ د ازادۍ خبره کوله. پښتونخوا کښې ځکه کانګرس وګټله چې کانګرس د پښتون د ازادۍ خبره کوي. پنجاب کښې یونینسټ ځکه وګټله چې هغوي د شریک هندوستان خبره کوي د هغوي په شریک هندوستان کښې زیاته فائده ده. ځکه چې مونږ غواړو چې هره صوبه دې یو ازاد او خودمختار ملک شي نو دا ټول خلق به مونږ له ووټ راکړي ځکه د ۱۹۴۰ء په قرارداد کښې د پاکستان ټکے نشته او ټولو صوبو له ئې د ازادو مملکتونو ازادي غوښتله. دې ځاے کښې ئې ټولې صوبې او بنګال مملکتونه غوښتي دي. د ۱۹۴۰ء د قرارداد سره د مسلم لیګ سره د خلقو اتفاق خو شورو شۀ خو مشري ئې بیا هم دغه نوبانو سره وه، کوم چې د هندوستان وسېدونکي وو. دوي وئیل چې دا صوبې ازادې شي نو مونږ به څۀ کوو ځکه چې مونږ خو د دې ځاے نۀ یُو، د هندوستان یُو او کۀ سبا له دې طرف ته راشو نو نۀ مو سندهے قبلوي او نۀ مو پنجابے قبلوي. مونږ چې کومې پورې دا سوچ ختم کړے نۀ وي چې صوبې دې خودمختارې وي نو دا هم مونږ له منل نۀ دي پکار، سره د دې چې دغه وخت کښې لا د تقسیم او د پاکستان د جوړېدو خبره سرته نۀ وه رسېدلې. په ۱۹۴۶ء کښې بیا ووټونه وشو خو بیا دوي په دې بنیاد باندې وکړل چې چا مسلم لیګ له ووټ ورکړۀ هغوي پاکستان غواړي او چې چا مسلم لیګ له ووټ ورنۀ کړۀ هغوي پاکستان نۀ غواړي. هغه وخت کښې لا بلوچستان صوبه نۀ وه او په دې درې واړو صوبو کښې مسلم لیګ بیا هغه شان بائله لکه مخکښې چې وه. سندهـ کښې

CamScanner

سندهو دېش راغلل، پنجاب کښې یونینسټ او پښتونخوا کښې
کانګرس راغلل خو په بنګال کښې مسلم لیګ په دو تهائي وګټله
ځکه چې هلته صرف د بنګال د ازادۍ او د ځان له ملک خبره شوې وه.
په دې بائلات جناح صیب دومره خفه وۀ چې وئیل ئې زۀ واپس لندن ته
ځم او هلته خپل پرېکټس شورو کوم چې د دې ځاے خلق پاکستان نۀ
غواړي نو زۀ ئې چاله جوړ کړم. خو دغه د هندوستان نوابانو ورته
ووئیل چې په بنګال کښې مونږ ډېر زیات ووټونه اخستي دي او په
پرسنټېج باندې ۹۰ في صد دي او د هغه ځاے ابادي هم ډېره ده. دې
صوبو کښې چې مونږه ۱۰ او ۱۵ في صد ووټونه اخستي دي، دې سره
چې د بنګال ووټونه هم یو کړو او دا ټول یو ځاے کړو نو دا د ۵۰ في
صد نه زیات جوړېږي، دا د پاکستان ووټونه شو او د پاکستان خبره
سمه شوه. بیا هم په پښتونخوا او چټاګانګ کښې کانګرس ګټلې وه
نو دلته رېفرنډمونه هم وشو خو چې د پاکستان مطالبه د دوي په شکل
کښې سرته ورسېده نو بیا هم د خلقو دا خیال نۀ وۀ چې د هغه ځاے
نوابان به ټول دلته (پاکستان) ته راځي. د هغه ځاے نوابانو په خپلو
کسانو باندې هندوان غریبانان وژل ځکه چې دغه کسان په وسله
باندې هم پوره وو او کسان به ورسره هم وو او دغه شان به هلته
مسلمانان خلقو وژل.

په دې سلسله کښې به دا خبره هم وکړم چې د چارسدې د نجیم
اباد د مسلم لیګ یو سالار ګوهر خان د هندوستان د مسلم لیګ
مشرانو سره د ملګرو هندوستان ته راوغوښتو او ورته ئې وئیل چې
دلته ځاے په ځاے هندوان وژنئ چې دا هندوان په طېش کښې راشي
او دا مسلمانان وژل شورو کړي. دا عتراف هغۀ وروستو په جلسو
کښې کړے وۀ او بیا په نېشنل پارټۍ کښې شامل شوے وۀ او د

عوامي نېشنل پارټۍ د تحصیل چارسده صدر هم پاتې شوے وۀ او د ولي خان سره ئې ډېر نزدې تعلق هم جوړ شوے وۀ. مطلب دا چې د هندوانو او مسلمانانو تر مېنځه دا فسادات هم مسلم لیګ شورو کړي وو د دې د پاره چې د پاکستان مسلمانانو ته دا وښائي چې دلته د مسلمانانو حالات ډېر زیات خراب دي او مونږ پاکستان ته درځو او داسې هغوي پاکستان ته راتلو د پاره ځان ته لاره هواره کړه.

دغه نوابانو د پاکستان په سندهي، بلوچي او پنجابي احسان کوۀ چې ستاسو او د پاکستان د پاره مونږ هلته خپلې زمکې پرېښودې حالانکې هلته د نهرو په وزیراعظمۍ کښې نوابۍ ټولې ختمې شوې وې. د دې ځاے نه چې څومره هندوان تلي وو او د هغوي نه زمکې او جائیدادونه پاتې شوي وو هغه ئې په خپل نوم کړل چې دا دې مونږ ته وسپارلے شي او ترننه پورې د کلېمپ په نوم باندې د هندوستان نه راغلي خلقو پسې په نوم باندې شوي دي او دوي په دوو دوو او درېو درېو کسانو خرڅ کړي دي تراوسه پورې پرې کېسونه چلېږي.

دلته د راتلو سره سم دوي د دې ځاے په اېډمنسټرېشن قبضه وکړه. چا به وئیل چې زۀ هلته سي اېس پي افسر وم خو کاغذونه رانه ټول هلته پاتې شوي دي. بیا ئې خپله ژبه اردو د ټول پاکستان ژبه کړه او څۀ وخت پس ئې د ټولو ژبو په فلمونو او رسالو بندېز ولګولو، چې بنګالیان د هغې خلاف راپاڅېدل نو هغوي ته د بنګالۍ ژبې څۀ لږ ډېر حق ملاؤ شۀ خو مغربي پاکستان کښې نورو صوبو ته دغه حق ملاو نۀ شۀ. رېډیو کښې د اردو او انګرېزۍ خبرونه او اخبار به هم صرف په اردو او انګرېزۍ ژبه کښې وۀ. د ۱۹۴۰ء په قرارداد کښې د ټولو نه وړومبۍ خبره دا وه چې هندوستان کښې انګرېزانو ټول زاړۀ قانونونه راغونډ کړل او د ۱۹۳۵ء اېکټ ئې ورته ووې چې هغه د هندوستان

وفاق ساتلو د پاره وو او هغه د ۱۹۴۰ء قرارداد ونهٔ منل او د هغې مخالفت ئې وکړهٔ او اوس په پاکستان کښې ټول قانون د ۱۹۳۵ء ایکټ لاندې چلیږي. د ۱۹۳۵ء ایکټ چې څو رزو انګریزانو په ټول هندوستان یونیم سل کاله حکومت کړے وهٔ نو دې د هندوستان نه راغلي نوابانو خپلو کښې دا ووې چې مونږ خو په لکونو کښې یُو نو مونږ هم په پاکستان حکومت کولے شو. څنګه چې هغوي د هندوستان قومونه خپلو کښې جنګول او حکومت ئې پرې کولو هم دغسې به د هغه انګریزي قانون لاندې مونږ د پاکستان قومونه خپلو کښې جنګوو او حکمراني به پرې کوو. دې سره د پاکستان قومونو چې د پاکستان د جوړېدو نه مخکښې صوبې موجود وې، خپل تاریخ او خپل کلچر ئې لرلو، د هغې د ختمېدو کوشش تراوسه پورې کوي او تر ډېره حده پورې په کښې کامیاب دي. د هندوستان د مهاجرو ژبه زمونږ د پاکستان قومي ژبه شوه او د هندوستان کلچر زمونږ کلچر او ثقافت شهٔ. په فلمونو او ټي وي هرڅهٔ کښې نهٔ د سندهي کلچر شته، نهٔ د پنجابي شته او نهٔ د پښتون، په لارو کوڅو او وادهٔ ښادی کښې هم هغه د هندوستان کلچر روان دے. تر دې حده پورې چې زمونږ اسلام هم هغه د هندوستان اسلام شهٔ. زمونږ او د سعودي د وخت د دوو ګېنټو فرق دے. د ټولې دنیا مسلمانان چې په سعودي کښې په کومه ورځ روژه شي، روژه کوي او چې په کومه ورځ سعودي کښې اختر وي نو نور خلق اختر کوي. خو زمونږ روژه او اختر د دلي سره دي چې کله دلي کښې روژه شي نو مونږ روژه کړو او چې د دلي اختر شي نو زمونږ اختر شي. زمونږ اسلام هم د دلي اسلام دے.

د ضیاءالحق په وخت کښې نورې بارډرې کولاو شوې او په هر بارډر باندې د هندوستان نه نور خلق په ګارنټۍ راغلل چې دلته به

ورته نوکري ملاوېږي. د ۱۹۷۰ء نه مخکښې په فوج کښې د مهاجرو دومره خلق نۀ وو، د ضياءالحق نه پس په فوج کښې هم د جرنېلانو اکثريت د دوي دے. زمونږ عام پاکستانے چې د بېنک نه قرضه اخلي نو خپل د زمکې جائيداد يا د څۀ ګارنټي به ورکوي. چې د يو لاکھ ګارنټي ورکړي نو بېنک ورله ۶۰ في صد قرضه ورکړي. د مهاجر د پاره دا قانون نشته. هغوي وائي د دوي جائيداد په هندوستان کښې پاتې شۀ نو دوي د څۀ ګارنټي ورکړي. هغوي چې پرې څۀ ځاے جوړوي د هغې ګارنټي ورکړي. دغه شان پخوا به ئې د بېنکونو نه قرضې واخستې، دلته به ئې پرې کارخانې جوړې کړې اوس چې دغه قرضې واخلي نو کنېډا يا برطانيه کښې پرې کاروبارونه کوي چې لږې قرضې واخلي نو دوبۍ او قطر کښې پرې کاروبارونه شورو کړي. دغه شان په پاکستان کښې يو هندوستانے مهاجر هم بې روزګاره نشته او په څلورو واړو صوبو کښې زمونږ ۸۰في صده خلق بې روزګاره ګرځي. يوه لطيفه ده چې څوک روزګار غواړئ نو مهاجره ښځه وکړئ او واقعي چې چا مهاجره ښځه کړې نو ډېر ښۀ روزګار ورته ملاو شوے دے. کۀ د پاکستان په دې قومونو کښې څوک هم مهاجره ښځه وکړي نو په هر قسم روزګار کښې مخکښې ځي سره د سياسته. پنجاب زمونږ نه اکثريتي صوبه ده ډېر پنجابي ليډران ئې بدل رابدل کړل خو په چا ئې صحي اعتبار نۀ راتلو خو په نواز شريف ئې اعتبار راغلو ځکه چې نواز شريف د امرتسر نه راغلے پنجابے هم وۀ او مهاجر هم ځکه خو دوي ته قبول وۀ. خو چې هغۀ سره هم کله د دوي د توقع خلاف پنجابيانو مينه وکړه نو اوس ئې مخالف شو خو بيا هم وژني ئې نا ځکه چې هندوستانے مهاجر دے. سندھے وزيراعظم چې راشي نو هغه دوي ژوندے نۀ پرېږدي. د ټولو نه غټ نقصان چې دې څلورو واړو

قومونو ته رسېدلے دے، د دې ټولو قومونو ژبې او کلچر ختمول، د دوي تاریخ ختمول او د ځان ساتلو د پاره د پاکستان د دروغو یو تاریخ جوړول او په سرکاري سکولونو کښې په ماشومانو دغه تاریخ زوتول چې سباله هغوي خپلې ژبې ته هم سپکه وائي او خپل تاریخ ته هم سپک وګوري او د دوي د دروغو تاریخ ته رښتیا ووائي او په ښه طریقه د دوي ذهني غلامان شي.

زمونږ مشرانو هم مونږ ته خپل صحي دشمن نۀ دے ښودلے مونږ ته پنجابے او د پنجابي زیاتې یادوي حالانکې پنجابے په خپله هم محکوم دے. چې کوم زیاتې مونږ سره کېږي دغه د هغۀ سره هم کېږي. د پنجابي دغه یوه کمزوري ده چې هغه وفادار غلام دے، د دې نه ښه فائده اخلي او په فوج کښې نان کمېشن افسران ۹۰ في صد د پنجاب دي. د دوي کوشش دے چې پنجابے سندهي پسې راپاځي، سندهے دې پنجابي پسې راپاځي او زمونږ مشرانو کښې چا هم مونږ ته اصلي دشمن په ګوته کړے نۀ دے.

په افغانستان کښې هم د پښتنو دغه شکل او دغه حال دے. ټول ایډمنسټرېشن د افغانستان د پارسي وانو په لاس کښې پاتې شوے دے او جنګ ته ئې پښتون وړاندې کړے دے. د پارسي وان بچي په ښاریو کښې ښۀ تعلیم وکړي او ښې نوکرۍ ورته ملاو شي او د پښتنو بچي یا په کلو کښې په دیني مدرسو کښې سبق وائي یا ئې د ښار غټو مدرسو ته ولېږي یا ترې طالب جوړ شي او کۀ ډېره ترقي وکړي نو ملا ترې جوړ شي.

زما د کالج د وختونه د انقلابیانو سره تعلق جوړ شۀ. سوشلسټ او کمیونسټو خلقو سره مې ناسته پاسته وه او هغه وخت سره د سوشلسټو د سټوډنټانو د این ایس ایف په نوم یو تنظیم چې رشید

حسن خان او داسې نورو مشرانو ئې کمیونستو او سوشلستو پارټو سره تعلق لرلو. د هغه وخت د سوشلستو ترمینځه به اکثر دا بحثونه کېدل چې د روس کمیونزم ښۀ دے کۀ د چین. چې یو بل سره به ئې ورانه شوه نو چین والاته به ئې وې چې دا کمیونستان نۀ دي ماوستان دي خو ماوزے تنګ خو په خپله لینن منلو. دغه چیني ماوستانو به د لینن مخالفت نۀ کولو خو دا به ئې وې چې دا په روس کښې د ټراټسکي ملګري دي ټراټسکائیټ دي.

دغه دوران کښې په پاکستان کښې پیپلز پارټي جوړه شوه. د سنده او پنجاب ډېر ښۀ ښۀ سوشلسټ بهټو سره پارټۍ ته لاړۀ چې پیپلز پارټۍ له منشور هم معراج محمدخان جوړ کړۀ او داسې نور د سنده مهاجر چې کومو پاکستان کښې سوشلسټ انقلاب غوښتو، ټول پیپلز پارټۍ ته لاړل. په پنجاب کښې هم چې نوے نسل د پنجاب د مسلم لیګ د چودهریانو او دولتانه وغېره دوي نه تنګ شوي وو او د پنجاب د ښاریو دانشوران چې اکثریت ئې د مهاجرو وۀ خو وسېدل په پنجاب کښې، لکه مبشرحسن، شیخ محمدرشید او حنیف رامے وغېره. د بهټو د خپلې طبقې د وډېره ګانو په ځاے په کښې کهر او زمونږ په صوبه کښې حیات خان شېرپاؤ وغېره شامل وو. دغه دوران کښې بهټو د تاشقند خبره راوچته کړه او د ایوب خان خلاف ئې تحریکونه شورو کړل. د ایوب خان خلاف په ټول پاکستان کښې د سټوډنټانو یو شان مزاحمت شورو شۀ. په وړومبي سر کښې خو په بهټو پابندي وه خو د دغه تحریکونو په وجه ایوب خان دست بردار شۀ او کرسۍ ئې یحٰی خان ته حواله کړه. دغه تحریکونو کښې د ټولو پارټو د مشرانو په دې خبره اتفاق وۀ چې ون یونټ دې مات شي او صوبې دې بیا بحال کړي. د ون یونټ د جوړېدو نه مخکښې زمونږ صوبه د

کوئټې پورې وه یحیٰ خان زمونږ د پښتنو علاقې بلوچستان سره کړې.
هر نوے سړے چې راځي نو د هغهٔ بیوروکریټ ته حاجت وي چې د دوي په مشورو باندې کار وکړي او سینیئر بیوروکریټ ټول مهاجر وو ځکه د بیوروکریټ هم دا کوشش وهٔ چې په بلوچستان کښې به بلوچیانو ته پښتون مسئلې جوړوي او پښتون ته به بلوچ. په دې خبره چې مسئله جوړه شوه نو د یو ریټائرډ جج په نوم ئې کمېشن جوړ کړهٔ. چې د دې تحقیق وکړي او پته ولګوي چې د دې صحي باونډري کوم ځاے ده. هغه کمېشن والا هم دغه ووې چې د کوئټې پورې علاقه د پښتنو ده او پښتانهٔ او بلوچیان دواړه په دې راضي دي چې دغه زمونږ پوله ده او دا دې هم په هغه زوړ ځاے باندې وساتلې شي چې څنګه مخکښې وې خو د دغه کمېشن رپورټ ښکاره نهٔ شهٔ. څنګه چې په پاکستان کښې نور رپورټونه د جوړېدو نه پس وروک شي دغسې دا رپورټ هم تر ننه وروک دے.

یحیٰ خان په کال کښې دننه د الېکشن اعلان وکړهٔ او ټولې سیاسي پارټۍ ئې ازادې کړې. ټولو سیاسي پارټو ته ئې په یو نظر کتل. په ټیلي ویژن او اخبارونو کښې ئې ورله یو شان وخت ورکړهٔ او دغه الېکشن د پاکستان په تاریخ کښې واحد فري او فېئر الېکشن وهٔ چې هیڅ یوې پارټۍ پرې اعتراض نهٔ دے کړے ځکه دغه په پاکستان کښې وړومبے او اخري صفا الېکشن وهٔ. نهٔ د دغې نه مخکښې چرته صفا الېکشن شوے او نهٔ د دغې نه وروستو.

دشیخ مجیب دتقریرنه پس بیوروکرېسي د شیخ مجیب خلاف شوه. هغهٔ چې کوم شپږ نکات وړاندې کړي وو، د بنګالیانو د پاره ئې د خپل حق خبره کوله، چې هغه په پاکستان کښې په ټول عمر کښې هغوي ته نهٔ وهٔ ملاو شوے چې کهٔ په زور وي او کهٔ په رضا وي خو دا

حق به زۀ د پاکستان د بیورو کریسي نه اخلم او د بنګالیانو چې څومره حق کیږي هغه به ورته برابر رسوم. هغه نکاتو ته ئې د بنګال د ازادۍ اعلان ووې چې دانکات د پاکستان نه د ازادۍ یو اعلان دے. د ابادۍ په بنیاد باندې په ټول پاکستان کښې د اسمبلۍ ټول ۳۰۰ سیټونه وو. په دې کښې د بنګال د ابادۍ په حساب ۶۳فی صد سیټونه وو او ۳۷ فی صد د مغربي پاکستان وو. په دې کښې د دوو نه علاوه چې هغه نورالامین ګټلي وو، نور ۱۷۰ خواوشا ټول سیټونه شیخ مجیب وګټل. هغۀ چې د صوبې د پاره کوم حق غوښتۀ هغه پښتنو او بلوچو هم غوښتۀ او د دوي د الیکشن نه پس خپلو کښې ملاقاتونه هم وشو چې دا یقیني شوه چې شیخ مجیب به پاکستان کښې په اکثریت باندې حکومت جوړوي او چې څنګه د خپلې صوبې بنګال د پاره خپل حق غواړي نو داسې به نورو صوبو ته هم خپل حق ورکوي.

په مغربي پاکستان کښې بهټو په سندهـ او پنجاب کښې د ۸۰ نه زیات سیټونه وګټل او داسې د مغربي پاکستان اکثریتي پارټي پیپلز پارټي وګرځېده. بیورو کریسي کۀ په مشرقي پاکستان کښې وه او کۀ په مغربي کښې، ټوله د مهاجرو وه. دوي دا نۀ زغمل او وې وئیل چې دا صوبې خو د پاکستان د جوړېدو نه ډېر مخکښې جوړې شوې دي او چې ټولو صوبو ته خپل حق ملاو شي نو زمونږ څۀ شو څکه چې مونږ خو د پاکستان د جوړېدو نه پس د پاکستان په نوم راغلي یُو یعني مونږ په کښې د کوم ځاے یُو؟ کۀ نور څوک ختمېږي او کۀ نه خو مونږ په کښې ختمېږو. په یحیٰ خان باندې هم دې بیروکریسي پرېشر واچوۀ کۀ شیخ مجیب له دې اقتدار ورکړۀ نو بنګال لاړۀ. یحیٰ خان شیخ مجیب ګرفتار کړۀ، مغربي پاکستان ته ئې راوستو او په جېل کښې ئې واچوۀ او هلته ئې خپلې فوجي دستې نورې هم ولېږلې چې

باقي به په بنګالیانو په زور حکومت کوو. کوم جرنېل چې ئې هلته لېږلے وۀ د هغۀ نه په ایئرفورټ باندې اخباروالو تپوس وکړۀ چې شېخ مجیب له ۹۹ في صد خلقو ووټ ورکړے دے او هغه تاسو ونیوۀ جېل کښې مو واچوۀ په دې خلقو به حکومت څنګه کوئ او دا خلق به څنګه تاسو سره ودرېږي؟

هغه جرنېل ورته ووئیل چې دلته زمونږه خلق نۀ دي پکار زمونږ دا زمکه پکار ده، دا زمکه زمونږه ده په دې زمکه به حکومت کوو. دا خبره زۀ وایم چې بیا بیا وکړم په هره صفحۀ ئې وکړم چې زمونږ دا خلق نۀ دي پکار دا زمکه مو پکار ده هم د دې زمکې د پاره دوي پاکستان جوړ کړۀ. په دې زمکه چې څنګه د دوي بنګالیان نۀ وو پکار داسې ئې سندهے، پنجابے، بلوچے او پښتون هم نۀ دے پکار، د دوي صرف دا زمکه پکار ده. دغه وجه ده چې کومه صوبه د خپل حق اواز پورته کړي نو په هغۀ باندې د غدارۍ فتوٰی ولګي. د پاکستان ټولې سرکاري ادارې، فوج او اسټېبلشمنټ او د فوج او اسټېبلشمنټ جوړ کړي سیاستدانانو د هغوي سره په دې خبره اتفاق دے چې یوه صوبه دې هم د خپل قوم د پاره خپل حق نۀ غواړي. دغه حق غوښتل د پاکستان مخالفت ګڼي. دغه شان د دوي چې څوک مخالفت وکړي هغه هم د پاکستان او د دوي غدار ګڼي. زړې پارټۍ خو ټولې د دوي په لاس کښې دي خو چې کومې نوې سیاسي پارټۍ جوړېږي او هغوي ته ترکومې پورې د دوي مرسته حاصله نۀ وي نو هغوي په اقتدار کښې نۀ شي راتلے.

د پیپلز پارټۍ په اخري وختونو کښې په سنده کښې مهاجرو سره ظلمونه شوي وو. د ضیاءالحق په وخت کښې ئې ایم کیو ایم جوړه کړه چې مهاجر هلته د سندهیانو او پښتنو نه خپل بدل واخلي. د ضیاء

الحق په وخت کښې ایم کیو ایم ته باقاعده فوجیانو ټرېننګ ورکوؤ. کراچۍ کښې چې د پښتنو او پنجابیانو کوم شریک تنظیمونه جوړ وو، د هغې مشران او خلق هم ایم کیو ایم والاوژل او سندهیان ئې هم د کراچۍ نه وخکل او فوج ئې ښۀ ښکاره په پره کښې ولاړ وۀ. د ضیاءالحق په اخري وختونو کښې افغانستان ته د روس راتګ هم وۀ په ۱۹۷۹ء کښې د افغانستان مسئله شورو شوه. او په لسو کالو کښې دننه روس د افغانستان نه ووتو او د روس هغه طاقت ختم شۀ او په خپله مات شۀ. د روس د ماتېدو سره سم په پاکستان کښې سوشلسټ او کمیونسټ مائنډ خلقو چې پارټۍ جوړې کړې وې د هغې نه اېن جي او ګانې جوړې شوې او څنې په کښې تراوسه پورې د ښې اېن جي او په شکل چلېږي. هغې کښې چې کوم موقع پرست لیډران وو هغوي د امریکې دعوت په مخه قبول کړۀ ځکه چې هغوي کوم انقلاب غوښتۀ هغه د قوم د بدلون د پاره نۀ وۀ بلکې په دې دوران کښې چې په خپله د هغوي حالات بدل شو او ورسره ئې طبقې بدلې شوې، زما په شان په کښې ډېر خلق داسې وو چې د انقلاب په ذریعه ئې بدلون راوستو، داسې خلق په ډاګه پاتې شو خو دغې انقلابیو نظریو مونږ ته ښودلې وو چې انقلاب بغېر د یوې انقلابي پارټۍ نۀ شي راتلے خو چې دغه پارټۍ د یوې نظریې د پاره بدلون راولې نه چې د یو فرد د پاره. ورسره د سرمایه دارانه نظام خلاف یو نۀ ختمېدونکے نفرت په زړونو کښې واچوي او مونږ د سرمایه دارانه نظام نه دغه نۀ ختمېدونکے نفرت لرو خو د بدقسمتۍ نه دغه سرمایه دارانه نظام نن په روس او چین کښې هم موجود دے او د دغه سرمایه دارانه نظام جوړې کړې سودي ادارې لکه ائي ایم ایف او ورلډ بېنک د دنیا ټول وارۀ ملکونه ئې قرضدارې کړي دي او خپل لاس ته ئې کښېنولي دي. بل خو اته د دغه سودي

ادارو کارتیر امریکه ده او د دوي قرضونو سره سم د امریکې خبرې او لاره په دغه ملکونو باندې منلے شي.

توله دنیا او خاص کر په اېشیا کښې انډسټرۍ ډېرې جوړې شوي دي خاص کر انډونېشیا او جاپان کښې، ملېشیا او هندوستان هم ورسره په مقابله کښې رواني دي. د اېشیا وړو ملکونو ته هم زیاتر د دې اېشیا د کارخانو مال ځي. د دې ځیزونو د پاره به پخوا مونږ یورپ او امریکې ته ناست وو چې د هغوي مال واخلو. اوس امریکې سره د وسلې نه علاوه هېڅ ځیز نشته چې هغه بهر دنیا کښې خرڅ کړي او پېسې پرې پېدا کړي. دوي ته ضرورت دے چې هر ځائے کښې جنګ جوړ شي او دوي په کښې خپله وسله خرڅه کړي او په دغه جنګونو کښې خپله نوې جوړه کړې وسله او ټېکنالوژي زمونږ په خلقو ټسټ کړي. کۀ د دوو ملکونو ترمېنځه جنګ نۀ وي نو په ټوله دنیا د دهشت ګردۍ په نوم باندې دوي یو نۀ ختمېدونکے جنګ جوړ کړے دے چې کله ئې د القاعده په نوم باندې او کله ئې د آئي اېس په نوم باندې دا نوې وسلې به په خلقو ګوري او د دې تاوان به هم د هغه ملکونو نه اخلي په کوم کښې چې دا خلق وي. نن سبا ټولو مسلمانانو ته د دهشت ګرد په بنیاد ګوري چې دا دهشت ګرد دي. عجیبه خبره ده چې سړے تاریخ وګوري نو ۱۹۸۷ء کښې د یو اېن او د جرنل اسمبلۍ د دنیا د ټولو ملکونو د طرف نه یو قرارداد وړاندې شۀ چې دهشت ګردي په هر ملک کښې وي او په هر قسم چې وي، د دې به په شریکه مخالفت کوو او هغه ملک سره به امداد کوو چې کوم د دې خلقو نه تنګ وي. صرف دوو ملکونو د هغې مخالفت وکړۀ یو امریکه او یو اسرائیل. زما په زړۀ کښې اوس هم راځي چې صرف دې دوو ملکونو ته په دهشت ګردۍ کښې فائده ده او نورو ټولو ته نقصان دے. هم دا

دوه ملکونه دي چې په خپله دهشت گرد جوړوي هم او خوروي هم. د سرمایه داري نظام ځان گارتتر حسابوي ځکه دغه سرمایه داري نظام په ختمېدو کښې د ټولې دنیا غریبانانو او امن پسند خلقو ته فائده ده. د دې د پاره داسې نظریه پکار ده چې هغه په ټوله دنیا کښې د سرمایه داري مخالفت هم وکړي او د دې نه د یو بنۀ نظام د راوستو غږ هم وکړي. چې په روس او چین کښې دغه نظام ختم شۀ نو ورسره سوشلزم او کمیونزم په نوم بدلون راوستل هم ختم شو او زما نظر کښې راغلل چې اسلامي نظریه د سرمایه دارانه نظام خلاف ده کۀ د اسلامي نظام بنۀ پوهان راپورته شي او په شریکه په هر ملک کښې د سرمایه داري نظام خلاف تحریکونه راپورته کړي، د دغې خرابوالي راپورته کړي او د اسلامي نظام چې د دغې مقابله کښې څۀ خوبئ دي هغه خلقو ته وښائي. زۀ ذاتي طور باندې پخوا هم د امریکې د دغه نظام خلاف وم ما وې چې دا بدلون به سوشلسټ راولي، دغه هم یوه عالمي نظریه وه. اسلامي نظریه هم یوه عالمي نظریه ده خو چې په مختلفو ملکونو کښې ئې مشري د داسې خلقو په لاس کښې راشي چې نۀ ویرېږي او نۀ خرخېږي. د افغانستان په جنگ کښې چې کله روسیان ختم شو، بیا گلبدین او رباني دي راغلل هغوي د قومونو نفرتونه نور هم زیات کړل. د هغې نه پس ته د ټولو خلقو سترگې وې چې دلته طالبان هم پښتانۀ دي او د افغانستان په ۹۰ في صد علاقه باندې قابض هم دي نو دوي به افغانستان کښې یو پائېدار امن راولي. د بدقسمتئ نه مشري ئې د داسې مشرانو په لاس کښې وه چې د خپل کلي د جوماتونو نه زیات نه زیات د مدرسې تعلیم ئې کړے وۀ، نۀ د نوې دنیا نه خبر وو او نۀ د نوې سیاست نه او دغه اسلامي نظام ئې په یو غلط شکل کښې دنیا ته وښودلو. د پاکستان د مدرسو نه اول د روس خلاف د جهاد په نوم

باندې ټول پښتانۀ په شريکه وجنګېدل او چې بيا پارسي وان په کابل قابض شو او په افغانستان کښې هر لس پنځلس میله پس یو بېل حکومت وۀ نو طالبانو سره ئې هم په شريکه ښۀ امداد وکړۀ چې په دې کښې ورسره د پاکستان د فوج او د امريکې امداد هم شامل وۀ. د دوي مشرانو ته تر اخره پورې دا پته نۀ وه چې امریکه ولې په افغانستان کښې د اسلامي نظام امداد کوي او پاکستان ولې په افغانستان کښې د اسلامي نظام امداد کوي او په خپل ملک کښې ئې نۀ راولي. د امريکې او پاکستان دواړو په دې کښې ګټه وه چې د روس نه ازاد شوي ملکونه ازبکستان، تاجکستان او ترکمانستان وغېره، دوي سره چې د تېلو او ګېسونو ذخيرې دي، دا به اول د افغانستان او بيا د پاکستان په لار ګوادر ته راشي او بيا به نورو ملکونو ته ځي. د دې د پاره په افغانستان کښې د يو داسې حکومت ضرورت وۀ چې چې دا لاره وي نو دا تېل به دوي ته ترلاسه وي. طالبانو په افغانستان کښې امن په زور قايم کړۀ. په زور باندې امن راتلے شي خو صحي اسلامي نظام نۀ شي راتلے. ټولې دنيا د دوي مخالفت کوۀ چې دوي د جينکو تعليمي ادارې بندې کړې، فلمونه او سنېماګانې ئې بندې کړې، ښځې ئې په بازارونو بندې کړې. ټولې دنيا د دوي بد وې، خاص کر د هيومن رائټس ادارو، چې په کومه طريقه دې طالبانو سزاګانې ورکولې دا هم د اسلامي نظام مطابق نۀ وې. د دې باوجود هم امريکې د دوي ښۀ وې او د ټولې دنيا په دغه خبرو ئې سترګې پټې کړې وې ځکه چې د دوي په کښې مطلب وۀ ځکه ئې د دوي په ټولو غلطو کارونو سترګو پټې کړې وې. څۀ طالبان مشران ئې نيويارک ته راوستي وو او اخباروالو ترې تپوسونه کول. په ازبکستان، تاجکستان کښې چې چا د تېلو ټېکې اخستې وې د هغه ادارو خلقو د دوي

ترجماني کوله، اخبارونو واله ته ئې وئیل چې دوي په انګرېزۍ نۀ پوهېږي د دوي د خبرو به مونږ تاسو ته ترجمه کوو. چې اخبار والو به ترې تپوس وکړۀ چې دوي د جینکو سکولونه ولې بند کړل نو د دوي ترجمان به بیان ورکړۀ دوي وائي چې زمونږ په مذهب کښې د جینکو تعلیم نشته، چې کوم تپوس به ئې ترې کوۀ نو دوي به جواب ورکوۀ چې دا زمونږ په مذهب کښې نشته، دا زمونږ په تاریخ کښې نشته، دا په افغانستان کښې رواج نشته. د هغوي د ترجمو په وجه د خلقو د اسلامي نظام نه نفرت پېدا شۀ او دغه ترجمانانو ته ئې وئیل چې دوي دا ټول خراب کارونه کوي او تاسو ئې منئ نو اخر دوي کښې څۀ ښۀ والے دے چې تاسو ورسره بیا هم ملګرتیا کوئ. په دوي کښې څۀ ښۀ والے دے چې تاسو ئې بیا هم مرسته کوئ. هغوي ورته په انګرېزۍ کښې جواب ورکړۀ چې: They have a good sense of humer یعني دوي د ټوقو خنداګانو خبرې کوي دغه د دوي ښۀ والے دے.

په پاکستان کښې ټول مذهبي جوماتونه د اسمبلۍ په ذریعه په پاکستان کښې اسلامي نظام راوستل غواړي. جومات اسلامي او جمعیت العلماء دواړه غټې پارټۍ دوي سره ډېر نزدې پاتې شوم او ورته مې ووې چې دا خو ممکنه نۀ ده چې د پاکستان په نېشنل اسمبلۍ کښې تاسو په اکثریت کښې راشئ. پنجاب اکثریتي صوبه ده دوي ټول عمر مذهبي پارټو له ووټ نۀ ورکوي. دغه شان سندھ هم مذهبي پارټو له ووټ نۀ ورکوي بلوچستان کښې کۀ څۀ لږ ډېر ووټونه تاسو اخلئ او د پښتنو په علاقو باندې اخلئ نو داسې صرف پښتانۀ تاسو مني او اسلامي نظام هم مني. د ایم ایم اے په وخت کښې تاسو په دې صوبه کښې په اکثریت کښې راغلئ او شرعي نظام د دې صوبې ټولو پارټو درسره په شریکه ومنلو خو بیا هم په تاسو باندې مرکز دغه

بند کړۀ چې تاسو څۀ وخت د حسبه بل په نوم باندې په دې صوبه کښې شرعي نظام نافظ کول غوښتل او عدالت درته ووې چې په يو ملک کښې دوه نظامونه نۀ شي چلېدلے، تاسو په دغې هېڅ احتجاج ونۀ کړۀ، د دې مطلب دا شۀ چې تاسو هم دغه انګرېزي نظام منئ. د دغې انګرېزي نظام د لاندې ټولې ادارې جوړې شوې دي، سره د فوج او د پوليس، او دوي د دغې آئين دفاع کوي، ځکه تاسو له بل څۀ طريقه اختيارول پکار دي چې په دې پسې په شريکه راپاڅئ. ايم ايم اے يواځې د ووټونو د پاره مۀ استعمالوئ د دغې نظام د ختمېدو د پاره ئې استعمال کړئ. دوي وائي چې د دې پاره مونږ سره خلق نشته چې راپاڅي او دې نظام د پاره جنګ وکړي. ما ورته وئيل چې تاسو بيا دا ولې په خپلو منشورونو کښې منلې ده چې مونږ به د خداے او د خداے د رسول په ښودلې لاره باندې ځو. تاسو چې د خلقو خبره کوئ چې مونږ سره خلق نشته او چې خلق راشي نو مونږ به دا خبره کوو، نو کوم پېغمبر سره خلق راپاڅېدلي وو او کوم پېغمبر دې ته ايسار شوے وۀ چې ما سره خلق راشي نو بيا به د خداے خبره کوم او د خداے د نظام خبره به کوم.

د پاکستان اسټېبلشمنټ به ټول عمر تاسو له دوه څلور سيټونه درکوي چې ستاسو نمائندګي وشي خو د نظام د بدلېدو خبره به چرې ونۀ مني. انقلاب هم د دغې د پاره پکار دے او سوره توبه کښې د دې ديارلسم ايت نه پس ټول هم دا وئيلي شوي دي چې دوي پسې راپاڅئ او دوي سره جنګ وکړئ دوي ستاسو د پېغمبر د مرګ سازشونه کړي وو او ستاسو د مرګ سازشونه کوي. ولې تاسو د دوي نه ويرېږئ کۀ تاسو د دوي نه ويرېږئ نو مخکښې بيا مانه وويرېږئ تاسو سره ما جنګونو کښې امداد کړے دے او هغه جنګونه تاسو زما

په امداد ګټلي دي کۀ تاسو دوي پسې راپاڅئ نو بیا درسره هم هغه شان امداد کوم. د دوي مقصد صرف دا دے چې اسمبلو ته لاړ شي او چې حکومت ورته د شاملېدو دعوت ورکړي نو په مخه ورځي. کوم مراعات ممبرانو او وزیرانو ته ملاوېږي دغه دوي ډېر په شوق باندې اخلي. د دې خلقو نه هېڅ دا توقع نشته چې دوي به دا سرمایه داري نظام په پاکستان کښې ختم کړي او د اسلامي نظام د راوستو د پاره به راپاڅي.

اوس دې وخت کښې زمونږ یو طالبانو ته سترګې دي کۀ چرته دوي بیا په افغانستان کښې په حکومت کښې راغلل او خپلې هغه زړې غلطۍ دوباره نۀ کړي او شرعي نظام د مکې او مدینې د څلورو خلیفاګانو په وخت کښې چې کوم وۀ او څنګه ایډمنسټرېشن او د حکومت څنګه ډانچه او عدالتونه کښې چې کوم په شرعي نظام فېصلې کولې هغه خلقو ته وښائي نو دا د دې وخت د سرمایه داري نظام په بدل کښې د ټولو نه ښۀ نظام دے. کۀ په افغانستان کښې دوي امن او ترقي راولي نو د ټولې دنیا به دې ته سترګې وي او د سرمایه داري نظام په بدل کښې به دې ته ښۀ نظام ووائي او د دنیا نور ملکونه به ئې خپل کړي.





ښاغلے محمد ارشد خان زوي د طلامحمد خان زوي د فريد خان زوي د شريف خان زوي د شهبازخان دے (د ياد ورړ ده چې شهبازخان د محمدزو هغه مشر وۀ چې په کال ۱۸۵۷ءکښې د هشتنغر د يولس نيم زره لښکر چې د انګرېزخلاف دلي ته غزا له تلے وۀ، سرلښکر وۀ) په قبيله غني خېل، صافرخېل محمدزے پښتون دے او د صافرخېل پړانګو چارسدې وسېدونکے دے، زده کړه ئې په فلاسفي کښې ماسټري د پنجاب پوهنتون نه او په نفسياتو کښې ډپلومه د جرمني نه ترلاسه کړې ده خو په خپله دغې ته زدکړه نۀ وائي او خپله زدکړه د حجرې جومات، د جرګو، مرکو ناسته بولي.

په قام مئين دانشور دے او ټول ژوند ئې د قام د روښانه سباؤن په لټون کښې په عملي مبارزه او جرګو مرکو کښې تېر کړے دے، هم د دې مبارزې په لړ کښې د بېلابېلو سياسي ګوندونو غړے او مشر پاتې شوے دے. چې څۀ ئې ليدلي او محسوس کړي دي هغه ئې په خپل نظر د خپلو يادونو په صورت کښې ليکلي دي، د هرچا خپل نظر او نظريه وي د دې کبله ورسره بشمول زما د ډېرو خلقو اختلاف هم کېدے شي او هم د دې دوو خبرو له کبله د ښاغلي ارشدخان دا کتاب يو ډېر ګټور قدم ګڼم. لومړے دا چې ډېرې خبرې او تاريخ چې څېړل غواړي خو ځوک پرې خبره هم نۀ کوي زما په اند د دې کتاب سره به دغه چېتيا ماته شي او بحث ته به لاره هواره شي. ځوک به ئې تائيد يا ترديد کښې هم ليکنې او په دليل نور کتابونه وليکي.

دوېم دا چې د يو تاريخي شخصيت سره خوندي د تاريخ څو پاڼې به د پښتو ادب په جولۍ کښې اضافه شي.

په درنښت

**طيب الله خان**

اسلام اباد ۲۴ فروري ۲۰۱۹ء